## د لیکوال خبري

دغه څپرکي په بیلابیلو وختونو کې لیکل شوي، خو کېداي شي له یو بل سره تړلي وي او د تاریخي اصولو له مخې ترتیب شوي وي. ښایي د پېښو او نظریاتو تکرار پکښې وي، چې ستاسې په نازکو فکرونو به بوج شي، خو ټولې یې حقیقي خبرې دي، نو ځکه یې تکرار احسن ګڼم. ځینو سرلیکونو کې ډېر اختلافات شتون لري او ډېر پېچلي هم دي. نو غواړم په ژور فکر یې مطالعه کړئ. که چېرته د لیکوال خبرې یا دعوې ناسمې وي، نو تاسو کولای شئ رد یې کړئ. د قلم ځواب په قلم ورکول، د هم فکرو مسلکیانو کار دی، ځکه نظریاتو ته په ښو حالاتو کې ماتې ورکول کېږي او د ګمراهۍ له لارې څخه بېرته راګرځېدلی هم شي، نه په پټو سترګو د هر شي منلو څخه. د روم د پاپانو د سلطنت په دوره کې د احتساب یوه محکمه له سل ګونو کلونو څخه را پیل شوې ده. په پخوانیو زمانو کې خو منع شوي کتابونه او لیکوالان دواړه ژوندي سوځول کېدل بیا هم نویو نظریو خپله لاره روانه وساتل.

کله چې د سرسید او علامه اقبال د کتابونو خلاف فتواوې صادرې شوې، نو د بې عزتۍ پرته، چا هېڅ هم ترلاسه نه کړل او نړۍ یې په ځان وخندول. وخت د رېښتیا او درواغ پریکړه وکړه. د سرسید کتابونه اوس د دولتي بودیجې په مرستي خپرېږي او علامه اقبال ته مفکر پاکستان ویل کېږي.

زموږ د سترو علماوو له قوله، هغوی به ویل دې ته مه ګورئ، چې هغه څوک دی بلکې دې ته غوږ شئ! چې هغه څه وایي. ( د شمعې رڼا پسې ځئ، دې ته مه ګورئ چې د چا په لاسونو کې ده. ژباړن). دوی د خلکو د فکرونو سمون د همدغو نظریو په مټ وکړ. کوم نظریات چې دوی ته ښه ښکاره شول، نو یې ومنل او په زړونو کې یې ځای ورکړ. نه خو د دوی په دین کې کوم خنډ رامینځته شو، نه هم د دوی عقیدې بدلې شوې، کوم نظریات چې ورته غلط ښکاره شول، د دلایلو له مخې یې د رد کولو هڅې وکړې، خو د افسوس خبره ده، دغه کړنلاره له وخت سره ورو - ورو له مینځه ولاړه. تنګ نظرۍ، د خلکو په فکرونو دومره اغېزې وکړې، چې د نوي فکر تازه بادونو دې خواته له راتلو څخه وېره لري، که څه هم:

جهان تازه کی افکار تازه سے ہے نمود

(نوې نړۍ له نویو افکارو سره ښه ایسي)
که دغه کړنلارې ژر تر ژره پای ونه مومي، نو زموږ نوی نسل به له حقیقتونو څخه بې خبره پاتې شي.

سبط حسن ـ کراچي، د ۱۹۸۲ میلادي کال د جولای ۴.

# سریزه

د ورځني ژوندانه بوختیاوي عامو انسانانو ته د دې لږه موکه ورکوي، چې د بشریت وهلي تاریخي مزل ته تر شا وګوري او د هغه له کړاوونو، رنځونو، انجامونو او قانونمندیو ځان خبر کړي. که موږ د خپل ژوندانه په دې مزل کې یو ځل د تاریخ له سترګو شاته وګورو؛ خامخا حیرانېږو، چې زموږ پخوانیو نیکونو څومره پېچلي او له کړاوونو ډکې لارې وهلي او بشري تمدن تر دې ځایه په څومره سختیو او زحمتونو را رسېدلی. تاریخ، د کړاوونو، رنځونو، ربړونو، جګړو، وژنو، طبیعي پېښو او ټولنیزو بې عدالتیو ناپایه ترخه روایتونه او داستانونه لري او لا نه ده مالومه، چې د پانګوالۍ او امپریالیزم د حاکمیت له کبله به، د تاریخ په دفتر کې د څومره نورو جنایتونو داستانونه او د انساني کړاوونو روایتونه ولیکل سي، خو له دې ټولو سره - سره، هغه څه چې له تاریخ او د بشر او ټولنې له مادي ماهیت څخه موږ زده کړي؛ دادي، چې «حرکت مطلق او سکون نسبي دی». تاریخ له بدو څخه د ښو پر لور، له جبر څخه د اختیار پر لور او له اسارت څخه د آزادۍ پر لور د نه درېدونکي تکامل لار وهي. تاریخ یوازې د بشر د کړاوونو داستان نه دی، بلکې له هغو ټولو بدمرغیو څخه یې د درسونو او بشري ټولنې د تکامل د قانونمندیو ټولګه جوړه کړې، چې زده کړه یې د بشریت د روښانه راتلونکې زېری له ځانه سره لري.

موږ لا تراوسه هم د تاریخ په کړکېچنو او دردناکو پړاوونو کې یو. جګړې، استثمار، بې عدالتي، زورواکي، ناروغي، لږ مهارېدونکي طبیعي پېښې او لسګونه نور هغه معضلات، چې د بدویت د زمانې بشر ورسره لاس او ګرېوان وو؛ موږ ته تراوسه را پاته دي او ورځ تربلې نوي اړخونه او ابعاد هم خپلوي، په دې توپیر، چې د نړۍ د نامتوازني پانګوالي ودې له کبله، دا معضلات په ځینو ځایونو کې په ډېر شدت او په ځینو برخو کې په لږ شدت او بیلابېلو بڼو سره پاته دي.

پاکستانی مترقي لیکوال او تاریخپوه سبط حسن په خپلو علمي او تاریخي اثارو کې د بشري تاریخ د بیلابیلو پړاوونو کړاوونه، رنځونه او د هغو پایلې او درسونه را اخیستي او په خپلو تاریخي پایلو اخیستنو کې یې د راتلونکې خلاصون لارې هم پکښې ښودلې دي. د سبط حسن ځانګړتیا او بې مثالتوب په دې کې دی، چې آثار یې یوازې روایتي او بیاني نه دي، بلکې تر تاریخي روایتونو او

بیانونو ډېر یې، د یادو پېښو عوامل ښودلي او د هغو نتایج او پایلي یې را غونډې کړي دي. د فکر زېری د ده له هغو ارزښتناکو آثارو څخه دی، چي د ډېرکیو مسلمان مېشتو آسیایي ټولنو اوسني معضلات یې، د هغوی د تاریخي ریښو له موندلو او سپړلو سره بیان کړي او د همدغو ټولنو اوسنیو نسلونو ته چي لا زیاتي نا ترسره سوي تاریخي دندي او رسالتونه ور تر غاړي دي؛ د زده کړي لپاره ډېر څه لري.

د فکر زېري په شپږو څپرکو کي، پر تیوکراسی، اسلامي حکومت، سکیولریزم، د سند سوسیالیسټ صوفي، لومړي باغي او ژوند پر انځور تاریخي او علمي بحثونه سوي.

تیوکراسي او اشرافیت د بشر د ټولنیزو مناسباتو د اداري له پخوانیو شکلونو څخه دی، چي د واکمنی بنسټونه یې پر استبداد، زورواکی، بې قانونی او وهم خپرونکو تګلارو په کارولو سره ولاړ وي. د انسانانو ټولنیز ژوند او مناسبات، د مریيتوب د تاریخي دورې له پیل څخه د دیني، سیاسي او اداري تیوکراسی په بیلابېلو بڼو باندي اداره سوی او زموږ د عصر د خورا زیاتو لویو بدلونونو سره - سره یې پاتي شوني په بیلابېلو بڼو او شدتونو سره پاتي دي. په ځانګړي ډول مخ پر وده آسیایي او افریقایي هیوادونه، چي لا تراوسه په نیمه فیوډالي او نیمه استعماري شرایطو کي دي او د نړی د تمدن له کاروانه، د لویو امپریالیسټي ځواکونو په واسطه عمداً او قصداً شاته ساتل سوي؛ د تیوکراسی دیني او سیاسي شکلونه په ډېر شدت سره پکښې حاکم دي او واکمنانو یې د خلګو د بېسوادی او ناپوهی څخه په ګټې اخیستني سره خپلي ریښې لا ټینګي او تازه ساتلي. له بده مرغه، زموږ ګران او محبوب هیواد افغانستان او شاوخوا ځیني ګاونډي هیوادونه هم په هغه ډله هیوادونو کي راځي، چي تیوکراتیک بنسټونه، په ځانګړي ډول د دین په بڼه، پکښې ډېر ځواکمن او سخت مرګي دي. دلته که د انګلز هغه قول را واخلو «جبر هغه مهال په اختیار بدلېدلای سي، کله چي یې موږ په حاکمو قانونمندیو پوه سو» او دا چي خپله تیوکراسي د ټولنیز جبر یو شکل دی؛ نو ټیک د دې کتاب اهمیت هم په دې کي دی، چي د ټولنیز جبر د دې شکل په مخیني او قانونمندیو مو پوه کوي او موږ یې چي کله په قانونمندیو پوه سولو؛ نو په اختیار اړولو باندي یې هم آګاهي ترلاسه کوو.

په هغو آسیایي او افریقایي هیوادونو کي، چي د اسلام د دین ډېرکي پیروان پکښې تر نیمه فیوډالي او نیمه استعماري شرایطو لاندي اوسېږي؛ د تیوکراسی دیني او سیاسي شکل ګډوله یا خو پکښې حاکم دي، یا یې د حاکمیت لپاره تبلیغ کېږي. په دغو هیوادونو کي د تیوکراسی د دیني او

سیاسي شکل ګڼولې ته «اسلامي حکومت» وايي. لیکوال خپل د کتاب دوهم څپرکی همدې موضوع ته ځانګړی کړی دی. په دې څپرکي کي يې، د اسلام د دين تر ظهور وړاندي، د مکې د خلګو ترمنځ د ټولنيزو مناسباتو تاريخي شننه کړې ده او د هغو شننو پر اساس يې، د اسلام د دين د پراخېدلو اقتصادي، تاريخي کلتوري او ټولنيز عوامل ښودلي. ترڅنګ يې د اسلام د دين د پراختيا لپاره د پيغمبر (ص) د مبارزو پر مهال د هغه سياسي کړنو ته اشاره کړې او بيا يې د هماغه زمانې له پېښو او پيغمبر (ص) د کړنو په استناد ګرځولو باندي، د اسلامي حکومت له مفهوم څخه د اوسنيو سياسي اسلامپالو په ناسمو تفسيرونو، تعبيرونو او پايلو اخيستنو باندي نيوکي کړي دي. په هغه وخت کي، چي سبط حسن دا کتاب ليکلی؛ په افغانستان کي د نړيوال امپرياليزم په ملاتړ د مجاهدينو تشکيلات نه ول را منځته سوي او د تروريزم په نوم هغه پديده، چي نن د بشريت پر وړاندي له لويو ګواښونو څخه ګڼل کېږي؛ نه ول را منځته سوې. د تېرو شپږو اوو زرو کلونو راهيسي، د مختلفو دينونو ترمنځ د جګړو او يو بل حاکمولو په نوم که هر څومره ويني توی سوي وي او هر څومره جنايتونه سوي وي، هغه يوې خواته، خو هغه جنايتونه چي په وروستيو دېرشو کلونو کي په آسيا او افريقا کي د لويديځ جوړ سويو تروريستانو د اسلام د حاکمولو په نوم کړي؛ د دې کتاب لوستونکی نسل يې ټول عيني شاهدان دي. لوستونکي د دې څپرکي په لوستلو سره، د اسلامي حکومت دعوه کونکو په فکري اساساتو او د هغو پر رد باندي ښه پوهېدلای سي.

د کتاب دريم څپرکی د تيوکراسۍ پر بديل سکيولريزم باندي دی. ليکوال، د دين او سياست د جلاوالي پر اهميت، تاريخي او علمي دلايلو او تمدني شرايطو بحث کړی. د سياست د علمي کولو او تخصصي کولو ارزښت يې بيان کړی او د سکيولريزم اړه يې پر حاکمو ناسمو باورونو نيوکي کړي دي.

په دې څپرکي کي، په ترکيې، هند او پاکستان کي، د تيوکراسۍ ضد او سکيولريزم پلوه سياسي او فرهنګي خوځښتونو په مبارزو او برياوو هم بحثونه سوي دي. په دې لړ کي، تر ټولو په زړه پوری د ترکيې هيواد د روښانفکرانو د سياسي او فرهنګي مبارزاتو تاريخ دی، چي په ۱۹۲۴ کال کي، د مصطفی کمال اتاتورک په مشرۍ د ترکيې د ملي انقلاب له برياليتوب سره يې په ترکيه کي سياسي او ديني اشرافيت د تل لپاره نسکور او د جمهوري او سکيولر ترکيې بنسټ يې کښېښود. زموږ هيواد هم د سکيولريزم او تيوکراسۍ ترمنځ د تضادونو او ټکرونو تاريخ لري، خو په ټوله کي، د ديني او سياسي

اشرافیت د نسکورولو لپاره پراخ ولس محوره سیاسي غورځنګونه نه دي را منځته سوي، چې پر دیني او سیاسي اشرافیت دي یې هر اړخیز کاري او تاریخي ګوذار کړی وي او د سکیولر سیاسي حاکمیت پیاوړي بنسټونه دي یې را منځته کړي وي.

په دې برخه کي، د روښنایي او سربېرنو سیاسي او کلتوري اصلاحاتو او سمونونو پیل د امان الله خان د واکمنۍ په دوره کي وسو، چې بیرته ژر د هغو لغوي او پرشاتګ ته اړ سو. د نادر شاه او کورنۍ په نیمه پېړۍ واکمنۍ کي یې، چې د سیاسي او دیني اشرافیت ګډوله د ټولواکۍ او بیا وروسته د جمهوریت تر عنوانونو لاندي حاکمه وه؛ د ډېرو لږو بدلونونو شاهده وه او په وروسته کي شاهي کورنۍ که ځان د دین د ساتني ټېکه داران نه ګڼل، خو خپل شدید سیاسي اشرافیت او طبقاتي استبداد یې ساتلی وو. د ثور تر انقلاب وروسته، د نوي واکمنو پارونکو تدابیرو، څه د خپلمنځي اختلافاتو او ډېر د نړیوال امپریالیزم او سیمه ائیزي ارتجاع د لمسون او مادي او مالي مرستو له کبله، د سیاسي اسلام راټوکېدلو ته زمینه برابره سول. د ۱۳۷۱ کال را وروسته، تر اوسه په افغانستان کي د دین سیاسي نمایندګان په بېلابېلو نومونو (اسلامي جمهوریت، اسلامي دولت، اسلامي امارت) او شعارونو واکمنان دي او موږ ټول په دې موده کي، د خاوري، هیواد او خلګو په حق کي د ترسره سویو جرمونو او جنایتونو شاهدان او قربانیان یو او د مذهبي اشرافیت غوښتونکو تر واکمنۍ لاندي خپل حال او راتلونکې تیاره وینو. دلته دی، چې شاعر ویلي:

در دیار که ملا بر تخت است

زنده بدبخت و مرده خوشبخت است

پر سیاسي او دیني اشرافیت او سکیولریزم تر بحثونو وروسته، کتاب په په سند کي د صوفي شاه عنایت او د هغه د غورځنګ داستان را اخیستی. دا صوفي شخصیت، چې په سند کي یې ژوند کوئ؛ غوښتل، د بزګرانو د مادي ژوندانه شرایط ښه کړي. د دې لپاره یې یو دهقاني سیاسي او مذهبي غورځنګ جوړ کړ او د لویو ځمکوالو سره یې جګړې وکړې. په پای کي یې خپل ژوند هم په همدې لار کي له لاسه ورکړ. په دې څېرکي کي، لیکوال مارکسیستي سیاسي اقتصاد ته ځي او د مادي ژوندانه د شرایطو ښه کېدلو لپاره د تولیدي ځواکونو د تکامل اصل ته اشاره کوي. لیکوال په دې څېرکي له دې ناسم پوهاوي سره، چې ګواکي مارکسیستي فلسفه د میکانیکي اقتصادي برابرۍ پر ویش ولاړه ده؛ هم نیوکي کوي او د دې سپیناوي کوي، چې د مارکسیستي سیاسي اقتصاد د

قانونمندیو له مخي، د بشري ژوندانه د مادي او معنوي شرایطو د ښه کېدلو لپاره باید تر هر څه لومړی تولیدي ځواکونه لازمه وده وکړي. هر کله چې ماشیني او پر عالي تخنیک او ټکنالوجۍ ولاړ اقتصاد را منځته سي او د مادي اجناسو او خدماتو تولید زیات سي؛ بیا کېدلای سي «هر چاته د کار له مخي» او «هر چاته د اړتیا له مخي» د ویش اصلونه پر ځای سي، خو په کرنیز او سُنتي اقتصاد کي دا کار ناشونی دی.

د کتاب په پنځم څپرکي کي، له پخوانیو یوناني اسطورو څخه د پرومیتوس داستان راغلی او لیکوال د هغه شننه کړې ده. د یادي یوناني اسطورې د روایت له مخي، پرومیتوس چې انسانانو ته یې د اور کارول ور وښودل؛ د خپل خدای سره یې لوی خیانت وکړی او د هغه خیانت جزا ورته ورکول سول. د حاکمو طبقاتو له لوري را منځته سوي ډېر پخواني روایتونه داسي ول، چې هر یاغي او سرکښ به یې لار ورکی او شیطان ګڼئ، خو تاریخ بیا وایي، چې تر ټولو لوی کمي او کیفي تحولات سرکښو، باغي او انقلابي انسانانو را منځته کړي دي. انسانان، د تاریخي عمل له مخي پر دوه ډوله دي، یو هغه چې د تاریخ مصنوعین دي او تاریخ جوړ کړي وي او بل هغه، چې د تاریخ صانعین وي او دوی تاریخ جوړ کړی وي. لنین په دې اړه څه ښه وایي: «یو مریی تر هغه وخته مریی دی، چې خپل مریيتوب ته یې غاړه ایښې وي، کله چې د مریيتوب پر ضد پاڅون کوي؛ نور هغه مریی نه، یو انقلابي انسان دی.»

په وروسته پاته فیوډالي هیوادونو کي، حاکمو طبقاتو د سیاسي او دیني اشرافیت د ساتلو لپاره د دیني باورونو او سیاسي او کلتوري جوړښتونو پر وړاندي یو ډېر متعصب او محافظه کارانه ذهنیت را منځته کړی دی او هر بدلون غوښتونکی، نیوکه کونکی او پوښتنه کونکی پکښې د مرتد، باغي، بې لاري او نورو نومونو باندي ټولني ته ور پېژني.

په شپږم څپرکي کي، لیکوال ښه ډېر شاته ګوري او موږ ته د بشري تکامل پېچلې مزلونه، د پخواني انسان نامراده هیلي او ارمانونه موږ ته د هغوی پاتي خدمتونه راښيي. دا څپرکی په ډېرو لرغونو زمانو کي، چې لا لومړني تمدنونه او ښارونه نه ول را منځته سوي او انسانانو په مغارو کي ژوند کوئ؛ د ژوند انځور بیانوي او د هغه زمانې انسانانو د ژوندانه په مادي شرایطو، ټولنیز حالت، باورونو او هنرونو بحث پکښې سوی دی. په دې څپرکي کي، په پخوانیو زمانو کي، د انسانانو لخوا د امیندواره (حامله) ښځو انځورونو تراشلو یادونه راغلې ده، لیکوال دا ډول انځورونو تراشلو ته په هغه زمانه کي، د انساني

نسل د بقاء او پایښت لپاره د انسانانو له هیلو سره تړاو ورکوي. هغه مهال، د امکاناتو د کموالي له کبله ډېر شمېر نوي زیږېدلي ماشومان مړه کېدل او انسانانو د خپل نسل له زیاتېدلو سره لېوالتیا درلوده، نو په همدې خاطر به یې خپلي دا هیلي، امیدونه او احساسات د امیندواره ښځي د انځورګرۍ په بڼه کي وړاندي کول. دا تاریخي یادونه له موږ سره د هنر په اړه، د دې مارکسیستي ټکي د تائید او لا ښه پوهېدلو سره مرسته کوي، چي هنر له پیل څخه هم د ټولنیز پوهاوي یو شکل وو. هنر انتزاعي او انفرادي نه، بلکې ټولنیز او اجتماعي وو او د ټولني له مادي وضعیت څخه اغېزمن، د انسانانو د احساساتو ښودونکی او هغه ته انعکاس ورکونکی دی او پر همدې بنسټ «هنر باید د هنر لپاره» په انتزاعي شکل نه، بلکې «هنر د خلکو لپاره» وي.

په ټوله کي د دې کتاب لوستل، زموږ له سیاسي، علمي، تاریخي او انقلابي پوهي د زیاتوالي او علمي نړۍ لید له پراخوالي سره ډېره مرسته کوي. له نویو مفاهیمو، مقولاتو او اصطلاحاتو سره مو آشنا کوي. د سیاسي او دیني اشرافیت مخ را ښیي. د علمي او جمهوري سیاسي، اقتصاي او ټولنیزو جوړښتونو او اشرافي، استبدادي او خرافاتي سیاسي، اقتصادي او ټولنیزو جوړښتونو په توپیرونو، بدترېو او بهتریو مو پوه کوي او د ژوند، بشریت، طبیعت او ټولني په اړه، زموږ ذهني لید د علمي، تاریخي او عیني واقعیتونو په رڼا کي راته جوړوي.

زه ځوان غورځنګ اتل ته، چي خپل د ځوانۍ انرژي او د دې خواږه دوران ورځي او شپې یې د خلکو چوپړ او د دوی د علمي، سیاسي، تاریخي، انقلابي او فلسفي شعور لوړاوي ته وقف کړي دي؛ د ستاینې او مننې الفاظ نه لرم او د ژوندانه په چارو کي د لا زیاتو مادي او معنوي بریالیتوبونو هیله ورته کوم. هیله مي دا ده، چي خپلو خلکو ته د خدمت دا لړۍ ته په نه ستړي کېدونکي ډول سره لا زیات دوام ورکړي.

جانباز شرافت

# لړلیک

**لومړی څپرکی**

**تیوکراسي** ........................................ 1

**دويم څپرکی**

**اسلامي حکومت** ........................................ 22

**دريم څپرکی**

**سیکولریزم** ........................................ 52

**څلورم څپرکی**

**د سند سوسیالیست صوفي** ........................................ 132

**پنځم څپرکی**

**لومړی باغي او لومړنی سیاسي بندي** ........................................ 161

**شپږم څپرکی**

**د ژوند انځور** ........................................ 189

# لومړی څپرکی

# تیوکراسي

«موږ د څه لپاره منډې تړړې کوو، زموږ موخې کومې دي؟ موږ د تیوکراسي لپاره جګړه نه کوو، نه هم زموږ موخه د تیوکرات حکومت رامنځته کول دي.» (د جناح خطبه)

«هېڅکله به هم په پاکستان کې تیوکرات حکومت حاکم نه شي؛ چېرته چې د ملایانو حکومت وي، نو دا فکر به کوي، چې موږ د خدای رېښتني بنده ګان یو». (جناح، ۱۹۴۸)

تیوکراسي د حکومت هغه بڼه ده، چې د حکومت قوانین پکښې د خدای پر احکامو سنبال وي او یا هم د حکومت مشر ځان د خدای استازی وبولي. په بله مانا تیوکراسي د حکومت هغه بڼه ده، چېرته چې د حکومت ولسمشر خپله د هیواد اوسیدونکی نه وي او یا هم د هیواد اوسیدونکي نه شي کولای، چې په خپلو رایو ځانته ولسمشر وټاکي. یانې، د هیواد ولسمشر په کومه بله لاره واک ترلاسه کوي او د خدای د احکامو تطبیق کوونکی وي، خو تیوکراسي په خپله د ملوکیت او جمهوریت یو ډول دی؛ نو له تیوکراسۍ تر مخه باید موږ حکومت وپېژنو، ځکه له کومه وخته چې پاکستان او ایران د حکومت رامنځته کېدو غوغا جوړه کړې ده، نو ځینې ګوندونه دا څرګندوي، چې که موږ اسلام قبول کړو، نو د حکومت بڼه بدلون مومي. دا نو داسې شوه لکه یو عیسوي چې مسلمان شي، نو هغه به د سترګو پرځای په غوږونو لیدل کوي، یا د پښو پر ځای به پر سر روان شي.

حکومت د یوې خپلواکې ټولنې تر ټولو ستر سیاسي بنسټ وي، چې د یوې سیمې وګړي په هر اړخیز ډول، د خپلو نظریو تر ولکې لاندې راولي. حکومت له ازله شتون نه درلود او نه هم له آسمانه رانازل شوی، بلکې له انسانانو جوړه ټولنیزه اداره ده؛ په یوه ورځ د چا پر حکم رامنځته شوې نه ده، بلکې د تیرو شپږو زرو پیړیو تکاملي بڼه ده. حکومت هله راپیدا شو، کله چې ټولنه په طبقاتو ووېشل شول او ملکیت (ځمکه، تولیدي ځواکونه او تولیدي اړیکي او نور) د یو شمېر وګړو شخصي شتمني وګرځېده. حکومت، د انسانانو د لومړني ټولنیز ژوند زورواکه اداره نه ده، ځکه کورنی، خپلوان او

قبيلې له حکومت ترمخه کابو د میلیونونو کلونو په ترڅ کې موجودې وې. هغو د ټولنيز ژوند لپاره دوديز قوانين او اصول درلودل. د دوديزو قوانينو له نظره د کورنۍ مشر، د قبيلې مشر او د کلي ملک به ستر شخصيتونه بلل کېدل. د حاکميت مرکز رسم او رواج وو، که څه هم دا يوه اخلاقي پديده وه، خو اړينه وه چې ټولو به ورته غاړه ایښودل. د بېلګي په ډول، د نبي کريم ص په زمانه/عصر کې مکې او مدينې هم د قبيله دارۍ نظام درلودی، خو حکومت نه وو. په مدينې کې به هره قبيله ځانته اوسېدله او د هرې قبيلې به ځانته دود او قوانين وو. ښار کومه مرکزي قوه/ اداره نه درلودل. مکه چې د مذهب او سوداګرۍ له اړخه يو ډېر مهم ښار وو، هلته هم ډېريو قبيلو ځانته خپلواکي درلودل، د قبيلو د مشرانو يوه مرکزي اداره وه، چې د حج او سوداګرۍ کړنې به يې په خپلو کې ويشلي وې. د جګړې په وخت کې به يې يو غښتلی ځوان د لښکر سپه سالار ټاکه. د ښار ساتنې لپاره کومه ځانګړې پوځې قوه نه وه، بلکې د هر بالغ او غښتلي ځوان فريضه وه، چې له ښار څخه ساتنه وکړي. د پخوانيو تنظيمونو/ادارو او حکومت ترمينځ يو توپير دا هم دی، چې د پخوانيو تنظيمونو بنسټ به پر يو ډول مذهب، عقيده او ژبه ولاړ وو. له کومې ځانګړې سيمې سره پيوستون کومه مانا نه درلودل. (ډېرو قبيلو خو صحرا کې ژوند کوه) خو حکومت يو سيمه ائيز يا جغرافيايي فرماسيون دی، چې له يوې قبيلې سره کوم تړاو نلري، بلکې حکومت د زياترو قبيلو، اقوامو، ژبو او مذاهبو يو ټولګه ده. يو توپير يې دا هم دی، چې کورنۍ، قبيلې او د کليو پخوانيو تنظيمونو کوم طبقاتي وېش نه درلودی، نه کومه خپلواکه او نه هم محکومه ټولنه وه، خو حکومت له پيل څخه په ځان کې طبقاتي ځانګړنه لري. کله چې ټولنه وووېشل شوه؛ نو حکومت رامېنځته شو او يوازينۍ موخه يې دا ده، چې د حاکمې طبقې د ګټو ساتنه وکړي. که څه هم حکومت [تيوکراټ وي يا شاهي، جمهوري وي يا سوسياليستي] په ټوله کې يوه طبقاتي اداره ده. تيوکراسي د مذهبي علماوو/ملايانو د ګټو ساتنه کوي. په شاهي کې د باچا او د هغې د کورنۍ د ګټو ساتنه کېږي. پانګوالي نظام کې د بورژوا طبقې واکمني وي. سوسياليزم کې بيا د زيارکښو د ګټو ساتنه کېږي.

«حکومت داسې يو نظم نه دی چې له آسمانه/ازله په يوې ټولنې نازل شوی وي...... برعکس د يوې ټولنې خپل توليد دی، چې د ټولنيز تکامل له لارې خپل مقام ته رسي. د هغه وجود په دې خبرې ټينګار کوي، چې ټولنه اوس د داسې يو ناحلېدونکي پړاو سره مخ ده؛ دننه يې داسې متضادي اړيکي زېږېدلي دي، چې کومه د جورجاړي لار نه ليدل کېږي او ټولنه همنه شي کولای په ځان کې يې حل

کړي، خو په راتلونکي کې به دغه ناوړې ځانګړتیاوې، د طبقاتي اقتصاد ګټې خپلو کې سره ووهی او بدون له کومي ګټي به ټولنه له خاورې سره خاورې کړي؛ نو د داسې یو ځواک اړتیا را منځته کېږي، چې په ښکاره سره له ټولنې څخه ډېر لوړ ناڅاپه اعتدال رامنځته کړي او د یوځایي ټکر پایله به د ستر(نظم او ثبات) پرانېستل وي. دغه ځواک چې د ټولنې له دننه څخه راټوکیږي، خو د ټولنې څخه ځان په لوړ مقام کي ښيي او ورو - ورو له ټولنې څخه ځان بېګانه کوي، همدغه حکومت دی».
(Engles, p. 24)

لومړیو حکومتونو ښاري بڼې درلودلې. د اوسپنې په زماني کې ښارونه سیندونو ته نږدې ودان شوي وو. د اوسپنېز اوزارو په وسیله د کلیو تولیدي ځواکونو ډېره پراختیا وموندل، د تولیداتو د زیاتوالي له امله زیات مهارتونه/کسبونه وپنځېدل او سوداګري مېنځته ته راغلل؛ همداسي په لومړي ځل مارکېټونه او ښارونه جوړ سول. د دغو ښارونو مرکز به یو نه یو عبادت ځای وو، چې د حکومتونو په پرانېستلو کې یې زیاتي ونډې لرلې. د کرنیزو اوبو سیستم، سیمه ائیزي جګړې او د غلامۍ دود هم د حکومت په تشکیل کې فعالي ونډې لرلي دي. لومړیو حکومتونو به تیوکراټیکي یا مذهبي بڼې درلودلې، که څه هم هغه د نیل، دجلي او فرات سیندونه وي یا د سند، ګنګا او جمنا سیندونه. ځکه تر ډېرو به سترو عبادت ځایونو په خپل ځواک سره دغه حکومتونه کنټرولول. په عبادت ځایونو کې به چې د کومو خدایانو عبادت کېده، نو یادې سیمې به د هغو په نومونو ونومول شول او د هغوی ملکیت به هم ګڼل کېده. د بېلګي په ډول، د بالائي/بر مصر پلازمینه د امون رع خدای ملکیت وو او د ښکته مصر پلازمینه د مفس بیل خدای ملکیت ګڼل کېده. همداسې د لویدیځ عراق اریدو ښار د خوړو اوبو د خدای، اریک تر ټولو د ستر خدای انو نیفر او ارچند د اننا خدای ملکیت ګڼل کېده. کله چې د تبلیغ کونکو تګ او راتګ زیات شو، نو زیاتره بقالان، سوداګر او دکانداران هلته میشت شول. دغه سیمې ورو - ورو په ښارونو او بیا په ښاري حکومتونو واوښتې. د دغو ښاري حکومتونو ټولې کړنې به خدایي خدمتګارانو پر مخ وړلې، چې پر ځمکو به د خدای اصیل بنده ګان شمېرل کېدل؛ د دوی کړنې به کټ مټ د خدای کړنې تعبیر کیدې. سومریانو به د حکومت مشر ته [پاتیسي]ویل، چې لغوی مانا یې «د حکومت خدای» دی او پخواني مصري ژبه کې به [خدای او باچا] دواړو ته د[هوروس] کلمه کارول کېدل. د دوی د دولت کړنې داسې هم واضح کېږي، کله چې په لویدیځ عراق کې د پخوانیو اثارو کېندل پیل شول، نو تر خاورو لاندې موندل شویو لوحو باندې ۹۵ سلنه د

معبدونو په اړه ليکل شوي دي. يواځې ۵ سلنه داسې دي، چې پر هغو داستانونه، کيسې، نظمونه او سندري ليکل شوي دي.

د دې حکومت مشر به ډېر فرائض ترسره کول. هغه به مذهبي پيشوا/لارښود هم وو او د حکومت کړنې به يې هم کنټرولولې. په مذهبي برخه کې د هغه کړنې او اختيارات لايتناهي وه، ځکه هغه پر ځمکه د خدای پيغمبر شمېرل کېدی او په مستقيم ډول به د هرې کړنې ځواب ورکونکی وو، خو په حکومتي کړنو کې به د هغه لاس د مجلس شورا لخوا لنډ شوی وو. دغه شورا د ښار چارواکو ته ځانګړې شوې وه، چې د پاکستان په نامه، مجلس شورا غونډې د حکومت لپاره څوک نه نوماند کېده. د کانالونو او سوداګريزو لارو ساتنه، د حکومت دننه امنيت ته پاملرنه، د ښاريانو حقوقو ته درناوی او د قضيو حل و فصل مجلس شورا ته ورپه غاړه وې. د مجلس شورا سربېره، ښار کې به د مشرانو شورا/جرګه هم وه. دغه دواړو مجالسو کې به زياتره پريکړې د رايو په مناسبت نه، بلکه په يوه خوله سره کيدلې، کټ مټ د قبيلويت د نظام په څېر، چې يو ډېر پخوانی دود دی.

خو دا حکومتي نظام تر ډېره پاتې نه شو، ځکه ښاري حکومتونو به ورځ تر بلې پرمختګ کاوه او د دولت رامنځته کولو لپاره به يې هر وخت پر يو بل حملې کولې. دغه حالت، د شخصي حکومت په تړاو ډېرې مثبتي اغيزې راوپارولې. ځکه د جګړې په وخت کې به ټول اختيارات د پوځ سپه سالار ته وسپارل شول، نو هغه به د مرکزي حکومت يو سياسي ځواک ګڼل کېده. سومريانو به دغه کس ته[لوګل] ياني د ستر شخص خطاب کوه. په لومړيو کې به د لوګل منصب لنډ مهاله وو او له جګړې وروسته ټول اختيارات بېرته مجلس شورا ته وسپارل شول، خو بيا به هم د بېړنيو حالاتو پريکړه لوګل کوله، ځکه بېړني حالات ورو - ورو له لنډمهال څخه اوږد مهال ته واوښته او پکښې به د لوګل ګټې نغښتي وې. په دې سره به، د پوځي ځواکونو مشرانو، د حکومتي مشرانو/حاکمانو ځای خپل کړ. د بېلګې په ډول، د ګلګمېش په داستان کې دهغه په ستراتيژۍ ګوتنيونه شوې، ځکه هغه مجلس شورا ته هېڅ ډول درناوی نه درلود. «ګلګمېش د مجلس شورا تالار ته په زوره را دننه شوی، که څه هم دغه ملکيت د ښاريانو دی» له يادې خبرې واضح مالومېږي، چې د مجلس شورا به خپله باچاهي وه او د وخت باچا به هم له اجازې پرته د ورتګ اجازه نه درلودل. په کورنيو کړنو کې به يې هم کومه مداخله نه کول، خو کله چې د باچاهانو ځواک زيات شو، نو مجلس شورا له مېنځه ولاړه. باچا به په خپله ځانته وزيران ټاکل او هغو سره به يې مشورتي ناستې کولې؛ په دې ډول به، د ښاريانو حقوق تر پښو

لاندي شول. د ملوکیت/شاهی په دغه دوره کې که څه هم باچا د هیواد ستر څواک بلل کېده، خو د مقننه او اجرائیه قوې ټول اختیارات ملایانو/مذهبي پیشواوو سره وو. مذهبي لاربنودانو به د مذهب مطابق قانون جوړوئ او دا به یې هم واضح کړه، چې د مذهب له مخې څه حرام دي او څه حلال، مذهب د پلانکي جرم لپاره کومه جزا ټاکلې او خلکو ته یي کوم کوم فرایض ورپه غاړه کړي دي؟ پایله دا شوه، چي باچاهانو ته د مذهبي علماوو په مرستو نور هم څواک ورپه برخه شو او هغو په مذهبي توگه جواز هم ترلاسه کړ. کله چې باچاهانو حکومت خپل کړ، نو زیات عبادت ځایونه یي ودان کړل. د عبادت ځایونو په قوانینو کې کومه مداخله هم نه کوله، بلکې د عزت په سترگه به یې ورته کتل. د عبادت ځایونو په جوړولو کې ټولو وگړو ونډه درلوده؛ یانې د هغوی مذهبي فریضه گڼل کېده. د دغه دود پیل به باچا کاوه؛ څکه د بابل، سومر او اسور څخه داسي نسخې موندل شوي، چي باچا به په سر ټوکری گرځوله تر څو عبادت ځایونو ته چنده ټوله کړي. مذهبي لاربنودانو دغه کار ته ښه راغلاست وویل. هغوی به باچاهانو سره اوږه په اوږه ولاړ ول او دوی ته به یې د خدای د نماینده خطاب کوئ. د باچاهانو په حق کې چې هغو دا مقدسه فریضه د ٦ زرو پیړیو په ترڅ کې پیله کړې وه، نو د ملوکیت تر زواله په ختیځ او لویدیځ کې تر ډیره دود پاتې شول، څکه خو په اسلامي دورو/ ادوارو کې هم باچا ته د ظل الله (د خدای د نماینده) لقب ورکول کېده. قاضی مارودی په[احکام السلطانیه] کې، امام غزالي په[ نصیحت الملوک] کې، نظام الملک طوسي په[سیاست نامه] کې، ابونصر فارابي په[الارامدینته الفاضله] کې او ابن خلدون په[ تاریخ] کې اطیعوالله اطیعوالرسول او د اولی الامرمنکم غلط او غیري تاریخي تفسیرونو په ترڅ کي د وخت د باچا د اطاعت کوم درسونه چې مسلمانانو ته ورکړي، هغه د غیر مسلمانو د مذهبي لاربنودانو سره چندان توپیر نه لري.

په پخوانیو وختونو کې حکومت دومره وس نه درلود، چي پوځ او پولیسو ته معاشونه ورکړي؛ یانې په دغه دواړو څواکونو د حکومت ساتنه وشي. د تگ او راتگ اسانتیاوي هم ډېري کمې وي؛ ځکه خو باچاهان له ډېرو خنډونو سره مخ کېدل او حکومت په ډاډه زړه کوم کار نشوای کولای. د ژوند د حالاتو تقاضا وه، چې داسي نظریي باید وړاندې شي ترڅو خلک په حکومت باندې پوه شي او د حکومت قوانینو ته ژمن او پابند وي. (سبط حسن، پخواني افکار)

نن هم په ډېریو ځایونو کي، په دغه ویناوو باندې عمل کېږي ځکه خو په نړۍ کې داسي یو حکومت شتون نه لري، چي ترشا یې کومه مخکینی نظریه نه وي. دغه ډول حکومت درلودل یوازې د

پاکستان انفرادي ځانګړنه نه ده. د حکومتونو په تشکیل کې تر ډېره د عقایدو او افکارو اجاره داري مذهبي لارښوونکو پر غاړه اخیستې او د وګړو په ذهنونو دوی حکومت کوی، ځکه خو د حکومت لومړی تشکیل مذهبي وو. دغه وجه ده چې بابل، مصر، ایران، یونان، فلسطین، هندوستان او چین ټولو هیوادونو کي لومړي حکومتونه تیوکراتیک ول، د وخت باچا ته به یې د خدای خطاب کوه، د خدای پیغمبر او مقرب بنده به یې باله او د حکومت ټولې کړنې، احکام او قوانین به یې په خدای پسې تړل. د ښاري حکومت اریک (لویدیځ عراق) باچا اتوهګل(۲۱۲۰_ ۲۱۱٤ق.م) خو د ټولو هغو باچاهانو یو لړلیک جوړ کړ، چې د دجلي او فرات سیندونو ته نږدې«له آسمانه راغلي/کښته شوي ول» د دغه لړلیک له مخې [آسمان څخه لومړی سلطان په اریدو کې کښته شوی وو] چې د سومري قوم تر ټولو پخوانی ښار وو. دغه سلطنت اته سوه پیړۍ او ٦٤ زره کاله دوام کړی او دغه اوږده مهاله دوره کې یواځې دوه باچاهان تیر شوي، بیا د کومې نامالومې پیښې په اساس سلطنت طبرا ښار ته یووړل شو. له هغه ځای څخه لهرک ته، بیا سیپر او اخر کې شرپک پورې ورسید، وروسته ځمکه سیلابونو لاندې کړه، له سیلاب وروسته [یو ځل بیا له آسمانه سلطنت را ښکته شو] خو دا ځل په کیش ښار کې. هلته ۲۳ باچاهانو د ۲٤ پیړیو په ترڅ کې حکومت وکړ، بیا کیش د جګړې وسلو له مېنځه یوړو او سلطنت ایانا (د اریک ښار مقدسي سیمې) ته منتقل شو. د اریک لومړی باچا میس کیاګ ګاشر وو، چې د خدای انو (لمر) زوی وو. [ هغه د مهندر پنډت/ پیشواوو او باچا وو]. اتوهیګل چې یو شاهي لړلیک جوړ کړی وو، د دغه زوی وو. (Durant, pp. 201 - 247)

په تیوکراسۍ کې قانون هم له پاسه راتله؛ د سپیڅلتیا او عظمت لپاره په هر ځای کې د خدای یادونه کېدل. د بېلګې په ډول، لومړی فرعون منیز (۳٤۰۰ ق.م) کښتنۍ او پاسنۍ مصر تر خپلې ولکې لاندې کړ، نو کله چې یې لومړی قانون جوړ کړ، دا دعوه یې کول، چې دغه قانون ماته د سپوږمۍ خدای (توت) را استولی. د منیز ځای ناستیو په دې باندې بسنه ونه کړل، بلکې خدایي اختیارات به یې خپله پرمخ وړل. هغوی د ستر خدای امون راع (لمر) زامن شول. نو ځکه خو دوی د مصریانو مذهبي لارښود او د حکومت باچا هم ول. د خدای د قوانینو د نزول طریقه هم تر ډېره یو شانتې وه. آسمانه پورې رسېدل شونې نه وه، نو د غرونو لوړې څوکې د خدای نښان وګرځېدې او باچاهانو ته به د خدای احکام پر غرونو ورکول کېدل. د بېلګې په ډول، د باچا حمورابي(۱۷۹۲_ ۱۷۵۰ ق.م) د قانون کومه نسخه، چې د پاریس لورو موزیم کې ساتل شوې ده، پورتنۍ برخه کې یې د لمر خدای د غره په

څوکه کې حمورابي ته د قانون کتاب ورکوي. باید په یاد ولرئ! چې د حمورابي قانون د نړۍ په سطح تر ټولو لومړی لیکل شوی قانون دی. د قانون ځینې کرښې یې داسې دي: «کله چې ستر خدای انوم او د ځمکو او آسمانونو باچا ان لیل، چې د ټولو برخلیکونو ټاکونکی دی، مردوک یې د ټولو انسانانو باچا وټاکه او بابل یې د هغه پر ستر نوم ونوموه او دی یې د نړۍ ستر شخص وباله، نو د ده په واسطه یو پیاوړی/مضبوط سلطنت رامنځته شو. دغه وخت انوم او ان لیل بیا زه نوماند کړم. ښاغلی مردوک چې له چا خوښ دی، د هغه کړنې د عشتار میرمنې خوښې دي، څوک چې د قانون احکام پر خلکو مني. همغه مهال مردوک زه پوه کړم، چې تر لاس لاندې خلکو ته دې سمه لاره وښایه او د هیواد ساتنه وکړه نو ځکه ما د هیواد په ژبه قانون او انصاف ته لاره هواره کړه.»

ویل کېږي، د کریټ ټاپووزمې باچا مینوس ته هم زیوس خدای د قانون نسخې د دکتا پر غره وسپارلې او یونانیانو عقیده درلوده، چې د قانون خدای (دیونوسیس) قانون په خپلو لاسو ځمکې ته کښته کړی. ایرانیانو عقیده درلوده، زردشت غره ته وختی او د خدای اهورمزدا څخه یې هیله وکړه.[په آسمان تندر ښکاره شو، آسمان ولړزیده او اهورمزدا پر غره راکښته شو] د قوانینو کتاب یې زردشت ته ورکړ، حضرت موسی سره هم دغسې پېښه شوې: «او خدای د سینا په غره راکښته شو، موسی یې د غره څوکې ته را وباله او ورته یې وویل، چې زه تاته هغه قوانین سپارم، چې ما خپله لیکلي دي تر څو ته هغه ولولې او ترخلکو یې ورسوې». (کتاب خروج، ۱۲ـ ۲۴ م)

دغه ډول ستر داریوش(۵۲۲_ ٤٦٨ ق.م) په خپل یو لیک کې چې د نقش رستم پر غره کېندل شوی، په ډاګه اعلان کوي: «د لوی خدای اهورمزدا په نامه چا چې ځمکې او آسمانونه پیدا کړي، چا چې انسانان پیدا کړي او داریوش یې باچا ټاکلی، د ډېریو باچاهانو باچا او د تر ټولو ستر باچا هغه دی، چا چې د دې پراخې سیمې باچاهي داریوش ته ورکړې، چیرته چې ډېر قومونه میشت دي».
(A.Buhler(Ed). Manus Simri, 1886, pp. 216 - 218)

د یونان په حکومت سپارټا کې هم قانون له آسمانه راغلی وو. ویل کېږي چې نامتو قانون پوه لائي کرګس (۸ پیړۍ ق.م) پر قانون جوړولو بوخت وو، نو ځکه ډیلفي ته ولاړ، چې د یونان تر ټولو سپېڅلی عبادت ځای او د غیب ویلو مرکز وو. بیرته چې راوګرځېد نو هغه اعلان وکړ، د قانون مادي/اصول پر ما له غیبه نازل شوي دي. پلوټارک لیکي، د قانون لیکلو په وخت کې کرګس د سپارټا

میشتو څخه ضمانت اخیستی وو، ترڅو چې زه بېرته راګرځم؛ تاسو قانون ته بدلون مه ورکوئ. کله چې هغه ډیلفي ته ولاړ نو بیا یې څرک هم ونه لګېده.

د الهي ملوکیت په برخه کې هندوستان، چین او جاپان هم له منځني ختیځ سره یوشانتي وو. د منوسومرت د تاریخ پوهانو له نظره، چې له میلاد څخه ۴۰۰ سوه کاله وړاندي مخکې لیکل شوی کتاب دی؛ د حکومت باچا/حاکم ته د خدای رتبه پکښې ورکړل شوې ده. [خدای؛ راجپت ته د خلکو د ساتنې او زېږون دنده ورکړې. هغه د اندرا، وایو (باد)، یم (موت)، سوریه (لمر) اګنی، ورونا، چندرما او ګوبیر (د دولت خدای) ناختمیدونکو ذراتو له یو ځای کېدو څخه جوړ دی. هغه د منوش په څیره کې تر ټولو ستر خدای دی. نو خبردار! تاسو هېڅکله هم د باچا له احکامو څخه سرغړونه ونه کړئ، که څه هم احکام په ثواب پوري اړوند وي، یا جزا پوري او یا هم د دواړو په مېنځ کې]. د منور حکومتي ځواک هېڅکله هم کومه پدیده نه پېښوي، بلکه جزا هم سپېڅلی عمل بولي ځکه (ډنډا) برهمن د خدای زوی او د ټولو وګړو ساتندویه دی. د پوهانو له نظره ډنډا او قانون دواړه مترادفي کلمي دي.

د چین باچاهان هم [د آسمان زامن] او پر ځمکه د هغه وارثین دي. دوی به د حکومت باچاهان او مذهبي لارښودونکي بلل کېدل. د باچاهانو هر حکم د خدای حکم ګڼل کېده او د هغو پریکړه به هم خدایي وه. که چېرته باچا په جګړې کې ماته خوړل، یا به وچکالي راغله، یا کوم دښمن په خپل زور تخت تري نیوه، نو داسي فکر به کېده چې خدای نه غوښتل نور دې دی خلیفه پاتې شي؛ ځکه یې له خلافت محروم کړ.

(Zimmler, 1953, p. 97)

د خدای دغه بنده، تر ۱۹۱۱ میلادي پورې په دغو ویناو/ قوانینو باندې په چین حکومت وکړ، په دې سره هلته جمهوري انقلاب رامنځته شو او دغه آسماني یا تیوکراتیک سلطنت یې د تل لپاره ختم کړو.

جاپان هم تر ۱۹٤٥ میلادي پورې له دغه وضیعت سره مخ وو. د باچا لقب یې د [ لمر خدای ] وو او جاپانیانو عقیده درلوده، هېڅوک هم نه شي کولای له باچا سره سترګو په سترګو خبرې وکړي. دغه خلک اوس هم د جاپان باچاهان دي، خو د دویمې نړیوالي جګړې وروسته کله چې هلته پارلماني جمهوریت پرانیستل شو، نو د باچا حیثیت/ رتبه هیڅ شوه.

د یهودیت، نصرانیت او اسلامیت له نظره د پیغمبرۍ او باچاهۍ لوړې رتبه خدای حضرت داود ته ورکړل. له ده تر مخه هېڅ یو پیغمبر هم د سیاسي اقتدار غوښتوونکی نه وو او نه هم خدای دوی ته ورکړی وو. آن حضرت موسی ته چې د بني اسرائیلو ساتندویه وو، نو بیا هغه کوم تېولنیز حالات ول، چې په پایله کې یې پخوانیو روایاتو/رسومو خپل ځای نویو روایاتو ته ورکړ؟ بنی اسرائیل ٤٣٠ کاله په مصر کې پاتې شول، خو کله چې په ۱۲۲۰ ق.م کې له هغه ځای څخه کډوال شول، نو د بایبل خروج کتاب له قوله د هغو نفوس تر ٦ سوو زرو څخه هم زیات وو؛ په حقیقت کې دا یوه ستره مبالغه ده. دغه خلک په ۱۲ قبیلو او سلگونو کورنیو وېشل شوي ول. د هرې قبیلې به یو ملک وو او یو د سپینږیرو مجلس شورا. دغه شورا به د قبیلې مسایل څېړل او د قوانینو په رڼا کې به یې پریکړې کولې. قبیلو به یوازې په بیړنیو حالاتو کې یو بل ته لاس ورکوه. دوی دومره خپلواکه او خپل سري ول، چې حضرت موسی (د حضرت موسی د قومیت په اړه، ۹ مخ) به د سفر په وخت کې دوی ته د یووالي درس ورکوئ. د څلویښتو کلونو په ترځ کې، د سینا او فاران له صحراوو څخه داسې جوته شوه، چې دغه خلک کنعان ته داخل شول، چیرته چې هغه ورځو کې د عملیقیانو، موابیانو او فلسطینیانو او نورو وړوکي - وړوکي حکومتونه جوړ سوي ول.

بني اسرائیلو قتل عام شروع کړ او د هغوی کروندې، باغونه او مالونه یې تر خپلې ولکې لاندې کړل. د چوروچپاول دغه لړۍ تر ډېره روانه وه آن تر هغه وخته چې بني اسرائیل په بیلابېلو او ځانته - ځانته قبیلو باندې په ویشل کېدو سره په بیلابیلو سیمو کې مېشت او ودان شول، خو پر مقدسې ځمکې د اوسیدو برسیره د بني اسرائیلو ټولنیز نظام بیا هم قبیلویت وه. ډېرو سیمو ته قاضیان واستول شول او هغو به د موسوي شریعت له نظره پریکړې کولې. دغه د تیوکراسۍ تر ټولو لومړۍ بڼه وه، خو تر دا وخته کوم حکومت نه وو او نه هم کوم کس ته شاهي اختیارات ورکړل شوي وو، ځکه خو د بایبل کتاب "قضا" کې دغه خبره بار بار تکرار شوې ده: «په دغو ورځو کې اسرائیل کوم باچا نه لره او هر یو وگړي به د خپل زړه خبره منله؛ هر څه به یې په خپل اختیار ترسره کول». (قضانه، ۱۷ څپرکی، ۱٦ مخ)

بني اسرائیلو د کنعان پخواني خلک قتل عام کړل، ځکه خو نږدې غیر اسرائیلي حکومتونو له دوی څخه کرکه کول او بني اسرائیلو به هروخت د وېرې احساس کوه. په مفته کې شتمن کېدل او د ذاتي ملکیت رواج په بني اسرائیلو کې کورنۍ جگړې پیل کړي وې او د قبیلو دننه طبقاتي خبري پیل شوې. په دغه حالاتو کې د مرکزي ځواک را برسېره کېدل ډېره اړینه موضوع وه. د دې مرکزي ځواک

په اړه یو ښکلی داستان د بایبل  کتاب(سموئیل) کې ذکر شوی. دا د هغو ورځو کیسه ده، کله چې سموئیل د بني اسرائیلو [قاضي القضات] وو. مولانا مودودي چې ویلي[سموئیل په دغو ورځو کې پر بني اسرائیلو حکومت کوه] ستره تېروتنه ده.  (مفاهیم القران، لومړی ځپرکی، ۱۸۵-۱۸٦ مخونه) . ځکه هغه چې د کوم  ځخه د سموئیل په اړه وضاحت ورکوي، په هغه کتاب کې سموئیل قاضي یاد شوی نه د وخت باچا.

«هغه ټول عمر د اسرائیلو قاضي وو. هغه به هر کال د بیت ایل، جلجال او مصفاه دوره کوله او په یادو سیمو کې یې د قضا دندې پرمخ وړلې. بیا به رامه ته بېرته راوګرځېد، ځکه هلته د هغه کور هم وو. هلته به یې هم د قضا کړنې پرمخ وړلې او هغلته یې د خدای لپاره یو مذبح [د قربانۍ ځای] جوړ کړ. کله چې سموئیل سپین ږیری شو، نو هغه خپل زامن د بني اسرائیل قاضیان وټاکل او بیا د هغه زامنو د پلار لاره پرېښودل، د ګټې لپاره به یې رشوت اخیست او د عدل و انصاف جنازه پورته شوه.د دوی د کړنو له کبله، د بني اسرائیل سپینږیري سره ټول شول او د سموئیل لپاره رامه ته ولاړل، هغه ته یې وویل[ ګوره ته ډېر سپینږیری شوی یې او ستا زامنو ستا لاره پرې اېښې ده. اوس خو کوم کس زموږ باچا وټاکه]». (د سموئیل کتاب، ۱۵ ځپرکی ٦، ۷او ۸ مخونه)

سموئیل د باچاهۍ له اصله خبر وو، ځکه خو پر هغه باندې د اسرائیلو خبرې بدې ولګېدې او هغه خدای ته شکایت وکړ. خدای ورته وویل، ته اوس د دوی خبره ومنه، دوی د باچاهۍ له اصله خبر کړه. سموئیل هغوی د باچاهۍ له اصله خبر کړل، چې خدای هغه ته ویلي وو او هغه بني اسرائیلو ته وویل، کوم باچا چې به پر تاسو حکومت کوي د هغه کړنې به داسې وي: هغه به ستاسو له زامنو ځخه غلامان جوړوي او د دربار نوکران به وي، دوی به اړ وي د باچا هر ډول امر پرځای کړي، دوی به په کروندو کې کار کوي او فصلونه به ریبي، د جنګ لپاره به وسلې جوړوي. ستاسو لوڼې به د ده د کور هر ډول کار کوي؛ له کالیو مینځلو نیولې، تر ډوډۍ پخولو پورې. ستاسو ځمکې، کروندې او د زیتون باغونه به خپل خدمتګارانو ته ور وبخښي، په دې سربېره به ستاسو د محصولاتو لسمه برخه هم اخلي، چې خپل خواجه ګان او خادمین پرې ماړه کړي. ستاسو د مالونو/ پسونو او غوایانو لسمه برخه به هم د ده ملکیت ګڼل کېږي (عشر له اسلام ځخه زرګونه کلونه مخکې هم روا وو.) تاسو به د باچا غلامان یاست. (د سموئیل کتاب، ۱۰ ځپرکی ۸-۱۸ مخونه)

خو د باچاهۍ دغې ځرګندې بنې هم پر اسرائیلو کومه اغېزه ونه کړه او هغو ټینګار کوئ: «نه، موږ باچا غواړو، تر څو زموږ مشر وي، چې موږ هم د نورو قومونو په څېر شو؛ زموږ باچا به عادله وي، په ورځني ژوند کې به زموږ لارښود وي او زموږ لپاره به جګړه کوي.» په پای کې، سموئیل مجبور سو او ساول یې باچا وټاکه، چې د بني یامین قبیلې د یو (غښتلي سورما) زوی وو. ساوول پر اسرائیلو ۱۳ کاله (۱۰۲۵- ۱۰۱۲ ق.م) حکومت وکړ، خو تر پایه پوري یې له سموئیل سره جوړه نه وه. پایله داسې شوه، چې د ساوول له کړنو خدای هم ناخوښ وو او د هغه له مړینې وروسته یې حضرت داود ته د هغه د زامنو پر ځای باچاهي ورکړه. حضرت داود د ده له ساتونکو څخه وو او د بني اسرائیل له یهودا قبیلې سره یې تړاو درلود. د ساوول د باچاهۍ داستان قرآن شریف کې هم ذکر شوی، خو ځیني خبري یې له بابیل سره زیات توپیر لري. (د بقری سوره، ۳۴۵-۳۴۶)

حضرت داود هغه مهال مشهور شو، کله چې هغه د فلسطین نامتو پهلوان جالوت سره مخامخ شو او د جګړې په میدان کې یې ماته ورکړه او ویې واژه. ساوول وډار شو، چې زما له مړینې وروسته به داود د باچاهۍ دعوا کوي؛ نو هڅه یې پیل کړه، تر څو داود له مخې چپ کړي، خو داود ترې وژغورل شو. د ساوول له مړینې وروسته د باچاهۍ رتبه خدای حضرت داود ته ورکړل. د خدای په مرستې هغه کفارو ته ماته ورکړه او له هغه سیمې یې ورک کړل. خدای حضرت داود، په ډېرو څېزونو هم پوه کړ، چي که خدای داسي څه نه وکړي، نو شته نظام به ویجاړ وي، خو د نړۍ پر انسانانو د خدای زیات کرامات دي. (ایضا، ۲۵۰ مخ)

د ساوول په زمانه کې امامت او خلافت دواړه جلا منصبونه ول، خو کله چې حضرت داود باچا شو دواړه یې یو کس ته وسپارل. د حضرت داود زوی حضرت سلیمان وروسته دواړه پدیدې بېرته جلا شمېرل کیدې او دوو بیلابېلو اشخاصو ته ورکول کېدل. کېدای شي دغي تجربې کومه مثبته پایله نه درلوده. په پخوانیو زمانو کې، د الهي حکومت نظریې یو عقیدوي اړخ خپل کړی وو. کفارو، مشرکینو او مؤمنینو داسې انګېرل، چې حکومت او د هغه قوانین له آسمانه راغلي، یانې د حاکمیت او قانون منبع د حکومت وګړي نه؛ بلکه دا یو بهرنۍ ځواک دی. د هغه په خوښه یو کس د حکومت حاکم کیږي. د خلکو فریضه ده، چې د وخت د باچا اطاعت او قوانینو ته یې غاړه کیږدي.

د الهي حکومت نظریې په فیوډالي دورې کې هم تر ډېره رواج درلود، ځکه د یادې نظریې تبلیغ د باچاهانو په ګټه وو. بله دا چي د الهي حکومت له زوال سره - سره په ټولنیز ژوند کي کوم بدلون

رانغی. د پخواني اقتصاد نقشه د تېر په څېر پاتې شول. نه په اوزارو کې کومه تبديلي راغله او نه هم توليدي اړيکو بدلون وموند. په الهي حکومت کې، ځمکې د عبادت ځايونو ملکيت شمېرل کيدې. په فيوډالي دور کې، ځمکې د باچا او د هغه د وزيرانو ملکيت وو. د ارسطو له قوله بزگر، کارگر او غلام (ژوندي اوزار) ول او هماغسې پاتې شول. پخوانی کرنيز نظام د تېر په څېر پاتي شو، يوازي باچا/حاکم بدل شو. نو په کرنيز نظام کي کومې بلې نظريې رواج ونه موند، ځکه کرنې سره تړلي طبقې فکر کوه، هرڅه د خدای په خوښه کېږي. د علم او شعور نيمگړتيا وه او هغوی هم هڅه نه کول، په څه پوه شي. دوی ته ويل کېدل، چې بارانونه، سيلابونه، وچکالۍ او نور طبيعي آفتونه د دوی په اختيار کې نه دي. مذهبي لارښونکو هم دوی ته دغه درسونه تکرارول: «هر څه د آسماني ځواکونو په خوښه کېږي، ځکه خو به خلکو آسمان ته سترگې نيولي وې. دوی به خپل شخصي ژوند هم د وخت د باچا په خوښه تېروی، نو په داسي يوه ټولنه کې خلکو ته دا باور ورکول کوم ستونزمن کار نه وو، چې قوانين له آسمانه رانازل شوي او کېږي به.

تيوکراسي يوازي د فيوډالي حکومت نظريه نه وه؛ ورسره د ټولني د ژوند تېرولو ستر قانون هم وو. له زېږون تر مړينې پورې داسي يو اړخ شتون نه درلود، چې انسانانو به له مذهبي احکامو پرته پر مخ بيوئ. د زېږون، سنتي، زده کړو، مذهبي ورځو، کوژدې او واده او د جسدونو خښولو دودونه، د مړي د سوځولو او خښولو وروسته هم ترسره کېدل. تر دې سربېره، د غسل کولو، غاښونو پاکولو، کښېته، پورته کېدو، څښلو او خوړلو، خوب او آن له مېرمنو سره د کوروالۍ اخلاق هم نغښتي وو. د عبادت قوانين هم پر دوی باندې اجباري وو. (د تفصيل لپاره دې امام غزالي کيميا سعادت او د شاه ولي الله کتابونه وگورئ).

د تيوکراسي افيون خو د دوی راتلونکی برخليک ټاکه. باچا، د شاهي کورنۍ وگړو او درباريانو د يوازې د وضع کړي/شوي شريعت واجبي عبادتونه ترسره کول. باچا به له خپل حکومت د باندې، د بل حکومت قانون او شريعت دروغ گڼئ او چې به موقع په لاس ورغله، نو لښکر کشي به يې پرې وکړه. که چېرته د شاهي کورنۍ وگړو او درباريانو د باچاهانو د وژلو پلانونه نه جوړل، نو نه به پر ځمکې د خدای نماينده گان له منځه تلل او نه به هم شاهي کورنيو بدلون کړی وو. څوک به د زهرو له لارې قتلېدل او څوک به د ترخو اوبو په وسيله. د اسرائيلو په ۱۹ باچاهانو کې ۸ قتل شوي. د قيصر روم پايله هم همداسي وه، چې د روم ستر خدای بلل کېده. د ايران په قاجاري باچاهانو کي يوازې يو

باچا په خپل مرګ نړۍ څخه سترګې پټې کړې. د ډیلي د باچاهانو پایله هم همداسې وه. د غلامه کورنۍ ۱۱ باچاهانو څخه پنځه قتل شوي، خیلجیانو کې ٦ څخه څلور او تغلقانو کې له ۹ څخه پنځه او یا زیات یې ړانده کړل شول.

تر هغه مهاله چې د حکومت او مذهبي لارښوونکو مذهب یو وو، نو هر ډول قوانینو ته احترام کېدی، خو کله چې حکومت په سلطنتونو باندې وویشل شو هر څه بدلون وکړ. په همدې توګه د رعیت او حکومت تقابل یوې بلې بڼې ته لاره هواره کړل. د بېلګې په ډول، بني اسرائیل د یوه خدای منونکي ول او د موسوي شریعت پیروان ول. کله چې اسرائیلي سیمې د رومیانو په ولکې کې ورغلې، نو رومیانو غوښتل چې خپلو قوانینو ته رواج او د عمل جامه ورکړي، نو اسرائیلو د هغو پر وړاندې پاڅون وکړ. پایله یو ځل بیا جګړې ته شوه، په پای کې پدغې خبرې هوکړه وشول، چې د یهودیانو قضیې به یهودي محکمې کوي، خو د سلطنت د ښاري حکومت درلودلو په حیث یهودیان باید رومي قوانینو ته درناوی وکړي. د دغې تجربې په باره کې، حضرت مسیح خپلو پیروانو ته داسي ویلي ول چې: سیزر ته د هغه حق ورکړئ او خدای ته د هغه، په دې سره حکومت له مذهب څخه جلا شو. اوسني علماء، د حضرت مسیح له دغې خبرې سره خلاف دي، خو پوښتنه دلته ده، که چېرته په حکومت کې د یو مذهب خلک ډېر کم وي، نو د حکومت قوانین دوی باید څنګه پر مخ یوسي. د برتانیې په حکومت کې د مسلمانانو نفوس ډېر کم وو. نو ځکه خو دوی د نورو غوندې د انګلیس د قوانینو پیروي کوله او د حضرت مسیح په خبرو به یې عمل کوه. انګرېزانو له کومې وېرې پرته پوځي اصول، مذهب او ملت ټوله هیواد کې پرانېستل، خو د هغو ټولنیزو قوانینو تړاو چې په ځانګړې توګه مذهبي وي، د مسلمانانو او هندوانو لپاره جلا - جلا اماده شوي ول. د بېلګې په ډول، واده او طلاق، میراث، اوقاف، د عبادت ځایونو او دیني جماتونو ساتنه. نن هم یوازې د هندوستان سربېره د نړۍ په نورو هیوادونو کې لکه برتانیې، جرمني، امریکا، برما، تایلینډ او چین کې په میلیونونو شمېر شتون لري او د (سیزر حق اداکولو) پرته کومه چاره نشته.

فیوډالیزم کې هم د باچا مذهب د حکومت ملي مذهب شمېرل کېدی او قوانین هم د مذهب له مخه وضع کېدل، خو له دې تاریخي حقیقت هم سترګې نه شوپټولای، چې د مطلق العنانو باچاهانو په دوره کې مذهب د حکومت تابع وګرځېد او د حکومت سیاسي موخې به د شرعي احکامو پرته شمېرل کیدې. کومو شرعي احکامو چې له سیاسي موخو سره تړاو درلود، نو هغسې به پرېښودل شول،

خو که چېرته د حکومت بنسټېزو موخو ته د شرعي احکامو له ټکر سره کومه وېره لېدل کېده؛ نو پادریانو، پنډتانو او مفتیانو ته به معاشونه ورکړل شو، ترڅو هغوی د حکومت په حقه پریکړې وکړي. په تیوکراتیک حکومت کې، د هیواد باچا او مذهبي اداري د ژرندې دوې پرې وي، چې خلک به یي پکښې اوړه کړل. یانې د دواړو ادارو د کړنو او صلاحیتونو بنسټ خپله خدای یا خدایي احکام ول. (خلکو سره د هېڅ کوم شي فکر نه وو، ځکه ټول ویده ول) حکومت کې دوی کوم حق نه درلود. د هیواد ټولنیز او اقتصادي نظام څنگه دی، د هیواد مشر څوک دی، د حکومت سیاسي موخې څه دي، قانون چا جوړ کړی، محاکم باید څه ډول وي؟ دغه ټولي پریکړې یوازې د هیواد باچا ترسره کولای شي، هغه اړ نه دی، چې د خلکو پوښتنې حل کړي او نه هم څوک دومره جرائت کولای شي چې د هیواد له باچا پوښتنې وکړي. مذهبي لاربښوونکو به له حکومت سره هر ډول مرسته کول او په مقابل کې حکومت دوی ته معاشونه ورکول. څوک به قاضي شو، څوک مفتي او محتسب. ځیني خلک چې به له دغو منصبونو پاتې شول، نو هغو به د تبلیغ چارې پر مخ وړلې. هغو علماوو چې لیک کولای شوای، نو زموږ د عبرت لپاره یې داسي کتابونه لیکلي، که مسلمانانو پر هغو خبرو یا کړنلارو عمل کړی وای، نو نن به هم ترکیه، ایران او مصر کې مطلق العنانه باچاهي وه او نن به هم الجزایر، لیبیا او شام او نور د لویدیځ تر استعمار لاندې ول.

د الهي حکومت تر زوال وروسته، مذهبي لاربښوونکو بیا هیڅکله هم په ختیځ کې واک ترلاسه نه کړ او نه هم دوی د تخت او سلطنت هیله درلوده. د هندو باچاهانو په دوره کې، د سلطنت چارې د دهرم شاستر(کتاب) له قوله دوهم پوړ(چتریانو) ته ورکړل شوی وو او برهمني لاربښوونکو (پنډتانو) به باچاهانو ته مشورې ورکولې او مذهبي چاري به هم دوی پر مخ وړلې. په مسلمانانو کې هم د بني امیه کورنۍ، بیا تر عثمانیانو او مغولو پورې هیڅ یو مذهبي لاربښود د حکومت مشر نشو. د رومي کلیسا غوندې، دلته کوم مذهبي حکومت جوړ نه شوترڅو دوی پخپله د حکومت چارې پر مخ یوسي. که کوم مذهبي لاربښود به د حکومت غیر شرعي کړنو سره مخالفت ښوده، یا خو به یې قتل کړو یا به زنداني وو او یا به یې هم ښه ووهه. امام ابوحنیفه ۱۲ کاله زنداني وو او هغلته مړ هم شو. امام احمد بن حنبل یې په لوخ بدن/ ملا دورو باندې ووهه. دغه ډول جزاء د مدینې عباسي والي جعفر ابن سلیمان، امام مالک ته ورکړه. قدریه او معتزله فرقې د سواد اعظم له مخې کافر ول، نو دوی به یې په ډاگه قتل کړل او کله چې د مامون رشید خلافت پیل شو، نو دوی ته آزادي ورکړل شوه، دوی له هغو علماوو

سره هماغه چلند وکړ، چې مخکې له دوی سره شوی وو. ستر صوفي او ديني عالم شيخ شهاب الدين سهرودي د صلاح الدين ايوبي په امر قتل شو، ځکه د هغه پوهه او علم (د اسلام) لپاره ستر ګواښ وو. که څه هم ديني علماء، له دين سره تړلي هم وي، خو بيا هم د حکومت لپاره ډول - ډول دولتي کړني ترسره کوي او يا هم دربار څخه ليري د مذهب لپاره تبليغ کوي، خو دوی په عمل کې له سياسته ډېر ليري او پاک وي. برعکس، په لويديځ کې عيسوي کليساؤ ستر سياسي ځواک خپل کړ او يو ځل بيا روښانه شول. زياتره پادريان تر عيسوي دورې وړاندې روم کې اوسېدل، خو روميانو د عيسويانو وينې په ډېرې بې رحمۍ سره توی کړې. لومړی باچا قسطنطين (۲۷۴- ۳۳۷ ميلادي) چې کله عيسوي شو، نو يې عيسويت د سلطنت دولتي مذهب کړ، چې ورسره سم د کليسا عظمت نور هم زيات شو. پاپ ويل، هغه پر ځمکې د يسوع مسيح خليفه دی او په دې سره عيسويت د سلطنت دولتي مذهب ګڼل کېږي، نو بايد قانون هم د عيسويت له مخې وي او محاکم هم بايد مذهبي بڼه ولري. د عيسويت په اړه درس ورکول يوازې د پاپ دنده ده، نو مقننه او قضايه قوې بايد د کليسا تابع وي. په اروپا کې چې، کله د بازنطيني باچاهانو واک زيات شو، نو ورسره د کليسا عظمت نور هم زيات شو. پاپ زيات پادريان ښارونو او بانډو ته واستول. هماغسې چې په حکومت کې د بستونو مراتب وي، دغه ډول کليسا هم درلودلې. کارډنيل، ارچ بشپ، بشپ، د کليو پادري ټول به پاپ نوماند کړل او له هغه پرته اړ نه ول، د چا د امر تابع سي. دوی حکومتي محاکمو ته قضيې نه استولې، بلکې په مذهبي محاکمو کي به يې قضيې حل کولې. که دوی به نوي زېږيدلي ماشوم ته دعاء نه ورکول، نو هغه به له ذات څخه محروم وو. که د کوم کس نکاح به يې نه تړل، نو زامن به يې له ميراث څخه محروم شول. که به يې د کوم کس وروستی دود / جنازه نه ترسره کول، نو ياد کس به د جهنم مستحق وو. د پادريانو پرته هېڅ هم نشوای کولای، ماشومانو ته درسونه ورکړي، نه به کوم کس مدرسه جوړولای شوه. د انسانانو ټوله ژوند کليسا پورې تړلی وو، نو کليسا يوازې يو روحاني ځواک نه وو، بلکې د اروپا تر ټولو ستر شتمن او فيوډال په يوازې ځان رومن کليسا وه. د هسپانيې د ځمکو څلورمه برخه د کليسا ملکيت شمېرل کېده. د برټانيې د ځمکو پنځه برخه، د جرمني د ځمکو دريمه برخه او نيمه فرانسه د کليسا ملکيت شمېرل کېدل. د لانګری ولسوالی بشپ د يادې ولسوالی حاکم وو. د ايټاليا، بولونيا ښار ۲ زره کلي د کليسا په ولکې کې ول. دهسپانيې ۶۴ کلي او د فلدا ۱۵ زره کلي د کليسا په ولکې کې وې. د سينټ کال خانقه کې دوه زره غلامان ول، د ټور ښار پادري سره ۲۰ زره کارګر ول. دغه ټولې ځمکې خيراتي

وې، ياني کومه ماليه يا خراج ترې نه اخېستل کېده او حکومت هم پکښې مداخله نه کول. د يو تاريخ پوه له قوله (فيوډاليزم خو له کليسا يو فيوډال حکومت جوړ کړی وو). د محصولاتو لسمه برخه کليسا ته ورکول د هر يو وګړي مذهبي فريضه شمېرل کېده. د عبادت ځايونو د بيا رغونې لپاره به هم کليسا ته زياتي پيسې سپما کېدلې. د شتمنو او زمينداړو څخه دا هېله هم کېدل، چې د خپل ژوند په پای کې څه نه څه د کليسا په نامه کړي، که نه له نړۍ به بې دينه تللی وي او د جهنم په اور کې به وسوځي. په اتمه پېړۍ کې د منځني ايټاليې تر ټولو ستره سيمه د کليسا تر ولکې لاندې شوه؛ په دې سره کليسا يو خپلواک حکومت شو او د اروپا ټولو کړنو کې به کليسا په پراخه ډول مداخله کول. پاپ او مشهورو پادريانو به له شاهي کورنيو سره اړيکې درلودې او ښه ژوند يې درلود. هغو به ودونه نه کول، خو همکارانې به يې درلودلې او زامنو به يې د شهزاده ګانو غوندې ژوند کاوه. د کليسا ټوله شتمني ځمکې وې، نو ځکه به پادريانو هم فيوډالي نظام خوښوئ. هغو به سوداګرو او صنعت کارانو ته بد رد ويل، ځکه د هغوی هم نه خوښېدل، نو د دوی د پرمختګ د مخنيوي لپاره يې د سودي کاروبار ممانعت وکړ. د رومي کليسا لومړی تقابل د فرانسې، جرمنې، هسپانيې او برتانيې له باچاهانو سره وشو. باچا د پاپ مذهبي/روحاني واک سره کومه ستونزه نه درلوده، بلکې له هغوی سره خلاف وو. پاپ به ويل حکومتي چاري هم بايد زما په واک کې وي. باچاهانو به له کليسا څخه دغه شکآيت هم درلود، چې پاپ او زياتره پادريان د باچا په مقابل کې د زياترو خپلواکو شتمنو سره مرستې کوي او دوی ته د کليسا ځيني کړني وربخښي. په ۱۴ پېړۍ کې، د سلطنت او کليسا تر مېنځ شخړه راپورته شوه؛ نو د فرانسې باچا څلورم فليپ پر روم حمله وکړه او پنځم پاپ کليمو يې زنداني کړ. د کليسا مرکز يې اونيان ته واستوی. د روم پاپ د ۷۰ کلونو په موده کې له فرانسويانو سره وو. په ۱۳۷۸ ميلادي کې، که څه هم پاپ آزاد شو او روم ته ولاړ، خو د کليسا پخوانی واک هيڅکله هم بېرته تر لاسه نشو. لويديځوال د کليسا د زرو پيړيو واک ته، د (جهالت يا د تيارې دورې) خطاب کوي. ځکه د څوارلسمې پېړۍ تر پايه پورې هلته تعصب، تبعيض او د وهمپالنه پرستۍ رواج وو. کليسا پر شعور توره تياره جوړه کړې وه او هېچا به هم جرائت نشوای کړای، چې د کليسا پر مذهبي اړخونو نيوکې وکړي. هر ځای به مذهبي څارنوالۍ وې او زياتره پريکړې به د داد له مخې کيدلې، نه د فرياد. ډېر خلګ د بې دينۍ او جادوګرۍ په تور ونيول شول. د دوی مړي به په سړکونو ښکته او پورته کېدل او په پای کې به

وسوځول شول. کورونو ته یې به اور ورته شو او شتمنۍ به یې لوټ کړل شوې. د اروپا هغو خلکو چې باچا سره اړیکي نه درلودې، نو کلیسا به پرې زیات ظلمونه کول.

په دغه ډول چاپېریال کې به علومو او فنونو څنګه پرمختګ کاوه؟ پر زده کړو بانديې به د کلیسا اجاره داري وه؛ د زده کړو په مرکزونو کي به یوازې هغه علوم تدریس کېدل، چې د کلیسا ګټې به پکښې نغښتي وې. د معقولاتو پر ځای به منقولات تدریس کېدل. د پرمختګ ځای تېرو دودونو اشغال کړ او د اجتهاد ځای تقلید. هېڅ یو استاد او شاګرد اجازه نه درلوده، چي پر شرعي احکامو نیوکې وکړي. د کلیسا دغه ډول سیاست زیات ذهنونه فلج کړل او هیڅ یوه شخص به فکري آزادي نه درلوده، خو د منځنیو پېړیو په پای کې، کله چې اروپا او په ځانګړي توګه ایټالیې د صنعت، حرفو او سوداګرۍ ستر ښار شو، نو په ټولنیزو حالاتو کې ډېر بدلونونه ولیدل شول. کلیسا د اروپا تر ټولو ستر فیوډالي مرکز وو، نو د پانګوالي طبقې پر مختګ د ډېریو نورو عناصرو سره د کلیسا ګټې هم له خاورو سره خاورې کړې. ونیس، فلورنس،جینوا او میلان خورا پرمختللي ښارونه ول. په دغو ښارونو کې د سوداګرو جمهوري حکومتونه جوړ سول. وینس کې د اوسپنو، وریښمینو جنجیو او ښېښې جوړونې سترې کارخانې جوړې شوې. دغه ښار دوه سوه سوداګریزي کښتۍ درلودلې، چې مالونه به یې مصر، تونس، ترکیې او هسپانیې ته لېږدول. د دې سربېره فلورنس یو ستر مارکېټ هم وو. هلته ۸۰ بانکونو د پیسو کاروبار کوه او د کالیو جوړونې فابریکې هم وې، په دغو فابریکو کي ۳۰ زرو کارګرو کار کوه. په جینوا کې د سرو او سپینو زرو ځېزونه جوړېدل. نوي پانګوالي طبقې د ایټالیا په ډېرو ښارونو مثبتې اغیزې خپرې کړي وې. په ښارونو کې د صنعت، حرفو او تجارت ګرم بازار کلي هم تر خپلې اغېزي لاندې راوستل. فابریکو او بندرونو کې د کارګرو کمی محسوس شو، نو هغه غلامان چي د شتمنو او پادریانو له څمکو سره تړلي ول د ښارونو پر لور رهي شول. فلورنس اعلان وکړ، هغه غلامان چې حکومت ته راغلي دي، ښاري حقوق لري او موږ اړ یو د دوی قانوني ساتنه وکړو. نورو ښارونو هم له غلامانو سره خواخوږي درلودل. د شتمنو او پادریانو طبقو له اوله د نویو ښاري حکومتونو سره ښې اړیکي نه درلودې؛ د غلامانو له تللو سره د دوی اړیکي له پانګوالي طبقې سره نورې هم خرابې شوې. په دغو ورځو کې دلویدیځې اروپا سوداګریزو مرکزونو نور پرمختګ هم کړی وو او باچاهانو د شتمنو او پادریانو په مقابل کې نوي پانګوالي طبقې ته غېږه خلاصه کړل. د بریټانیې په لندن او زیاترو نورو ښارونو کي ښاري حکومتونه رامنځته شول، خو په اروپا کي د ښاري حکومتونو سره کلیسا خپل

مخالفت وښود، په پایله کي د فرانسې ډېریو ښاري حکومتونو کلیسا سره جګړې پېل کړې. ډېر پادریان قتل شول او عبادت ځایونه ویجاړ شول. په پای کي، کلیسا ماته وخوړل او د لویدیځي اروپا ډېرو ښارونو، لکه مارسلیز، همبورګ او امیسټردام او نورو ښاري حقوق ترلاسه کړل، خو د سوداګریزو توکو په لېږد کي د اروپا زورواکو ډېر خنډونه جوړ کړي ول. که څه هم زورواکو له باچا سره نږدې اړیکي درلودې، خو په ډېرو سیمو کې یې ناسمي کړني ترسره کولې. دوی به خپلې محکمې، زندانونه، پولیس او پوځ درلود. سوداګرو به په ډېرو ځایونو کې خراج ورکوی او زورواکي به یې خوښ ساتل. د بېلګي په ډول، په رهائین سیند باندي ٦٢ پاټکونه، لوائر سیند(فرانسه) باندې ٧۴، الب سیند (جرمني) باندې ٣۵ او ډاینوب سیند باندې ٧٧ پاټکونه ول. که ناځاپه د یو سوداګر مالونه پر سړک ترې وغورځېدل، نو هغه به زیات ترې وګرځول شول. د پانګوالو او زورواکو تر مینځ ستر خنډ پاټکونه او دوهم ناجایزه خراجونه ول. پانګوالو عریضه وکړه، چي دغه پاټکونه دې له مینځه یووړل شي، نو باچا ورسره همغږی وو. ورسره سم د امریکا او هندوستان سمندري لارې وموندل شوې او نړیوالي سوداګرۍ ته لاري هواري شوې، خو د صنعت او سوداګرۍ مرکز له ایټالیا څخه لویدیځي اروپا ته منتقل شو. د امریکا او هندوستان سره د سوداګرۍ لپاره هسپانیا، پرتګال، هالینډ، فرانسې او بریټانیې کې نوي تجارتي کمپنۍ جوړې شوې (د ختیځ هند کمپنی ١٦٠٠ میلادي کې جوړه سوه). په دې ډول، د نوي پانګوالي نظام څرک تر ډېرو هیوادونو ورسېده او د کښتیو جوړونې صنعت ډېر پرمختګ وکړ. همدغه مهال په جرمني کې چاپ خانه جوړه شول (١۴٦۵ میلادي) او اغیزې یې تر ډېرو هیوادونو پورې ورسیدلې. د کتابونو له چاپ سره د ډېریو پادریانو ذهني اجاره داري ختمه شول. لیک او لوست هم ډېر شو او خلکو فکري آزادي وموندل. تر اوسه د لیک او لوست خلک یوازې مذهبي پادریان ول، خو د چاپ لړۍ دومره اغېزه وکړه، چې ورسره سم هغه لیکوالان راڅرګند شول، چي د کلیسا سره یې کومې اړیکي نه درلودې. داسې کتابونه هم خپاره شول، چې پکښې د پادریانو کړنې په ډېري ښو طریقو بیان شوې وې. ساینسي علومو او کشفیاتو هم په همدغه دورې کې پرمختګ وکړ او د فکر آزادۍ ته هم لاره هواره شوه. ځیني طبقې داسې انګېري، چې ساینسي نظریې او کشفیات د زمان او د مکان له قیده آزاد دي. یانې دغه کشفیات د چاپېریال له حالاتو سره کومه اړیکه نه لري، بلکې هر څه په ناځاپه ډول پېښیږي، خو د دې خبري حقیقت برعکس دی. د ګالليو تلسکوپ وي، که د نیوټن د ثقل نظریه، په بخاراتو د ماشینونو کار کول وي، یا د برېښنایي انرژي نظریه؛ دا ټول د

جمود ټولنيز حرکتونه لري. د دغو نويو ساينسي کشفياتو په مرستو، د کليسا افکارو او عقايدو ستره ضربه وخوړل. کليسا، د بطليموس نظام د خپل مذهب برخه ګرځولې وه. کوپرنيکس، ګاليلو او کپلر ثابته کړه، چې ځمکه د نورو ستورو غوندې د لمر پر مدار ګرځي. کليسا دعوه درلوده، چې ځمکه د فرش په شان پر اوبو باندې پرته ده. ساينس پوهانو ثابته کړه، چې ځمکه کروي ده او په خپل مدار کې حرکت کوي. داسي، د کليسا ډيري خبرې درواغ ثابتې شوې. په انجيل او مسيحي تعليماتو ډېريو خلکو نيوکي پيل کړې. کليسا د خپلو عقايدو په تړاو داسې بربنډې نيوکې نشوې زغملی؛ ځکه ساينس پوهانو ته جزاوي ورکړل شوې. برونو يې اور ته واچوه، که څه هم هغه په خپله پادري وو. ګاليلو يې مذهبي محاکمې ته وړاندې کړ، هغه توبه وايستل، خو په زړه کې يې وويل، که زه ووايم که ونه وايم ځمکه دايروي حرکت لري. د ساينس پوهانو کتابونه وسوځول شول، لوستل او ساتل يې جرم وو، خو صنعت کارانو له ساينسي کشفياتو څخه زياتي ګټې پورته کړې او ساينسي علومو سره د هغو مينه نوره هم زياته شول. د مارټين لوتر، تامس سنزر، زونګل او کالون مذهبي بغاوتونو هم د کليسا عظمت خاورو سره خاورې کړ. دوی په خپله پادريان هم ول، خو د کليسا له ظلمونو نور تر پوزې ورسيدل. ډېريو پادريانو به له پيروانو څخه په چل ول پيسې اخېستلي او هغو ته به يې د جنت زېری ورکوه. ولګرو به تعويزونه پلورل تر څو ناپوه خلګ خطاباسي. مارټين لوتر او نورو له پاپ څخه هيله وکړه، چې د دغه ډول کړنو مخنيوی وشي، خو په مقابل کې يې دوي له مذهب څخه محروم کړل شول. پايله داسي شوه، چي جرمني، شمالي اروپا، هالينډ، بلجيم، بريټانيه او ورسره سم هر ځای کې د پاپ په مقابل کې مخالفتونه پيل شول او پروټيسټانټ طبقې زور ونيوه؛ دوی له رومن کليسا سره اړيکي وشلولې. د دوی بنسټيز اصول داسې وو: چې د خدای او انسان تر مينځ د اړيکي لپاره د کومې وسيلې اړتيا نشته، بلکې هر يو کولای شي، چې انجيل په خپله ژبه ولولي، په خپلې ژبې دې عبادت وکړي او د خپل فکر او شعور مطابق دې عمل وکړي. د ټولنيزو او مذهبي انقلابونو اغېزې آن تر حکومتونو ورسيدې. تر اوسه حکومت د فيوډالانو ملکيت ګڼل کېده، خو په ټولنې کې د اقتدار ځواک ولړزيد، نو سوداګرو او صنعت کارانو له حکومت څخه د ښو اړيکو غوښتنه وکړه. د ښاري حکومتونو د دوستۍ لپاره دوی د خلکو د حقوقو خبري پيل کړې. د رومن کليسا خلاف لومړی بغاوت بريټانيې پيل کړو. اتم هنري (۱۵۰۹- ۱۵۴۷ ميلادي) کې له روم سره اړيکي وشلولې. د کليسا ځمکې ترې واخيستل شوې او پادريان يې د زده کړو له مرکزونو وشړل، خو د فيوډاليزم حکومتي نظريه، چي په

تیوکراسي باندې څرخېدله لا دود ول. اتم هنرې د دغې نظریې په مقابل کې له پاپ سره جګړه پیل کړل. بریټانوي پارلمان د لندن د سوداګرو تر اغیزې لاندې شو. دوی د باچا لومړی جمیز (۱۶۰۳-۱۶۲۵ میلادي) څخه شکآیت کاوه، چې هغه د پارلمان پرته مالیې وضع کوي، دولتي قرضونه اخلي، خلک بېځایه زنداني کوي او چې زړه یې وغواړي په هیواد کې پوځي حکومت حاکنوي. باچا به ویل: «موږ د خدای اصیل بنده ګان یو، زموږ هر عمل صحیح دی او تاسو د نیوکو حق هم نه لرئ» خو پارلمان د باچا له خبرو سره مخالفت وښود. د پارلمان او باچا تر منځ شخړه راپورته شول. پوښتنه دا وه، چې د ستر اقتدار مرکز پارلمان دی که باچا، چې د خدای د نمایندګۍ دعوه کوي. د پارلمان موخه دا وه: ښاري آزادي، واکونه، صلاحیتونه او پارلمان د بریټانیې پخوانی حق او میراث دی. د باچا کار د هیواد د اصولو او قلمرو ساتنه، مذهبي کړنې، قانون جوړونه، د قانون وضع کول او د شکایتونو اوریدل دي. دغه ټول موضوعات د پارلمان بنسټېزي موخې دي. (۱۶۲۱ میلادي). باچا د پارلمان دغه غوښتنې رد کړې. پارلمان یې ختم کړ او ډېر وکیلان یې زنداني کړل، خو خوځښت لا دوام درلود. کله چې د هغه زوی لومړی چارلیس (۱۶۲۵- ۱۶۴۹ میلادي) باچا شو، نو د پارلمان او باچا شخړې آن کورنیو جګړو ته لاره هواره کړل. په دې ډول، پنځه کاله زیات خلک قتل شول او لومړي چارلس ماته وخوړل. د هغه سر قلم شو او په بریټانیې کې جمهوریت رامنځته شو. د الهي سلطنت نظریه له باچا سره خاورې شوه. په ۱۶۸۸ میلادي کې که څه هم جمهوریت وو، خو فیوډالانو د پانګوالي طبقې سره سوله وکړه او بیا هیڅچا هم د الهي سلطنت نوم یاد نه کړو، چې ورسره سم هیواد د پارلمان تابع شو.

د تیوکراسۍ خلاف تر ټولو لومړی خوځښت په بریټانیې کې پیل شو، خو پاتې اروپا ته تر سلو کلنو وروسته ورسېدئ او بیا د فرانسې انقلاب تیوکراسي له خاورو سره خاورې کړل. د فیوډالیزم درې واړه بنسټونه سلطنت، کلیسا او زورواکي..... هر څه ختم شول او د رومن کلیسا خپلواکه هیواد چې د تیوکراسۍ تر ټولو ستر مرکز وو؛ یوازې د ۵۵ جریبه ځمکو مالکان شول. اوس هغه د روم یوه کوڅه یادېږي، چې نفوس یې تر ۱۰۰۰ پورې رسیږي.

په ۱۷ او ۱۸پیړیو کې اروپا د فکر او شعور ستر مرکز ګڼل کېده. په دې دور کې، صنعتي انقلاب رامنځته او ساینسي علومو ډېر پرمختګ وکړ. یانې په پای کې، د لویدیځې ټولنې هر څه بدلون وموند. فکر آزاد شو؛ ساینس پوهانو، فیلسوفانو او سیاسي مفکرینو د منځنیو پیړیو ناوړو عقایدو او نظریاتو ته د پای ټکی کېښود. بیکن، هابز، لاک، مالټن، والټیر، ویدرو، اولباخ، ایلوتیسئینس، ګي سند، ډیکارټ،

لامارتی، کانټ، اسپوونزا، لائیبنیز، روسو، هردډر او مانتیسکو غونډې روښانفکرو فیلسوفانو کتابونه به په زیاتې مینې خلکو لوستل او د جمهوریت، مساوات، د هیواد د چارو ادارې، د وېش صلاحیتونه، انسانیت، کمونیزم او سوسیالیزم خبرې وي. نړۍ د ټولنیز انقلاب یوې نوې دورې ته ننوتل.

د تیوکراسۍ پیل، اوج او زوال له دې څخه مالومېږي، چې تیوکراسي کومه تل پاتې او مقدسه حکومتي نظریه نه ده، بلکې د ټولنیزو حالاتو یوه تکاملي بڼه ده، چې د تاریخي اړتیاوو لپاره مینځته ته راځي، خو کله چې اړتیاوې پوره شي، بیا د وخت په تېریدو له مینځه ځي. تیوکراسي، د الهي سلطنت او فیوډالیزم نظریه وه. اوسني عصر کې، کله چې صنعتي انقلاب رامنځته شو؛ نو ټولنیزو حالاتو بدلون وکړ. ساینسي علومو د تیوکراسۍ د نظریو هر اړخ څرګند کړ او فیوډالانو غوښتل، چې یو ځل بیا نړۍ پخوانیو دورو ته یوسي. تیوکراسي د جمهوریت او جمهوري فرماسیون خلاف عمل کوي. تیوکراسي غواړي نړۍ یو ځل بیا د جهالت دورې ته یوسي. تیوکراسي د ساینسي علومو او ساینسي افکارو ستر دښمن دی. هغه د اجتهاد پر ځای تقلید ته او د تحقیق او پلټنې پرځای منقولاتو او روایاتو ته لارې هواروي. په تیوکراسي کې د وېرې له وجې له وګړو فکري آزادي واخیستل شي. تیوکراسي د ظلم او جبر وروستی حد دی، چې د خدای د حاکمیت په اړه تنګ نظره ملایان ځانته په خوښه حکومت جوړوي. فیوډالان غواړي، تیواکراسي حکومت دې یو ځل بیا رامنځته شي، تر څو انسانان له خپلو بنسټیزو حقوقو محروم شي.

# دويم څپرکی

# اسلامي حکومت

«ماته د پاکستان هغه ورځې يادې دي کله چې د پاکستان رامنځته کېدو نظريې په اړه زياترو مجلسونو کې بحثونه کېدل، خو په دغو بحثونو کې ما د هيڅ يوه له خولې وانه وريدل، چې د جهالت يوازينۍ سرچينه د دغې نوې حکومتي نظريې منل دي». (عبدالاسلام, ۱۹۴۱)

که ټولنيزه اداره وي، که عقايد او افکار؛ بايد د دغو پديدو د لا غوره څېړنې لپاره تاريخي اړخونه وپلټل شي. دغه عمل ته د تاريخي فلسفې په اصطلاح کې[تاريخي فکر/ ذهنيت]ويل کېږي. په همدغه اساس خو ديني علماوو د قراني آيتونو د نزول او څرنگوالي په اړه هر څه روښانه کړي؛ ياني کوم قراني آيت کله او د کومې موخې لپاره نازل شوی. ځکه تاريخ يوه حرکي او تغير منونکې پديده ده. په دې اړه علامه اقبال وايي:

سکوں محال ہے قدرت کے کارخانے میں

که غواړې د يوه شي په اړه پوه شئ، نو هڅه وکړئ، حقيقت يې د هغه څېز په حرکت او تغير کې وپلټئ؛ ځکه د کائينات/هستۍ هېڅ شی هم له حرکت پرته شتون نه لري؛ يانې د ټولني جوړښت، ټولنيزې ادارې، عقائد او افکار هر کله تغير او بدلون مومي.

علامه اقبال د نړۍ د تکامل او حرکت په اړه ډېر څه ليکلي دي. د ده له انده ژوندي موجودات د انسان په گډون د حرکت او تغير تابع دی('' په کاينات کې ثبات په خپله ځان کې د حرکت يوه بڼه ده؛ د هستۍ ثبات – په خپل ځان کې- هم د حرکت يوه بڼه ده ) هغه خپل مشهور نظم ساقي نامه کې ليکي:

فریب نظر ہے سکون و ثبات
تڑپتا ہے ہر ذرۂ کائنات

ٹہرتا نہیں کاروان وجود!
کہ ہر لحظہ تازہ ہے شان وجود
دمادم رواں ہے یم زندگی
ہر اک شے سے پیدا رم زندگی

علامه اقبال د همدغي نظريې په اړه خپلو نورو نظمونو[تکامل، وخت] کې هم ذکر کړی. په حقيقت کې تغير او تکامل د هغه د فکر يوه ډېره مهمه برخه ګڼل کېږي. ځکه خو هغه[خطباتي مدارس] کې پر همدغي موضوع يو هر اړخيز بحث کړی. د هغه له قوله د قرآن کريم له مخې:

«نړۍ يوه تغيرمنونکې پديده ده؛ داسې هم نه ده چې خدای پاک څرنګه پيدا کړې وي، همغسې دې پاتې وي. اوس دا په فضا کې د مادو مجموعه ده، چې وخت پرې کومه اغېزه نه کوي».
(Reconstruction of Religious Thoughts in Islam,P-55, 1962)

په شعري/شاعرانه انداز کې يې د خپلو زياتو نظريو يادونه کړې. ( هغه د اتومي فلسفې منونکی وو) علامه اقبال ليکي: «د خدای دپنځوني پروسه د تل لپاره روانه وي، نو ځکه خو موږ اتومونه نه شوشمېرلی. په هره شېبه کې نوي اتومونه مېنځته راځي او هستۍ په مسلسله توګه پراخېږي».(ايضا، ۶۷ مخ). هېڅ کوم شی پکښې ثابت او ساکن نه دی؛ (ايضا، ۷۰ مخ) /علامه اقبال د انساني وجود/بدن تکامل مني. دی، د انسان د تکامل نظريه د قرآن له مخې څېړي او د ابن مسکويه او مولانا روم سندونه وړاندې کوي. هغه ليکي، چې په مسلمانانو کې«د انساني تکامل نظريې ډېره وده کړې» (ايضا، ۱۳۲ مخ) د لا روښانتيا لپاره هغه د الجاحظ، البيرونی او ابن مسکويه د څېړنو پايلي ذکر کړي. د هغه له نظره/فکره[د مسلسل/ روان پنځوني فکر خالص يا سل په سله اسلامي دی]. (ايضا، ۱۳۸ مخ)

یہ کائنات ابھی نا تمام ہے شاید
کہ آرہی ہے دمادم صدائے کن فیکون

د علامه اقبال د يوې وينا سرليک دی [د اسلام له مخې د حرکت قوانين]. دهغه له انده [د اسلام له نظره د مدنيتونو خوځښت د نړۍ په اړه د جمود پخوانۍ نظريه ردوي. اسلام وايي نړۍ تل په حرکت کې ده]. (ايضا، ۱۴۶ مخ)ځکه «د اسلام له نظره د ژوند اساس خپله په تغير او بدلون کې نغښتی دی» (ايضا، ۱۴۷ مخ)خو[د اسلام له نظره د حرکت قانون کوم دی؟]. (ايضا، ۱۴۸ مخ)ياني اسلام د کومې نظريې پر اساس د حرکت پر قانون عمل کوي. علامه اقبال په ځواب کې وايي اسلام د

اجتهاد او فکر اړتیا ته شاه کړې او فقط څه چې لولي په هغه باور کوي. هغه د ماضي پالني او د تېر ژوند ډېر سخت خلاف دی. د هغه له نظره[د تیر تاریخ بې مانا درناوی یا احترام د کوم قوم لپاره اړین نه دی]. ( ۱۵۱ مخ, ایضا )د هغه له نظره [د تیر په اړه غلط تصور د اسلامي قوانینو دننه یوه لویه تېروتنه ده]. نو ځکه خو هغه د ترکانو ډېر تعریف کوي، ځکه هغو د فکر څخه کار واخېسته او د شخصي خلافت دورې ته یې د پای ټکی کېښوده.

دا نو د ښاغلي د فکر وړتیا ده، چې هغه د [مفکر پاکستان او حکیم الامت] په القابو یادېږي، خو د پاکستاني علماوو او ځینو سیاسونو د فکر انداز د علامه اقبال له فکر سره بېخي متضاد/ضد دی. دوی نړۍ جمود او ساکنه ګڼي؛ د حرکت او تغیر پدیدو څخه وېره لري. د دوی له نظره اسلام د تېرو جوړ بت دی، چې پر هغه باندې د وخت هېڅ کومه اغېزه نه وي. که څه هم تېرشویو ۱۴ پیړیو کې د ځمکې نقشې بېخي بدلون کړی. خپله د مسلمانانو ژوند تغیر کړی. زموږ ټولنیزو اړیکو، تولیدي ځواکونو، رسم او رواج، خوراک او پوښاک، د حکومت قانون، اخلاقي عادات، فکري ځواکونو،علومو اوفنونو هر څه بدلون کړی. اوس موږ د څراغ پرځای برېښنایي بتۍ/بلب لرو، د اوښ پر ځای موټري او الوتکې لرو. پر توشکو نه، بلکې پر تخت وېدېږو او څوکیو باندې ناسته پاسته کوو.

په پاونټین/لینک قلم لیکل کوو. تلیفون، ساعت، راډیو، تلویزون او یخچال کاروو. یانې، له زیاتو هغو شیانو څخه استفاده کوو، چې د نبي کریم (ص) او خلفاؤ راشدینو په زمانه کې د دغو څېزونو بېخي څرک هم نه وو، خو زموږ اوسني ملایان بیا هم له دغه ستر حقیقت سترګې پټوي او د دوی غوښتنه ده، چې ټولنیز نظام دې یو ځل بیا په شاتګ وکړي.

خو که حقیقت د زمان زمان او مکان له مخې جلا کړو، نو بیا به هم څرګنده نه شي، چې دا حقیقت په ځانګړې وخت او ځانګړې ځای کې رامینځته شوی وي، خو د ټولنیز نظام د بدلون سره ولې له مېنځه ولاړ؟ د بېلګې په ډول، د مریي ساتل په پخوانیو زمانو کې ډېر دود وو، ځکه خو ارسطو د مریيتابه نظام ملاتړی وو او د نبي کریم ( ص) په زمانه کې هم د غلام/ مریي ساتل رواج وو. مسلمانانو به هم غلامان ساتل، خو اوس د نړیوال قانون له نظره غلام ساتل، پېر او پلور جرم ګڼل کېږي. اوس که څوک ووايي: د غلام ساتل خو د نبي کریم(ص) په زمانه کې جایز وو، نو اوسنۍ زمانه کې هم د غلام او مینځو ساتل روا دي. (د مولانا مودودي له نظره). نو دهغه دغه ډول استدلال به غیر تاریخي وي. دغه ډول که څوک تېر وخت ته د اوسني عصر له هینداره وګوري او د اوسني ټولنیز

ژوند مطابق پر نبي کریم(ص) او ارسطو باندې دا نیوکه وکړي، چې دغو ښاغلیو ولې دغلام پر ساتلو بندیزونه ونه لګول؛ دغه نیوکه به هم غیر تاریخي وي. ځکه په دواړو حالاتو کې د غلامۍ پر اصل سترګي پټې شوي. د غلامۍ د رسم اصلي حقیقت د ننني ټولنیزو حالاتو له څېړلو وروسته څرګندېږي، چې د کومو اړتیاوو له وجې دود شوی وو. بیا موږ ته هر څه څرګندېږي، چې پخوانیو زمانو کې د غلام پر ساتلو ولي کوم بندیز نه وو او اوس ولي جرم ګڼل کېږي.

بل مثال د نبوي غزاګانو په اړه دی، چې معاصر تاریخ پوهان هغه د چور او چپاول سره تعبیره وي، د اوسني ټولنیز ژوند له اړخه که وکتل شي، نو دغو غزاګانو به سل په سله د چوروچپاول بڼې درلودې، خو که چیرته موږ تاریخ وڅېړو نو مالوم به شي، چې غزوې د عربانو ډېر پخوانی دود وو او د دښمنې قبیلې مالونه ولکه کول به کوم بد کار نه ګڼل کېده. نو د اوسني اخلاقو له نظره د غزاګانو په اړه بد او رد ویل ډېره ستره تېروتنه ده او دا به یوه غیر تاریخي کړنه وي.

دا هغه غیر تاریخي فکر دی چې د پاکستان ځیني ګوندونه غواړي یاد هیواد کې دې د نبي کریم(ص) او خلفاؤ راشدینو د وخت اسلامي حکومت رامنځته شي. د دوی له نظره په اسلام کې کوم تغیر او حرکت وجود نه لري. یانې، څنګه چې رانازل شوی، باید همغسې دې پاتي وي. دوی د فکر پر ځای تقلید او د څېړونو/څېړنو پر ځای یې منقولاتو ته د اسلام نوم ورکړی. هغوی دغه فکر هم نه لري/کوي، چې حکومت خو د ټولنیز ژوند او ټولنیزو اړیکو مطابق جوړېږي او کله چې ټولنیزي اړیکې او ټولنیز ژوند بدلون ومومي، نو حکومتي نظام هم بدلون مومي. د مدینې د حکومت غوښتونکو هیڅکله هم دغه فکر ونه کړ؛ د هغو ټولنیزو اړیکو له مخې چې هلته کوم حکومت رامنځته شو، نو بیا غوښتنه یې ستره بې عقلي ده. ځکه وخت هېڅکله هم پر شاه نه درومي. دوی د دې حقیقت موندلو لپاره هیڅ کومه هڅه ونه کړل، چې ولي او د کومو لاملونو له مخي، د خلفای راشدینو په دوره کې تضادونه رامنځته شول؛ په پای کې ۲۳ کلن خلافت له مېنځه ولاړ او ځای یې مطلق العنان حکومت ونیوه. تر اوسه خو د بني امیه او بني عباس «خلافت اسلامي» حیثیت لا نه دی څرګند شوی. کله چي د فتوحاتو یادونه وشي، نو پکښې د سند فتح هم یادېږي. یا که د عباسي دورې د علومو او فنونو د پرمختګ په اړه څرګندوني وشي؛ نو بیا دغو حکومتونو ته د اسلام نوم ورکول کیږي، خو که چیرې د دوی د ظلم، جبر او بې عدالتۍ خبره راپورته شي، نو مقابل اړخ یې داسې ځوابوي، چې: دغه حکومتونه زموږ لپاره د تقلید سبب نه دي.

راځئ! اوس به ولولو چې د مدينې حکومت په کومو حالاتو کې راڅرګند شو.

هر کس پوهېږي، چې د نبي کريم(ص) له نبوت تر مخه د حجاز په يوې سيمي کې هم خپلواک حکومت نه وو. د حجار شاوخواته ځېني تش په نامه حکومتونه ول. د بېلګي په ډول، د ايران ساساني او بازنطينې حکومت. حير او د غسان عرب حکومتونه او د يمن ډير حکومتونه د دوی تر ولکې لاندي ول، نو د حجاز اوسيدونکي د حکومتونو له اصله بې خبره نه ول. د سوداګريزو مالونو د پير او پلور په مناسبت، هغو به د دغو سيمو ليدني هم کولې.

خو دوی هيڅکله هم حجاز کې د حکومت جوړولو اړتيا محسوسه نه کړه. په مکې کې د بني اسد قبيلې يو شتمن، عثمان بن حويرث په نامه يو شخص وو، چې د بازنطينانو په مشورې يې د باچا کېدو پلان جوړ کړ، خو د همدغې قبيلې يو بل کس اسود بن المطلب دا هرڅه روښانه کړل. دغه پېښه له بعثت شل کاله وړاندې د نبي کريم(ص) قيام/پاڅون پر مهال مکه کې را مينځته شوې ده. ( Watt, 1965)

حجاز، په شمار درې ښارونه درلودل: مکه، طايف او يثرب(مدينه)، چې مهم ښار يې مکه او نفوس يې د لس زرو شاخوا کي وو. د کعبې له وجې، مکه په ټوله عرب کې ځانته مقام لري. د حج په مراسمو کې هلته د ډېرو لريو سيمو څخه زياتره خلک راتلل، هيڅ يو کس به له وسلې سره ښار ته نه داخلېده. د حج په شپو ورځو کې به مکې يو ستر بازار درلوده او د شاعرانو تر مېنځ به سيالۍ هم کيدلې. مکه تر ټولو ستر سوداګريز ښار هم وو. يمن، شام، عراق اوحبشې ته به سوداګريزې قافلې له همدغې لارې تېريدلې، د مکې اوسيدونکو به له دوی ماليه اخيستل. د مکې د اوسيدونکو شغل/مسلک سوداګري وه. ځکه ځمکې يې دومره شاړې وې، چې پکښې به حتی دخرماوو ونو هم کومه پايله نه ورکول او نه هم پکښې کښت کېده. دوی به د روپيو پير او پلور هم کوه (په عربو کې د بازنطينې سکو رواج وو) ويل کېږي، چې د مکې شاوخوا د سپينوزرو په کانونو پوښلې وه او قريشو به د سپينوزرو سوداګري کوله. (نعماني) خو دا جوته نشوه چې دغه د سپينوزرو کانونه د ټولو مشترک ملکيت ګڼل کېده، يا د يوې ځانګړې کورنۍ ملکيت وو.

په مکې کې د قريشو نفوس زيات وو، خو عيسويان، مجوسيان او د حنيفي دين(وحدانيت پرسته) پيروان هم په ډېره کمه اندازه مېشت ول. (د حضرت خديجه کورنۍ حنيفي وه) خو يهوديان بېخي نه ول. قريشو په يوه خدای عقيده درلوده. (Hitti, 1958) خو د مکې اوسيدونکو د عزی (د

سهار ستوري/ زهره سيارې) او هبل(روح يا باد) عبادتونه هم کول. په کعبې کې د هبل بت په جلا ځای کې کېښودل شوی وو.

مکې، د اداري چارو لپاره کوم ځانګړی مرکز نه درلود، بلکې هره قبيله خپلواکه وه، خو د ښاري چارو د مخته وړلو لپاره يوې ځانګړې ادارې شتون درلود، چې د[ملاء] په نامه يادېدله. دغه شورا به د قبيلو ملکانو او ښاري سوداګرو مخته وړل او دلته به قضيې د رايو پر اکثريت کيدلې. يوې قبيلې پر بلې لوړوالی نه درلود او نه هم ياده شورا يوې قبيلې ته ځانګړې شوې وه.

د کعبې د ساتنې، خدماتو او انتظام لپاره د بیلابېلو قبیلو وېش:

| رتبه | دنده | قبیله |
|---|---|---|
| حجاته | د کعبې کلي او پاکول | بني طلحه |
| رفادته | په حاجیانو پوښتنه کول | بني نوفل |
| سقایه | حاجیانو ته اوبه ورکول | بني هاشم |
| مشوره | د شورا لپاره مجلس دایرول | بني اسد |
| عقاب | د جگړې سپه سالار | بني یتیم |
| قبه | د خېمو جوړول | بني مخزوم |
| دیات | د قصاص قضیو حلول | بني یتیم |
| سفارت | -------------- | بني عدي |
| اموال | د کعبې د آثارو ساتنه | بني سهم |

خو د قبیلو د انفرادیت له وجې دننه په قبیلو کې پخوانیو مساواتو ورو - ورو خپلې اغېزې پرېښودې، د شتمنو او غریبو کورنیو تر مینځ اړیکې ډېرې پراخې شوې؛ یانې له دې وروسته د غریبو او شتمنو تر مینځ زیات اختلافات را مېنځته شول. د ښار شتمن یې ابوسفیان بن حرب بني امیه، ولید بن مغیره (بني مخزوم)، عاص بن وایل(بني سهم)، ابوجهل(بني مخزوم) او عتبه بن ربیعه (د ابوسفیان خسر) ول.

د مکې لومړني اوسیدونکي بني جرهم ول. پر دوی باندې خزاعه قبیلې غلبه وکړه او د کعبې کلیداران شول؛ یانې د کعبې کیلي اوس له دوی سره شوه. په ۴۴۰ میلادي کې، د قریش قبیلې قصی نومي شخص له خزاعه قبیلې ټول واکونه واخیستل. ابن اسحاق وایي: «قصی د کعبې د کلیدار حلیل خزاعه له لور سره واده کړی وو او د حلیل له مړینې وروسته د کعبې کلیدار شو. د کعبې کلیانې به تل له ده سره وې او دمجلس شورا مشرتوب، حاجیانو ته خواړه او ښباک تیاره ول، د جگړې پر مهال

سپه سالار ټاکل هم د ده حق وو.» (watt) په مکې کې، د قریشو سربېره نورې قبیلې هم هستیدلې، خو اکثریت پکښې قریش مېشت ول، نو ځکه یې شتمني هم زیاته وه. قریش په لغت کې «خړ کب» ته ویل کېږي. «قریش» له یمن څخه حجاز ته کډوال شول او د تل لپاره هغلته میشت سول.

د قصی له مړینې وروسته یې زامنو په خپلو کې جګړې پېل کړې. له عبد مناف سره بني اسد، بني زهره، بني یتم او بني حارث یوه خوله وه، خو بل لور ته له بني عبدالدار سره بني مخزوم، بني سهم، بني جماع او بني عدي ول. په پایله کې عبد مناف ته حاجیانو ته د اوبو ورکولو(سقاوه) او د مالیې اخېستلو(رفاده) دندې وسپارل شوې او بني عبدالدار ته د ''ملاء'' مجلس راغوښتلو، د کعبې کلیدار او د جګړو د سپه سالارۍ دندې وسپارل شوې. د نبي کریم(ص) له زېږیدو څخه مخکې په همدغه ډول وېش باندې عمل کېده، خو د عبد مناف له مړینې وروسته د هغه د دوو زامنو هاشم او عبدالشمس تر مینځ تاوتریخوالی زیات شو. د هاشم له مړینې سره سم د عبدالشمس زوی امیه ټول اختیارات د ځان کړل. د بني هاشم او د بني امیې د دښمنۍ بنسټیز لامل همدغه وو.

د مدینې طبیعي او ټولنیزو حالاتو له مکې سره زیات توپیر درلود. مدینه یوه کرنیزه سیمه وه. «په حقیقت کې مدینه ښار نه وو بلکه د وړو وړو کلیو، کروندو او کېږدیو یوه ټولګه وه، چې تقریباً په شلو میلو مربع کې یې غرونو، تپو او شاړو ځمکو را تاوکړې ده،» (Mohammad at Medina,P-173, 1962) د خرماو د ونو لړۍ فدک، خیبر او تبوک پورې غځېدلي ول. د مدینې د اوسیدونکو شغل کرنه وه، چې پکښې د حکومت نام او نښان هم نه وو.

د مدینې نفوس ډېر وو. د یهودو درې قبیلې وې. قینو قاع، پنښ/آهنګر او سوداګر ول، بني نظیر او بني قریظه د مدینې د کرنیزو ځمکو مالکان ول. د مدینې تر ټولو شتمنه طبقه د یهودیانو وه. اوس او خزرج هم د دوی پر شتنمۍ دلته اباد ول. لږ شمېر نفوس د هغو عربانو هم وو، چې له یهودیانو تر مخه دلته میشت ول. په ډېره اندازه اوس او خزرج ول، خو ورو - ورو همدغه دواړه قبیلې په ډېریو وړوکو - وړوکو قبیلو ووېشل شوې او یوه قبیله به د بلې قبیلې دښمنان شمیرل کېدل.

هرې ممتازې قبیلې به ځانته یو وړوکی حکومت او یوه خپلواکه اداره درلوده. په هغو سیمو کې چې قبیلې میشتې وي، د هغو سیمو امنیت به ډېر ښه وو، ځکه که چا قتل کاوه، نو خامخا به جزاء ورکول کېده، خو د خپلې قبیلې پر ها خوا به یو کس د امنیت احساس نشوای کولای. د بعاث جګړې

(د اوس او خزرج تر مینځ ٦١٧ میلادي کې) وروسته د کورنیو جګړو په وخت کې خو امنیت د مینځه ولاړ. که کوم کس له یوې قبیلې څخه بلې قبیلې ته ورته، نو ژوند به یې په خطر کې وو.

د مدینې قبایل، یهودان ول، لکه دا نورې قبیلې، د کومې قبیلې زورواکي به یي نه منله. د ژوند یوازینی ضمانت وېره وه، ځکه ټولو به دغه وېره درلوده که چېرته څوک قتل کړم، نو بدل کې به مې ټوله کورنۍ یا قبیله په جنجال کې وي.

د بعاث جګړې (٦١٧ میلادي) څخه اوس او خزرج دواړو خواوو ډېري زیانونه وګالل. ځکه جګړه د فتحي او ماتي پرته یوې لنډ مهالې سولې باندې پای ته ورسیدل، نو د مدینې ټولنه د یوځایي نفاق او احتمالي پېښې د راپېښیدو له وجې سخته په وېره کې وه. هلته طرفینو د خپلو باغونو ساتنه کوله. بلې خواته اوس او خزرج له جګړې ستړي شوي ول او د یوې باعزتې سولې غوښتونکي ول.

دغه هغه حالات ول، چې نبي کریم(ص) په همدغه وخت د مکې اوسیدونکو ته د اسلام دعوت کاوه او د خدای د وحدانیت لپاره یې د یو موټي امت انقلابي فلسفه وړاندې کړل، چې د رنګ، نسل، قوم، هیواد، قبیلې او خاندان له تفریقونو څخه لیبې د انسانیت نظریه وه، خو د امت دغه ډول نظریه د قریشو ملکانو ته کله د قبول وړ وه. سوداګري او د حج عواید هغه دوې وسیلې وې، چې د جګړې پر ځای یې یووالی راوستی وو. هغو به خپلې وړوکې قضیې د ملاء په جرګې کې حل کولې. د مدینې غوندې دلته د کورنیو تر مینځ دښمني نه وي، بلکه مکه یوه مستحکمه ټولنه وه. پایله دا شوه، چې د نبي کریم(ص) د ١٢ کالو تبلیغ په ترڅ کې یواځې ٢٠٠ وګړو اسلام قبول کړ. که څه هم د مکې اوسیدونکو د نبي کریم(ص) ریښتېنولي او امانت داري ډېره ازمایلې وه.

خو د نبي کریم(ص) هغه روحاني پاڅون او د یو موټي امت نظریه، چې له امله یې د مکې اوسیدونکي له هغه سره دښمنان شول، د مدینې اوسیدونکو لپاره د **فکر زېږی** وو.« هغه څه یاني نبوت، چې په مکې کې د نبي کریم(ص) د مخالفت سبب ګرځېدلی وو، هغه د مدینې اوسیدونکو ته مثبت ثابت شو.»(اسحاق, پاڼه ١٩٧) د اوس او خزرج استازي ٦٢٢ میلادي کې العقبه کې سره یو ځای او اسلام باندې مشرف شول، د محمد(ص) نبوت یې ومانه او نبي کریم(ص) یې مدینې ته دعوت کړ.

د نبي کریم(ص) عادت وو، کله چې به د حج یا نورو رسومو ادا کولو لپاره زیاتره قافلې له بهر څخه مکې ته راغلې، نو ورسره به یې کتل او د اسلام دعوت به یې ورکاوه، نو ځکه د بعاث له جګړې تر مخه د بني اوس یو شمېر راغلو استازو له قریشو مرسته وغوښتل، چې د خزرج خلاف یې ملاتړ

وکړي، بیا نبي کریم(ص) دوی سره لېدنه وکړه او ورته یې د جګړې نه کولو مشورې ورکولو په مهال وویل، چې زه تاسو ته له دې نه هم معتبر شی وړاندې کوم، د څه لپاره چې تاسو دلته راغلي یاست، هغه د اسلام دین دی، چې تاسو ته د امن او سولې زېری درکوي او د خدای بنده ګي ته مو رابولي. نبي کریم(ص) دوی ته ځېنې قراني آیاتونه هم تلاوت کړل؛ نو بیا «ایاث چې یو ځوان وو وویل قسم په خدای، ای خلکو! کوم شي لپاره چې تاسو دلته راغلي یاست دا له هغه نه ډېر ښه دی» خو هغه باندې په قهر شول او چپ یې کړو. (ایضا،۱۹۷مخ)

د بعاث له جګړې وروسته، د بعثت په لسم کال، ۶۲۰ میلادي کې نبي کریم(ص) د العقبې په سیمه کې د بني خزرج ۶ وګړو سره لېدنه وکړه، چې په مدینې کې د وحدانیت پرستو یهودیانو ملګري ول؛ کله چې دوی د نبي کریم(ص) ویناوې واورېدلې، نو هغو اسلام قبول کړ او وویل چې په هیڅ یو قوم کې داسې بې نظمي/بې اتفاقي نشته او نه هم دومره دښمني، لکه څرنګه چې موږ کې ده. کېدای شي خدای ستا په مرستې موږ کې اتفاق راوړي. راځه! موږ سره مدینې ته ولاړ شه او موږ ته د خپل دین او مذهب درسونه راکړه. که خدای موږ کې اتفاق راوست، نو باور وکړه، له تا به هېڅوک هم ځواکمن نه وي. (۱۹۹مخ, ایضا) دوی ۶ کسان ول.

دویم کال له مدینې څخه دولس نفره مکې ته راغلل. په دوی کې ۹ تنو له بني خزرج سره اړیکې درلودلې او دریو بني اوس سره. دوی اسلام قبول کړ او نبي کریم(ص) مصعب بن عمیر ورسره واستوه، تر څو هغه نویو مسلمانانو ته قرآن ور زده کړي او د اسلام په اړه هغوی نور هم پوه کړي. هغه به د لمونځونو امامت هم کاوه، ځکه اوس او خزرج په خپلو کې ښه نه ول. ( ۲۰۸ مخ, ایضا) مصعب ته یوه بله دنده هم ورکړل شوې وه، ترڅو هغه د مدینې حالات په صحیح مانا وڅېړي. د هغه د هلو - ځلو پایله وه، چې د بني اوس او منات قبیلې پرته زیاترو کورنیو اسلام قبول کړ او د مکې برعکس دلته مسلم آزاري نه وه.

نبي کریم(ص) د مدینې د حاجیانو سره په دریم ځل د ۶۲۲ میلادي کال جون میاشتې کې لیدنه وکړه. په دغه لیدنه کې د بیلابېلو قبیلو ۷۳ نارینو او ۲ ښځو اسلام قبول کړی وو. دوی د نبي کریم(ص) سره بیعت وکړ چې په «بیعت الحرب» باندې یادېږي او وعده یې وکړه، چې موږ به هر وخت ستاسو ساتنه کوو او ستاسو لپاره به جګړه کوو. (سیرة النبي،۴۸۰-۵۰۰ مخ) دوی له مسلمانانو غوښتنه وکړه، چې مدینې ته هجرت وکړي. ځکه هم مهاجرین/کډوال په لومړیو وړوکو ګروپونو کې د مدینې پر

خوا روان شول. په ۶۲۲ میلادي(۱۲ بعثت) کال کې نبي کریم(ص) هم هجرت وکړ او کله چې مدینې ته را داخل شو، نو د ابو ایوب انصاري پر کور کې مېلمه شو، ځکه دی یې د نیکه عبدالمطلب خپل وو.

دا د فکر خبره ده، چې د مدینې زیاترو اوسیدونکو ولې په خوښي اسلام قبول کړ، خو د مکې اوسېدونکي، د مکې له فتحې څخه وروسته مسلمانان شول.

په مدینې کې، د نبي کریم(ص) د ښه راغلاست یوه وجه دا هم وه، چې دوی نبي کریم(ص) خپل ګڼه، داسې یو خپل چې هغه هېڅ نوع حرص نه درلوده، تر څو د دوی باغونه او ځمکې خپله برخه وګڼي. (سیرة النبي، ۵۷۲ مخ)

که څه هم اوس او خزرجو ته مالومه وه، چې نبي کریم(ص) به د یوې قبیلې پر خوا نه وي؛ بلکې دواړو قبیلو ته به په یوه سترګه ګوري او کومه پرېکړه چې به کوي؛ هغه به د انصاف او عدالت مطابق وي. په یاد ولرئ، چې د مدینې په ټولنه کې لا تراوسه مورنی نظام رواج درلود. هلته به مورنیو اړیکو ته په ډېر عزت، احترام او مینې کتل کېدل او د مکې په نسبت دلته ښځو ته ډېره آزادي ورکړل شوې ول.

په مدینې کې د نبي کریم(ص) وړاندې څلور مهمې مسئلې وي. ۱ـ د مهاجرینو مېشتیدل؛ ۲ـ په دوی کې د یو موټي امت نظریه رواجول ترڅو مدیني ټولنه کې کورنۍ جګړې پای ومومي، د امن او سولې ځواک پرمختګ وکړي او د اسلامي اتحاد او یووالي رېښې باید نورې هم پیاوړې شي ۳ـ د مکې د قریشو زورواکي باید ختمه شي، چې د اسلام لپاره یو ستر خنډ وو ۴ـ د مدینې په شاوخوا سیمو کې، د نورو قبیلو سربیره د امن او سولې د تړونونو لاسلیک. تاریخ شاهد دی، چې نبي کریم(ص) دغه مسئلې په خورا ښو طریقو حل کړې.

د نبي کریم(ص) په زمانه کې اسلامي سیاست له دوو پړاوونو تېر شوی. لومړی میثاق له مدینې څخه نیولې تر فتح خیبر پورې؛ دویم د خېبر له فتح څخه نیولې، بیا د مکې تر فتحې پورې. د مدینې میثاق ډېره مهمه تاریخي نسخه ده. ابن اسحاق په [سیرة رسول الله/نبي] کې د میثاق ټول متن راخیستی دی، خو هغه نه دي ویلي چې دغه نسخه یې له کومه کړې او دا یې هم نه دي ویلي، چې پر دغه تړون څه وخت او چیرته لاسلیک شوی. د لویدیځو مورخینو له نظره، میثاق د ډېریو نسخو ټولګه ده، چې په بیلابیلو وختونو کې لیکل شوې. د پروفیسور مانټګو مري واټ له انده، چې د نسخې لومړۍ ماده په

مکه کې د بیعت الحرب په مناسبت لیکل شوې، څکه د دغې مادې اړیکې د مدینې د عربو قبیلو تر مینځ د امن  او سولي راوړلو په باره کې دي. د یهودیانو سره تړلي مادې د همدغې زمانې یا د هجرت په لومړیو کې دي. ابن اسحاق له هجرت وروسته میثاق را نقل کړی. دې نه هم اندازه کولای شو، چې د میثاق ډېره برخه د هجرت په لومړیو ورځو کې لیکل شوې او له دې وروسته هم پکښې زیات شیان تصحیح او لیکل شوي.

دغه تړون څکه د مسلمانانو تر مینځ شوی، چې پکښې لومړی شرط د خدای د وحدانیت او رسول(ص) د نبوت دی. [دغه د نبي کریم(ص) لیک دی، منونکو او د قریش او یثرب د مسلمانانو تر مینځ او څوک چې د دوی پیروان دي، دوی یې ملګري دي او ورسره یوځای به جهاد کوي. هغه یو موټی امت دی، له نورو څخه جلا].

د دغه میثاق له مخې د مدینې یهودیان هم په امت کې شامل وو، که څه هم هغو په دغه تړون کې برخه نه درلوده. [د بنو عوف یهودیان له مسلمانانو سره یو ځای په امت کې راځي. د یهودیانو دین د هغو لپاره او د مسلمانانو دین د هغو لپاره] یهودیان چې واحد پرسته ول، نو څکه خو نبي کریم(ص) یهودیانو ته، چې د مدینې ټولنې مهمه برخه وه د امت په برخه ګرځولو کې یې کومه تیروتنه نه ده کړې.

د تړون ډېره مهمه ماده هغه وه، چې پکښې مدینې ته د دارالامن مرتبه ورکړل شوې ده. [د یثرب اوسیدونکو ته دغه نسخه خورا معتبره ده. له فریبکار او خطاکار پرته کوم کس چې له کوره وځي او کوم کس چې په کور کښیني، په مدینې کې په امن دی، دغه تعهد لیک خطا کار او فریب کار ته پناه نه ورکوي؟ ] په حقیقت کې د تړون لیک یواځینۍ موخه هم دا وه، چې د مدینې اوسېدونکي خپلو کورنیو جګړو ته د پای ټکی کښېږدي. دین، د یو موټي امت په اړیکو کې سره یوځای او ښار کې پرامنه ژوند وکړي او د امت د دښمنانو (قریش) خلاف سره یو شي. [قریش او د هغه ملګرو ته پناه مه ورکوئ او که په یثرب باندې ناڅاپه حمله وشي نو د یو بل مرسته به کوو].

د ګډ مخالفتونو په اړه ویل شوي وو، چې [که تاسو کې د یوې موضوع په اړه ګډ اختلاف ولرئ، نو خدای او محمد ته مخ کړئ]. که لږ نوره رڼا پرې واچوو [که کله هم پر دغه تعهد لیک د خلکو تر مینځ کوم فساد راپورته شو، یا داسې کومه جګړه پېښه شي، چې د تباهۍ وېره وي، نو خدای او محمد(ص) ته مخ کړئ].

د امن او سولې د ټینګښت لپاره دغه شرط کېښودل شو، چې [د امت هېڅ کوم وګړی د نبي کریم(ص) له اجازې پرته په جګړې کې ګډوننه شي کولای].

که څه هم د دغه ژمن لیک له مخې د مدینې اوسیدونکو د نبي کریم(ص) اطاعت قبول نه کړ او نه هم د قبیلې د ملکانو پر حقوقو او صلاحیتونو کومه اغېزه راغله، خو دغه تړون لیک د دغې خبرې ثبوت دی چې تړونوالو د نبي کریم(ص) روحانیت قبول کړی وو او د ده په حق کې د دوو مهمو حقوقو لرونکي هم ول.

اوس به هغوی د محمد(ص) له اجازې پرته په جګړو کې ګډون نه کوي او د خپلو جګړو د پریکړې لپاره به محمد ته ورځي. دغه شرطونه د اوس او خزرج د پخوانیو دښمنیو لپاره یو ډېر ښه اساس شو. ځکه دوی یو په بل پسې لمونځونه نه کول، نو څنګه به یې د یو بل پریکړې منلې؟ د مدینې میثاق د نبي کریم(ص) دسیاسي کړنلارو لومړی ګام وو.

تر دغه میثاق وروسته د بدر غزوې (۲ هجري) یو تاریخي اړخ درلوده؛ ځکه د مدینې حکومت د رامنځته کولو لپاره لاره هوارېږي. ټول د غنمیت مال پر مهاجرینو باندې وېشل کېږي. د څو اونیو پر ترځ کې، بني قینوقاع له مدینې څخه وشړل شول. هغو د مدینې په ستر بازار ولکه کړی وو. د دغو ښاري دربدریو په پایله کې هغو مهاجرینو چې سوداګري کول، ورته نورې آسانتیاوې هم برابري شوې او انصار هم له ډېرو پورونو خلاص شول. کال وروسته بنونضیر هم وشړل شول او د بني قریظه له ټول وژنې وروسته، د یهودیانو زیاتره کروندې او د خرماوو باغونه هم د نبي کریم(ص) په ولکې کې راغلل، ده دغه ځمکې پر مهاجرینو او ځېنو اړمندو انصارو ووېشلې. اوس مدینه په ځانګړې توګه د مسلمانانو ښار شو. د غنیمت مال سربېره د دوښمن ځمکې هم د نبي کریم (ص) په خوښه وېشل کیدې. اوس نبي کریم(ص) د خدای د رسول په حیث نه یوازې د مدینې مذهبي پیشوا وو، بلکه د ښار مشر هم شو. د مدینې پر خاوره د حکومتي نظام تخم کښت شو او څه موده وروسته به حاصل هم ورکړې. په همدغه کال قرآن کې د وراثت قانون هم نازل شو. د مدینې شاوخوا صحرایي خلکو سره د امن او مرستې تړونونه هم لاسلیک شول او نبي کریم(ص) خپل استازي ایران، مصر، قسطنطنیې، یمن او غسان ته ولېږل، تر څو هغو ته د اسلام پیغام ورسوي. په یاد ولرئ، دغه لیکونه نبي کریم(ص) په خپلو لاسونو هغو ته استولي وو. په دغه لیکونو کې نه خو د کوم هیواد پر حکومتي نظام باندي نیوکه شوې او نه هم د کوم ځانګړي حکومتي نظام مشوره ورکړل شوې وه.

بیا خیبر فتح کیږي، چې په شمال کې د یهودیانو ځانګړې سیمه وه. د علامه شبلي نعماني له قوله: «دغه لومړۍ غزوه چې پکښې د نا مسلمانانو د حکومتي نظام بنیاد کېښودل شو او د اسلام د ملکي او سیاسي حالاتو یو بل پړاو پیل شو». (سیرة النبي، دویم ټوک، ۵۹ مخ) ځکه خیبر کې مسلمانان نه اوسېدل او نه مجاهدینو غوښتل هلته مېشت شي، نو نبي کریم(ص) د هغه ځای ځمکې او باغونه یهودیانو ته په اجارې ورکړل. له دې وروسته فدک او تیمه او نورو کې هم په همدغې کړنلارې عمل وشو. د تاریخ پوهانو له نظره، ځینې ځمکې د مسلمانانو ټولنیز ملکیت ګڼل کیدې او ځینې بیا د ځینو وګړو شخصي ملکیت. د حاصلاتو په وخت کې به نبي کریم(ص) یو صحابي ورولیږه، تر څو د حاصلاتو نیمه برخه ترې راوړي. (ایضا)

د هجرت نهم کال د پېښو په اړه علامه شبلي نعماني لیکي: «هیواد کې د سولې پړاو پیل شو. کرنیز محصولاتو زیات شول، نو ځکه د زکات حکم نازل شو او د زکات ورکولو لارې چارې هم وښودل شوې. سود هم په دغه کال حرام وګڼل شو». (غزالي, ۱۹۶۴) او یمن، حضرت موت، تیمه، نجران، مکه، عمان او بحرین کې والیان وټاکل شول، نو د مکې له فتحې وروسته د مدینې حکومت لارې چارې بشپړې شوې. که څه هم دغه نوي حکومت له ولس پرته پوځ او پولیس نه درلودل، نه یې اداري، نه د وزیرانو شورا، نه د حکومت مشران او نه هم ځانته - ځانته محکمې لرلې.» (مخروج۱۱۷ - ۱۱۸ مخونه, ۱۳۷۵)

خو د حکومت له وجود څخه انکار شونی نه دی. دغه حکومت یو ښاري حکومت وو. یانې د عربو ۳/۱ برخه که څه هم د دغه حکومت تابع وو، خو د سیاسي، حقوقي او نورو واکونو مرکز د مدینې ښار وو. د حکومتي نظام له ډولونو څخه دغه حکومت تیوکراتیکه بڼه درلوده، یانې د حکومت حاکم د خدای رسول وو، چې د قرآني تعلیماتو په رڼا کې یې حکمونه صادرول.

خو پوښتنه دلته ده چې آیا د اسلام موخه حکومت پرانیستل ول؟ آیاخدای کوم ځانګړی نظام بڼه ګڼه او نور یې بد اوآیانبي کریم(ص) یواځې د دې لپاره استول شوی وو ترڅو تیوکراسي دود کړي؟ تاریخ دغه پوښتنې ته ناسم ځواب ورکوي او عقل هم دغه ځوابونه مني. خدای یې څه کوي، چې که حکومتي نظام فیوډالي وي، امپریالیستي وي، که جمهوري وي یا سوسیالیستي. که د خدای خوښه وه، چې پلانکی حکومتي نظام دې باید حاکم وي، نو هغه به له اوله هر څه روښانه کړي ول او د تیرو پنځه زرو پیړیو راهیسې چې تیوکراسي، فیوډالي، جمهوري او سوسیالیستي نظامونه تجربه شوي

دي، نو ورته به هېڅ ډول اړتيا هم نه پېښيدل. قرآن د باچاهانو په اړه زيات څه ويلي دي، خو د حکومتي نظام په اړه بيخي چپ پاتې شوی. حضرت ابراهيم، د نمرود په مطلق العنان حکومت باندې نيوکه نه ده کړې، بلکې د هغه له خدايۍ څخه يې انکار کړی. حضرت يوسف د فرعون له باچاهۍ سره کار نه درلود، حضرت موسی د فرعون د حکومتي نظام خلاف نه وو، خو دهغه د خدايۍ دعوا يې رد کړه او د يوازيني خدای د ربوبيت اعلان يې وکړ. حضرت سليمان خو هم پيغمبر او باچا دی. له دې مالومېږي چې خدای انسانانو ته په پوره توگه خپلواکي/آزادي ورکړې، تر څو هغوی هر ډول حکومتي نظام سره خوښ وي؛ هغه ډول نظام دې جوړ کړي. نبي کريم(ص) چې څومره باچاهانو ته ليکونه لېږلي وو، پکښې يې يوازې د اسلام دعوت ورکړی وو او د حکومتي نظام يادونه يې کړې نه وه. د نبي کريم(ص) د بعثت د موخې په اړه مولانا سيد سليمان ندوي ليکي:

«د نبي کريم(ص) د بعثت موخه د مذهب دعوت، د اخلاقو اصلاح او د نفس تزکيه وه. له دې پرته ټول فرايض يواځې ضمني وي. نو نبي کريم(ص) د هيواد لپاره تر هغه اندازه قوانين جوړ کړل، تر څو د دعوت په برخه کې کوم ډول خنډ را مينځته نشي». (مودودي, ۱۹۷۴)

د حجاز پر ځمکې، د حکومت منځته راتگ د هغه ځای د سياسي او ټولنيزو بدلونونو منطقي پايله وه. په مدينې کې ورو - ورو زيات بدلونه راغلل، چې په پايله کې وړوکو ښارونو ځانته د ښاري حکومتونو بڼه خپله کړل. دغه بدلونونه يوازې د يو وگړي د خواهشاتو او کوښښونو پايله نه وه، بلکې د ټولنيزو حالاتو تقاضا وه. نبي کريم (ص) هيڅکله هم د يو حکومت جوړولو هيله نه درلودل، نه هم هغه د حکومت جوړولو کوم پلان درلود او نه يې هم د دغه پلان عملي کولو لپاره هلې - ځلې وکړې، خو له هجرت وروسته، د مدينې د حالاتو تقاضا وه، چې په پايله کې يو ناڅاپه حکومت جوړ شو.

پروفيسور قمرالدين خان يو ډېر ستر شخصيت دی. هغه د کراچۍ په ډان ورځپاڼې کې ۱۹۸۰ ميلادي کال د اگست په ۱۴ ځانگړي چاپ کې يوه مقاله ليکلې وه، چې سرليک يې« اسلام يوه ټولنه ده، نه کوم سياسي نظام!» په دغې مقالې کې هغه ثابته کړه، چې د اسلام موخه دحکومت پرانيستل نه وو او نه هم قرآن مسلمانانو ته د اسلامي حکومت په اړه څه ويلي. لاندې به موږ د پروفيسور صاحب د مقالې لنډيز د هغه په الفاظو وړاندې کړو ترڅو د اسلامي حکومت هر اړخيز واقيعت څرگند شي:

۱. د سیاسي فلسفې بنسټیز تصور حکومت دی. نورې ټولې سیاسي نظریې په مستقیم او غیر مستقیم ډول ورسره تړلي دي، خو قرآن کې د حکومت په اړه کوم تفصیل یا نظریه شتون نه لري.

۲. قرآن په حقیقت کې د هیڅ ډول حکومتي نظام په اړه شرحه نه ده ورکړې. قرآن کې نه  د کوم دستور، نه هم تصور، نه د حکومت د مشر تصور، نه د رایه ورکولو قوانین، نه د انساني حقوقو تفصیلي تصور او نه هم د حکومتي ادارو تصور موندلی شو. قرآن شریف پر دغو ټولو موضوع گانو چپ پاته شوی، ځکه د تاریخي تکامل سره دغه ټولې پدیدې بدلون مومي، د قرآن موخه حکومت پرانېستل نه دي، بلکه د ټولنې خپل تولید دی.

۳. د حکومت او حکومتي نظام په اړه چپ پاتې کیدل (قرآن کې)  د مسلمانانو لپاره ډېر ښه زیری دی، ځکه د اسلام لپاره د نړۍ د پرمختگ سره یوځای سفر کول او د نویو حالاتو او نوي چاپیریال سره یوشان اوسېدل شوني دي.

۴. قرآن د صلاحیتونو او واک په اړه ډېرو ځایونو کې آیتونه راوستلي دي، خو د حکومت په اړه کوم تعریف او مثال نه لیدل کیږي.

۵. سنت هم پر دغې موضوع کوم بحث نه دی کړی. له دې مالومیږي، چې د پیغمبر ځای ناستو د سیاسي تنظیمونو جلا - جلا قوانین ولي اختیار کړل.

٦. په لومړیو پیړیو کې د قرآني حکومت په اړه هېڅکله هم قیاس ندی شوی. د نظریو جوړونه، په حقیقت کې د عباسیانو تولید دی او د خلافت په پوره توگه تصور، د غیرو معتبرو حدیثونو او د زیاتو تاریخي پیښو پر بنسټ جوړ شو او بیا چې د خلافت کومه نظریه وړاندې شوه؛ د دغه هیڅ ډول اړیکه قرآن سره نه وه او نشته. هغه، د سیاسي حالاتو او مذهبي اړتیاو تولید وو( دغه ټولې نظریې د حکومتدارۍ په دورې کې کشف شوې).

۷. د قرآن څخه ناسم تفسیر کول د اسلامي تاریخ یو تکراري دود دی. نو نني عصر کې هم ځیني علماء د قرآن د ځینو آیتونو د اصلي موخو پر ځای بل څه تفسیر وي او د حقیقي ماناوو پر ځای خیالي مطلبونه ترې اخلي، چې په حقیقت کې قرآن سره هیڅ ډول تړاو نه لري.

۸. په دغو ورځو کې د دین پرمختگ لپاره بیا د اسلامي حکومت لرلو باندې کار روان دی. دوی وایي تر هرڅه لومړی باید اسلامي حکومت جوړ سي، تر څو د دین لپاره کوم خنډ نه وي. دغه هڅه هم روانه ده چې حکومت باید له دین سره مساوي حرکت وکړي (د جماعت اسلامي شعار دا دی:

«پاکستان کا مطلب کیا؟ (لااله الاالله!) خو پوښتنه دلته ده، چې دغه کار خپله خدای ولي نه کاوه، چي نن ورته دومره هلې ځلې کېږي. د خدای لپاره ښېخي اسانه وو چې هغه د حکومتي نظام د نقشې په اړه تفصيل وړاندې کړی وو او مسلمانان به له زياتو جگړو څخه ژغورل سوي ول، خو خپل بنده گان يوازي د يوې ځانگړې سياسي جغرافيې لاندې ساتل، د خدای د حکمتونو خلاف عمل وو. د اسلام موخه حکومت پرانيستل نه ول، بلکې د يوې داسې ټولنې جوړول ول؛ چې مخکې مو بحث پرې وکړ.

۹. حکومت د يوې ټولنې له مقامونو څخه يو مقام دی؛ ځکه خو ټولنه له وخت سره د تکامل پړاو ته رسېږي، نو د حکومت فطرت او جغرافيه هم بدلون کوي. دغه هغه ټول موارد ول. د دغو موارد‌و پر بنسټ، له همدې امله قرآن د حکومت په اړه څه ويلي ندي او مسلمانانو ته يې د دغې خبرې بشپړه خپلواکي ورکړې، چې وخت او ټولنيز ژوند ته په کتو سره هغه ډول حکومتي نظام وضع کړي. دغه وجه ده، چې زموږ زياتره ستر علماء لکه امام شافعي، امام ابويوسف، امام محمد، امام غزالي، ابن تيميه او داسې نورو د ميراثي سلطنتونو خدمتونه کړي او دغير اسلامي حکومتونو خلاف يې هيڅ ډول پاڅونونه نه دي کړي.

۱۰. ويل کېږي، چې د پيغمبرانو ځانگړې موخه پر ځمکې د الهي قوانينو مطابق سياسي حکومت دودول ول. که دغه دعوه ريښتيني ده؛ نو زياتره انبياء په خپلو موخو کې پاتې راغلي. که ريښتيا ووايو، نو قرآن کې چې د کومو انبياوو ذکر شوی؛ هغو کې يوه ته هم دغه ويل شوي ندي، چې ستا موخه په نړۍ کې د اسلامي حکومت پرانيستل دي. هغوی يواځې خلکو ته د نړۍ د خالق او خدای د عبادت دعوت ورکوي. نبي کريم(ص) او د مکې اوسيدونکو تر مينځ شخړه پر دې نه وه، چې نبي کريم(ص) غوښتل هلته کوم حکومت رامنځته کړي، بلکې د هغوی د دين خلاف وو. قرآن د نبي کريم(ص) د موخو په اړه هر ځلي وضاحت ورکړی.

۱۱. ويل کيږي چې په حکومت کې د حاکميت حق يوازي د خدای دی نه د خلکو؛ واضح خبره ده چې خدای خو ځمکې ته نه را کښته کيږي، تر څو د خلکو د قضيو پريکړې وکړي، بلکې دا کار به هم انسان پخپله کوي، خو دا به وايي چې دغه پريکړه سپيځلې ده، ځکه د خدای پر نامه شوې ده، خو اسلامي تاريخ کې ترټولو ناوړه استبداد هم داسې رواج موندلی.

لنډيز:

۱.قرآن او حديث کې مسلمانانو ته د حکومت په اړه څه ويل شوي ندي.

۲. قرآن او سنت کې د قانون یا سیاسي نظریې په اړه کوم اصول یا قاعده نشته.

۳. نبي کریم(ص) به خامخا سیاسي نظام جوړ کړی وي، خو هغه د تاریخي حالاتو پایله وه.

۴. اسلامي سیاسي نظریې قرآن او حدیث پورې تړاو نه لري، بلکې د اصحابو او خلفاؤ راشدینو د کړنو او تاریخي حالاتو پایلې دي.

حکومت د ټولني یو منصب دی او د تل لپاره اړین ندی (له هجرت تر مخه مکې کې کوم حکومت نه وو، خو مسلمانانو شتون درلود) نو اسلامي ټولنه له حکومت پرته هم پرمختللی شي. په هندوستان، سریلانکا، شوروي اتحاد، برما، فلیپین او زیاترو افریقایي هیوادونو کې د مسلمانانو نفوس ډیر زیات دی.

٦. دغه دعوه چې اسلام د مذهب او حکومت ټولگه ده، بېخي یو نوی فکر دی؛ د اسلام په تاریخ کې یې هیڅ ډول څرک هم نه موندل کیږي. اسلامي تاریخ کې د[اسلامي حکومت] اصطلاح له شلمې پیړۍ ترمخه کارول شوې نه ده.

زموږ تش په نامه اسلامي گوندونه د قرآن او حدیث څخه په خپله خوښه د حکومتي نظریو په اړه فتواوې صادروي. د قرآني آیتونو بیځایه کارول، د بني امیه او بني عباس په دورو کې پیل شول او تراوسه ادامه لري. ځکه د اسلام فقهاوو د اطاعت لپاره دغه ډول کارونه ترسره کړي او په اړه یې زیاتره کتابونه هم شتون لري. که چیرته مسلمانانو پر دغو کړنلارو عمل کړی وو؛ نو ترکیې، مصر، ایران او عراق او همداسي نورو هیوادونه کې به نن هم ملوکیت رواج وو. پاکستان به نه وو او الجزائر، لبنان، شام، هندوستان، مالیزیا او انډونیزیا به د لویدیځو طاقتونو تر ولکې لاندې ول.

نظام الملوک طوسي چي د سلجوقیانو وزیر وو؛ نو د هغه پر کتاب[سیاست نامه] باندې بحث کول د وخت ضایع ده، خو امام غزالي (۱۰۵۸- ۱۱۱۱ میلادي) غوندې یو عالم چې د قرآني آیت سره دغه ډول بې انصافي کوي؛ نو ډیره د حیرانتیا خبره ده. [نصیحت الملوک] د هغه وروستیو کتابونو کې شمیرل کېږي. د کتاب دویمه برخه کې امام صاحب غواړي مسلمانانو ته څه ووایي:

« تاسو باید په یاد ولرئ، چې خدای د حضرت ادم زامن په دوو طبقو ویشلي دي او هغه یې پر ټولو انسانانو لوړ گڼلي دي. لومړی انبیاء، دویم سلاطین/باچاهان. د خدای لور ته د بنده گانو پام اړولو لپاره انبیاء استول شوي او د بنده گانو د ساتنې لپاره یې باچاهان استولي. باچا پر ځمکه د خدای سوری دی، نو باید دا ومنو، چې دغه باچاهان پخپله خدای راستولي؛ موږ ته په کار ده چې د دغو

باچاهانو اطاعت وکړو، دوی سره مینه وکړو او  د دوی حکم باید قبول کړو. له باچاهانو سره باید جګړې ونه کړو او له دوی باید هیڅکله هم کرکه ونه کړو ځکه خدای فرمایلي دي چې (اطیعوالله واطیعوالرسول و اولی لامرمنکم).» (ایضا)

خو د سورة النسا د دغه آیت تړاو په هیڅ ډول هم د باچا له اطاعت سره سر نه خوري. ابوالحسن علي ابن احمد الواحدي(مړینه ۴۶۸ ه/۱۰۷۵ میلادي) خپل مشهور اثر[اسباب النزول]. ( ۵ ټوک، ۳۴۳ -۳۴۶ مخونه)کې د دغه آیت د نزول په اړه لیکي:

«له عبدالله ابن عباس څخه روآیت دی، چې دغه آیت د عبدالله ابن حدیفه په اړه نازل شوی. نبي کریم(ص) هغه د یو کار لپاره لیږلی وو. ابن عباس دا هم وایي، چې نبي کریم(ص) خالد بن ولید له یوې قبیلې سره د جګړې لپاره لیږلی وو. عمار بن یاسر هم ورسره وو. عمار یو عرب ته چې نوی مسلمان شوی وو، پناه ورکړې وه. خالد ونیوه او هرڅه یې ترې واخیستل. کله چې  عمار خبر شو، نو هغه خالد ته وویل چې دغه کس خو مسلمان شوی او ما ورته پناه ورکړې، زه غواړم چې دغه کس دې پرېښودل شي. خالد په عمار باندې غصه شو، چې ته د لښکر سپه سالار نه یې او ته د پناه ورکولو حق هم نه لرې. کله چې له جګړې فارغ شول، نو دواړو دغه پېښه له نبي کریم(ص) سره شریکه کړه. نبي کریم(ص) د عمار بن یاسر په حق کې پریکړه وکړه او نوي مسلمان ته د پناه ورکولو عمل یې ښه وګڼه، خو دغه حکم یې هم صادر کړ، چې د سپه سالار له اجازې پرته کوم کس ته پناه مه ورکوئ. دا آیت د دې موخې لپاره نازل سوی».

په  پوځي جګړو کې د سپه سالار د احکامو اطاعت کول ډیره اړین وي. ځکه نن هم د قومندان له حکم څخه سرغړونه په پوځي محاکمو کې ډیر ستر جرم ګڼل کیږي، خو  دغه آیت د هغه له تاریخي اصل څخه جلا کول او د اوسني سیاست سره تړاو ورکول، خورا ستره تیروتنه ده. دلته ماته د جنرال ایوب خان د وخت یوه پیښه را یاده سوه. په ۱۹۶۹ میلادي کې کله چې د ده خلاف زیات خوځښتونه راپورته سوي ول، یوه ورځ زه له ډرګ سرک څخه تیریدلم، نو ومې لیدل چې د ګورا هدیري په یوه برخه کې په ۶۰ فوټه زرغون رنګ یو اوږده لوحه نصب شوې وه. پر هغه د«اطیعوالله واطیعوالرسول واولی لامرمنکم» آیت لیکل شوی وو، چې ژباړه یې په اردو ژبې وررسره لیکل شوې وه. لږ مخته ولاړم نو پرهرځای دا ډول لوحې نصب شوې وې، دا لوحې د شیې په تیاره کې نصب شوې وې. خو کله چې ایوب خان استعفاء ورکړه، نو ټول بینرونه بیرته لیري شول.

امام غزالي د (اطيعو الامر) کوم مفهوم چې وړاندي کړی، نو موږ باید هغه وبښو څکه په یوولسمي پیړۍ کې د ملوکیت سربیره د کوم بل حکومتي نظام تصور نه وو، خو مولانا ابو الاعلی مودودي د شلمي پیړۍ په اتمې لسیزي کې چې د جمهوریت دوره ده، د دې آیت شریف شرح کې داسې دعوه کړې:

«دغه آیت د اسلام بشپړ مذهبي، مدنیتي او د سیاسي نظام بنسټ او د اسلامي حکومت لومړۍ ماده ده». (ماوردي, الاحکام السلطانیه، ۶۰۵ مخ)

نو عقل دا خبره نه مني، چې کوم شخص قرآن ژباړلی وي، هغه د دغه آیت د نزول په اړه خبر نه وي او د کوم آیت چې د اسلام مذهبي، مدنیتي او سیاسي نظام سره کومه اړیکه ونه لري، هغه د اسلامي حکومت لومړۍ ماده وګڼي. د منافق کس به تر دغه څرګند مثال ونه موندل شي.

د عباسیانو په دوره کې خو داسې حدیثونه هم لیدل کیږي، چې د وخت د باچا اطاعت پکښې یوه مذهبي فریضه ګڼل شوې وه. نو مولانا مودودي د امام بخاري کتاب (الاحکام) په حواله ورکولو سره د دغه حدیث موخه د خپلې خبرې د ټینګار لپاره وړاندې کوي.

هغه وایي: په حدیث کې ویل شوي دي، چې[اسمعواوطیعو اولواستعمل علیکم عبد حبشی)؛ واورئ او اطاعت وکړئ، که څه هم ستاسو باچا یو حبشي وي]. (د اقبال مقالې، ۱۱۱ مخ)

پاکستان کې دغه ورځې یو مرکزي مشورتي بورډ (مجلس مشاورت) هم جوړ شوی. د دوی ویناوې په ډیره اندازه خپریږي او غواړي داسي وښايي چې د دې مجلس شورا جوړیدل د قرآني احکامو مطابق دی، خو دغه شورا خپله د پاکستان اوسیدونکو نه ده ټاکلې؛ بلکې د یو وګړي په مشوره جوړه شوې ده. حکومت د دوی پریکړو او مشورو ته اړ نه دی.

قرآن شریف په خپلو کې د مشورې په اړه یوازې دوه لنډ آیتونه رانقل کړي. لومړي آیت کې نبي کریم(ص) ته ویل شوي، چې [وشاورهم فی لامر فازاعزمت فتو کل علی الله] ( او دوي سره په معاملاتو کې مشوره وکړه بیا چې کله ډاډه شوي نو پر الله توکل وکړه- سورة آل عمران ۱۵۹) طبری په خپل تفسیر کې لیکي: «علماوو د الامر دوه تفسیرونه کړي. ځیني وایي د الامر څخه موخه د جګړې تاکتیکونه دي او ځیني بیا وایي د الامر موخه دیني مسئلې دي». (نصیحت الملک، ۱۰۴ مخ) د دغه آیت تړاو د احد له جګړې سره دی. نو لومړۍ شرحه مناسبه ګڼل کیږي. په دې جګړې کې مسلمانانو ډیر زیات زیان ولیده او هغوی له ماتې څو ځله وژغورل شول. هلته چې کومې پیښې رامنځته شوي، نو

د مسلمانانو پر روحیاتو یې ډېرې ژورې اغیزې درلودلې. نو ځکه د آل عمران څلویښت آیتونه پرله پسې (۱۲۰- ۱۵۹) د احد د جګړې پیښې په تفصیل سره ذکر کړي، خدای پاک هم مسلمانانو ته ډاډګیرنه ورکړه او په آخر کې نبي کریم(ص) ته ویل شوي، چې د خپلو ملګرو سره مشورې کوه.

دویم آیت:

والذین الستجابو الربهم وااقامو الصلواة وامرهم شوری بینهم و مما رزقنهم ینفقون.

هغه خلک چې د خپل خدای حکم مني، لمونځونه اداء کوي، د خپل ورځني ژوند معاملې په مشورو سره مخته وړي.

(سورة الشوری- ۳۷)

واضح خبره ده، چې د دغو دواړو آیتونو تړاو د هیواد سیاسي حالاتو او جمهوري نظام سره نشته. له دې پرته د مشاور او ټاکل شوي نوماند تر مینځ د ځمکې او آسمان توپیر دی. حکومت که د مشاورو مشورې ومني که ونه مني، خو د سنا(سینټ) غړي چې د کومې قضیې لپاره د رایو په کثرت سره کومه پرېکړه وکړي، نو د حکومت فریضه ده چې هغه ومني. په حقیقت کې د سیاسي حالاتو په ترڅ کې چې د آیتونو کوم تفسیرونه شوي هغه سر ترپایه تېروتني دي.

په مدینې کې د اسلامي حکومت راوستلو سره د اسلام په تبلیغ کې هغه پخواني خنډونه له منځه ولاړل او د مسلمانانو په اقتدار او دولت کې زیاتوالی راغی، خو د یو موټي امت (امت واحد) نظریه دومره پیاوړې نشوه، ځکه د مسلمه امت تصور د اجتماعیت خلاف وو، د مدینې حکومت ټوله زور د فردیت پر خوا وه او اقتصادي نقشه د شخصي ملکیت لپاره ستر خنډ ول. د نبي کریم (ص) تر مړینې وروسته د امت او حکومت ترمینځ مخالفتونه زیات شول. د اقتدار لپاره هلي - ځلي، ګوندونه او طبقاتي ښیګڼې چې نبي کریم(ص) پر دغو په بشپړه توګه حاکم وو، له مینځه ولاړې. د نبي کریم(ص) جنازه لا خښه شوې نه ول، چې د انصارو یوه ډله د سقیفه بني ساعده پر سیمه راټول شوي ول، تر څو سعد بن عباده د حکومت مشر وټاکي او له ده سره بیعت وکړي. کله چې حضرت عمر خبر شو، نو هغه او حضرت ابوبکر یو ځای هلته ولاړل. هلته چې د دواړو خواوو ترمینځ خبرې وشوې او په کوم ډول حضرت ابوبکر خلیفه وټاکل شو، د هغې پیښې په اړه امام ابوالحسن علي ماوردي لیکي:

«د سقیفې په سیمه کې چې حضرت ابوبکر د خپل امامت په اړه انصارو ته څه وویل، نو پر دې خبرې یې ډېر ټینګار کاوه( چې دی قریش دی) او که څه هم هغه د (انصار) سعد بن عباده پر لاسو

بیعت کړی وو، خو د نبي کریم(ص) دغه وینا یې وړاندي کړه[الائمه من القریش] (امام به له قریشو څخه وي) نو هغوی په دې خبرې اتفاق وکړ او هر څه یې ریښتیا وګڼل. له دې سره هغوی له خپلو خبرو پرشا شول، بیا هغو دغه خبره وکړه چې یو امام باید ستاسو له خوا وي او یو زموږ له خوا؛ بیا حضرت ابوبکر وویل چې موږ به باچا یو خو تاسو وزیر شئ، نو انصارو د هغه دغه خبره هم ومنل». (کتاب ارشاد، ۲۲۷ مخ)

د خلفاوو راشدینو په زمانه کې فتوحاتو زور ونیوه، خو په خپلو کې ډیر سره بې اتفاقه شول. د یمن مسلمانان پر دغه وجه قتل شول، چې هغو د زکات نه ورکولو دعوه کوله، فتنې زیاتې شوې، له څلورو څخه د دریو خلفاوو قتل د مسلمانانو په لاسو، د دریم او څلورم خلیفه په دورې کې د عراق او مصر د مسلمانانو پاڅونونه، د حضرت عایشې او حضرت علي تر مینځ شخړې، د حضرت علي او امیر معاویه تر مینځ جګړه، د خوارجو مینځته راتلل هغه سترې پیښې دي، چې د امت او د حکومت ترمینځ مخالفتونه څرګندوي.

د مدینې حکومت په حقیقت کې، یو سیمه ایز حکومت وو، چې د سیمه ائیز جمهوریت او ملوکیت تر مینځ ولاړ وو. هغه نه جمهوریت وو او نه هم ملوکیت؛ بلکې د زیاتو حکومتونو ټولګه وه. یوې خواته سیمه ایز دودونه ول، بلې خواته نوی حکومت چې سیمه ایز دودونه یې له مینځه وړي ول. ځکه دغو بندیزونو د حکومت سیاسي چارو ته ستر خنډ جوړ کړی وو. (کتاب ارشاد) او بیا چې کله د حکومت پړوایز دوران پیل شو او ښاري حکومتونو د سترو حکومتي نظامونو بنې خپلې کړې، نو د سیمه ایز جمهوریت پاتې شوني هم له خاورو سره خاوري شوي. د ایران تر فتحې وروسته، کله چې حضرت عمر ته د غنیمت مال وړاندې کړل شو؛ نو هغه په زوره زوره وژړل. خلکو ترې وپوښتل ای امیرالمومنین! د خوشحالۍ په دغه لحظه کې تاسو ولې ژاړئ؟ نو حضرت عمر وویل چې په دغه غنیمت کې زه د اسلام بربادي وینم. حضرت عمر د حکومتي نظام له کړنو خبر وو، خو ټولنیز تکامل هغه کله درولای شوای. نو هغه څه وشول چې د کومې خبرې چې په ویره کې وه. خلافت راشده، د بني امیه مطلق العنان حکومت ته واوښته.

د دغې پوښتنې په ځواب کې، چې جمهوریت ولي په لومړیو پیړیو کې پرمختګ ونه کړ؟ علامه اقبال لیکي:

«د لومړیو پیړیو مسلمانانو ژوند تر ډېره په فتوحاتو کې تیر شوی. د دوی ټول زور او وړتیا او ټول پام د هېواد جوړونې په کارونو کې مصرف شو. نړۍ کې د دغې کړنې پایله د تل لپاره همداسې ده، چې د حکومت او سلطنت پړه د ځینو کسانو په لاسو کې وي، نو هغوي ژر تر ژره هر ډول حکومت مطلق العنان سلطنت ته اړوي. دا یو تاریخي حقیقت دی. له دې پرته بله کومه پایله نه ترلاسه کیږي.»
(Mydral, 1968)

علامه اقبال چې کومو خبرو ته اشاره کړې، هغه سل په سله صحیح دي، خو موږ باید دا هیر نه کړو، چې اوومه پیړۍ کې د نړۍ په هیڅ یو کونج کې هم جمهوریت نه وو او په هیڅ ډول شونې هم نه وه. افریقا او آسیا کې زیاتره سیمې داسي وې، چې هلته ټولنیز نظام جمهوري وو، خو حکومتونه نه شمیرل کیدل. دا خبره هم ریښتېني ده، چې د نبي کریم(ص) څخه وړاندې د یونان په زیاترو ښاري سیمو کې، د حکومتي نظام بڼه جمهوري ول. او د دوی جمهوري نظام د ډیرو نیمګړتیاو درلودلو سربیره هم پنځه پیړۍ دوام کړی، خو د لومړیو پیړیو عربانو، چې د حکومتي نظام په اړه هیڅ ډول خبر هم نه ول او نه هم هغوی د یوناني جمهوریت په اړه څه اوریدلي ول، په هغو دغه ډول نیوکې کولې، چې هغو ولې جمهوریت ته کار نه دی کړی؛ د اوسنیو خلکو فکر دی، چې په لومړیو کې موږ پرې غږیدلي یو.

په جمهوریت کې، باچا د خلکو له لوري ټاکل کیږي او د حکومت درې واړه قواوې- مقننه، قضائیه او اجرائیه ټاکل شوي نوماندان پرمخ وړي. په اوومه پیړۍ کې پر دغو قوانینو عمل کول، شونې نه ول، نو دغه بحث بېځي بې ځایه دی، چې د لومړیو پیړیو مسلمانانو ولې جمهوریت ته کار نه دی کړی. دا نو داسي شو، لکه یو څوک چې وپوښتې منځنیو پیړیو کې راډیو، ټلیفون او داسي نورو څیزونو ولي رواج نه وو موندلی.

راشده خلافت او د بني امیې په زمانه کې هیچا هم د حکومت پر ډولونو فکر نه دی کړی او نه هم د اسلامي حکومت قوانین وضع شوي. د حکومتي نظام نظریې په لومړي ځل د عباسیانو دورې کې رواج موندلی، خو هغو علماو، چې د اسلامي حکومت قوانین یې ذکر کړي؛ هغوی ټول د ملوکیت د زمانې پیروان دي او هغو ملوکیت د تل لپاره حقیقت ګڼئ. دوی به تل هڅه کول، چې د حکومت هغه ډول له اسلامي تعلیماتو سره پیوند کړي او خلکو ته داسې وښایي، چې دغه حکومت د اسلامي شریعت اصلي بڼه ده.

اسلامي علماوو هیڅکله هم د حکومت سیاسي فلسفه وړاندي کړې نه ده او نه هم د باچا په اړه بحث کوي. که څه هم د حکومت بنسټیزه مسئله همدا ده، چې د حکومت مشر څوک دی او څه ډول صلاحیتونه لري. علماوو خو موږ ته دا را ښودلي، چې د حکومت ولسمشر باید څه ډول صفتونه ولري او د اسلامي شریعت لپاره باید څه ډول کړنې تر سره کړي، خو دا یې ویلي ندي، چې د حکومت ولسمشر باید څه ډول وټاکل شي.آیاولسمشر باید وټاکل شي، یا هر یو کس کولای شي په زوره د حکومت حاکم شي، یا د وارثت له مخې د هیواد واک ترلاسه کړي.( دبني امیه او بني عباس په دورو کې پر دغو دواړو طریقو عمل کیده) پر موږ فرض دی چې د ولسمشر اطاعت وکړو.

ابن جمع(۱۲۴۱- ۱۳۳۳ میلادي) [قهرالصاحب الشوکت] جایز ګڼي یاني هر یو دې خپله لار مخته وړي.

په دې موضوع باندې د الماوردي (۹۷۵ – ۱۰۵۸ میلادي) احکام السلطانیه کتاب تر ټولو جامع دی. الماوردي د خلیفه القادر( ۹۹۱-۱۰۳۱ میلادي) په زمانه کې د بغداد قاضي وو. دغه زمانه د عباسیانو د خلافت تر ټولو ځانګړې دوره وه. د ماوردي له خولې خلافت، د امت مسلمه او خلیفه تر مینځ یو تړون دی، خو تړون باید د خپلواکو پلاوو تر مینځ د دواړو لوریو په خوښې تر سره کیږي. مګر موږ وینو، چې د خلافت په هیڅ یوې دورې کې د تړون دغه بنیادي شرط نه ترسره کیږي. ویل کیږي، په بیعت کې په خپله د مسلمانانو خوښي نغښتې وي، خو په بیعت کې خو خلیفه لومړی واک ترلاسه کوي بیا خلک ورځي، له هغه سره بیعت کوي او کوم کس چې به بیعت نه کاوه؛ نو له هغه سره به ډیر بد چلند کیده. (د دې برعکس اوسني جمهوریت کې په لومړي پړاو کې کوم نوماند چې ترټولو زیاته رایه ترلاسه کوي، نو هغه بیا د هیواد ولسمشر وي).

ماوردي د خلیفه کیدلو زیات شرطونه ویلي دي، د بېلګي په ډول، هغه باید د شریعت په اړه مالومات ولري، ناروغ نه وي، باید نارینه او قریش وي، خو د امت د خوښې په اړه بېخي نه دی غږېدلی. د دغه شرطونو ګنهګار ماوردي نه دی، بلکې د منځني پیړۍ ټولنه وه. د فیوډالیزم په دوره کې، د نړۍ په هیڅ یو کونج کې هم خلکو دغه اختیار نه درلود، چې په خپلو رایو ځانته ولسمشر وټاکي. د جمهوری نظام دغه تصور، چې د هیواد ولسمشر باید د خلکو په خوښه وټاکل شي، د اوسني عصر تولید دی. په منځنیو پیړیو کې خلکو ته دغه حق نه ورکول کیده، چې خپله رایه وکاروي. تر ډیره دومره کیدل، چې د دربار وزیرانو به د پلازمینې د علماوو او شتمنو په خوښه ځانته باچا ټاکه. که

د منځنۍ پیړۍ د حالاتو او د اوسنۍ پیړۍ د حالاتو توپیر سره یوې خواته کړو او د پخوانی زمانو غوندې د ټاکلو کړنلاره، د اوسني عصر جمهوریت سره پرتله کړو؛ نو دا به یوه ډیره لویه تیروتنه وي.

ماوردي، د خپلې زمانې د حالاتو نیمګړتیاوې درک کوي، نو هغه د خلیفه لپاره د[اهل العقد والحل] قاعده لازمه ګڼلې ده. د باچاهانو حل وعقد څخه موخه علماء ول، خو د تشویش خبره دلته ده، چې د علماو د پیژندنې لپاره کومه ځانګړې تګلاره نه وه. دوی کومه مرکزي اداره هم نه درلودل، نه هغوی په یوې سیمې کې پاتې کیدل، نو هغه علماء[اهل العقد والحل] تصور کیدل، چې د باچاهانو په هره خبره کې د دوی رایه مثبته ول. بیا هم د ماوردي فکر د میا طفیل محمد د جماعت اسلامي مشر څخه ډیر ښه دی. دی چې په اوسنۍ زمانه کې، د ولسمشر د ټاکلو لپاره[د حل و عقد] وړاندوینه کوي، نو په خپل ځان او په خپلې پوهې دواړو باندې پسخند وهي.

امام غزالي هم د ماوردي غوندې د خلیفه لپاره د بالغ، د عقل خاوند، خپلواک، نارینه، قریش او عالم شرطونه ویلي دي، خو دا یې نه دې ویلي، چې باچا باید د چا له خوا وټاکل شي. ماوردي(حاکمیت) د (وخت) سره تعبیروي، نو داسي ویلای شو، که چیرته کوم باچا د ټرون شرطونه پوره نه کړي، نو د خلکو په غوښتنه باچا له باچاهي ګوښه کولای شي. امام غزالي په غیر مشروط اطاعت باندې ټینګار کوي او هغه وایي خلکو ته هیڅکله هم اجازه نشته، چې د باچا په مقابل کې پاڅون وکړي. هغه وایي:

«پر خلکو فرض دي، چې د خپل باچا عزت وکړي او که غواړئ، خدای له تاسو خوښ وي، نو هیڅکله هم د باچا پر وړاندې پاڅون مه کوئ».

د هغه په تیوکراسي کې د ظل الله او باچا څخه خلاصی نشته.

امام غزالي هم د ماوردي غوندې د هیواد ولسمشر لپاره د حل و عقد شرط اړین ګڼي، خو امام الحرمین جویني بېخي بل څه وایي، هغه وایي: یوازې د یو نیک سړي خوښه بسنه کوي. (پاک جمهوریت, ۱۹۶۰) نو که طفیل محمد یا پروفیسور عبدالغفور یو کس خوښ کړي؛ نو هغه به د پاکستان ولسمشر وي.

**(۲)**

که د حکومت ظاهري بڼه جمهوري وي، یا فیوډالي؛ نو په هر یو کې به له هغه طبقې ساتنه کیږي، چې د حکومت حاکمه طبقه وي. پر دغې نظریې خو نه اسلامي حکومت نیوکه کولای شي او نه هم غیر اسلامي. د پاکستان سیاست د تیرو ۳۵ کلنو حکومت پر همدغې نظریې څرخیدلی دی.

د پاکستان تحریک قرارداد، که څه هم د پاکستان رامنځته کېدو وروسته یو ولسي تحریک شو او زیاترو مسلمانانو مسلم لیگ کې ګډون درلود، خو د آزادۍ لپاره یوازي مسلم لیگ هلي ځلې نه دي کړي. د مسلم لیگ له انده، د تحریک پاکستان اصلي دښمن انګلیس نه، بلکې کانګریس وو، چې تیر ډیره پکښې هندوانو ګډون درلود. د مسلم لیگ شعار وو، چې مسلمانان باید ځانته حکومت ولري، خو هیڅکله هم دوی د حکومت پر ډولونو بحث نه دی کړی، چې حکومت باید څه ډول وي. د هغه نقشه باید په کومو معیارونو جوړه وي، د حکومت سیاسي او اقتصادي نظام باید څنګه وي. د مسلم لیگ سیال ګوند کانګریس د ۱۹۳۵ میلادي له ټاکنو تر مخه، د دغو موخو لپاره یو کمیسیون جوړ کړی وو، چې مشر یې پروفیسور کي ټي شاه وو. بلې خواته سوسیالیسټانو هم د خپلواک هندوستان لپاره د حکومتي نقشې وړاندي کولو کې شاته رانه غلل. پر دې سربیره د علامه اقبال بال جبریل(د جبرائیل بڼکې) او ضرب کلیم کتابونه هم خپاره شوي ول، چې علامه اقبال پکښې د جمهوریت او سوسیالیزم په اړه هر اړخیز بحث کړی. هغه د مسلمانانو اقتصادي مسئلو خواته اشاره کړې او پر مسلم لیګ یې نیوکه کړې، اقبال قائداعظم محمد علی جناح ته لیکي:

«په پای کې مسلم لیگ باید دغه پریکړه وکړي، چېآیاهغه د هندوستاني مسلمانانو په خوښه کار کوي، که د هغو مسلمانانو لپاره چې تراوسه له دغه ګوند څخه خوښ ندي. زه داسې فکر کوم، هغه سیاسي ګوند، چې د مسلمانانو په ټولنیز ژوند کې د کوم بدلون ژمنه نه کوي، نو هغه به هیڅکله هم دغه ولس د ځان خواته راټول نه کړي».

خو د لیگي پاڅون طبقاتي کړنې، د هغه پخوانی فکر او پخوانی دود دې ته اجازه نه ورکوي، چې د حکومت پر ډولونو دې بحث وشي. مسلم لیگ د نوابانو، مشرانو، غښتلیو رهبرانو، ملکانو او د داسي نورو ترفشار لاندي وو، چې خپله قائداعظم هم د حکومت پر ډولونو له بحث کولو څخه ویره درلودل، ترڅو په راتلونکې کې دغه خلک ناخوښ نه شي او ګوند کې بې اتفاقي رامنځته نه شي، نو کله چې به چا د حکومت په اړه ترې وپوښتل، هغه به ویل چې د پاکستان نوی حکومت به

تیوکراتیک نه وي، یا به یې دا ویل چې [د هر شي به خپل وخت راشي یو ځلې خو موږ حکومت ترلاسه کړو. اوس خو د دغه قوم سره نه سیمه شته او نه هم حکومت].

یانې لیګي پاڅون د مسلمانانو د سیاسي زده کړو په برخه کې ښځي پام نه دی کړی؛ دوی به یې هر وخت په احساساتي شعارونو تېر ایستل. پایله دا شوه، چې مسلمانان د نوي حکومت په جوړولو کې بیخي ویده پاتې شول، نو د پروفیسور والي مرډیل له انده: «د مسلم لیګ مشرانو په ذهنونو کې د نوي حکومت جوړولو کومه خاکه/نقشه نه وه، دا خبره ناسمه ده».

د قائداعظم په وروستیو ویناوو کې، دغه خبره واضح کیږي، چې هغه د برتانوي پارلمان په څېر د جمهوري نظام غوښتوونکی وو، خو د دغه ګوند فیوډالانو د جمهوري نظام مخالفت کاوه. جمهوریت د هغه د ژوند په اخلاقي اصولو کې شامل نه وو او نه هم جمهوریت د هغه په طبقاتي ګټو کې زیاتوالی راوستلای شو. دغو رهبرانو، دغه خوځښت د دې لپاره نه وو پیل کړی، تر څو د مسلمانانو ټولنیز ژوند ته پکښې بدلون ورکړل شي بلکې دوی غوښتل چې په نوي حکومت کې حاکمان دوي وي. دغه وجه ده، چې مسلم لیګ له قصده د حکومت ټولنیز او اقتصادي نظام په اړه څه ندي ویلي. مسلمانانو ته به یې یواځې د درواغو ډاډګیرنې ورکولې.

د پاکستان د نوي حکومت نظم او اصول د ۱۹۳۵ میلادي د هند له قانون څخه را پیلېږي. د دغه قانون په جوړونه کې، کوم مسلمان سیاستوال ګډون نه درلود، بلکې انګرېزانو د خپلو ګټو د ساتلو لپاره دغه قانون وضع کړی وو، نو د دغه قانون له مخې د هیواد ولسمشر به د هیوادوالو په خوښه نه ټاکل کیږي، بلکې هغه به یو جنرال وي. د هیواد ټول اختیارات به یوازې له ده سره وي، نو دی اړ هم نه دی، چې د هر چا پوښتونو ته ځواب ورکړي. دویم؛ د قانون له مخې هیڅوا هم نه شوکولای، د حکومت په چارو کې لاسوهنه وکړي. دریم؛ د قانون له مخې، هر څه د افسر شاهۍ تابع ګرځول شوي ول او دا د انګرېزانو هغه طبقه وه، چې د ولسمشر او جمهوریت دواړو څخه یې کرکه کوله. په دغه قانون کې پوځ ته آزادي، مطلق العناني او ترټولو د سترې اداري حیثیت ورکړل شوی وو، یانې پوځ د ولس تابع نه وو.

دغه قانون د پاکستان د حاکمې طبقې د ګټو لپاره په زړه جوړ قانون وو، نو ځکه خو هغو د ۹ کالو لپاره په غیر جمهوري ډول پر هیواد باچاهي کړې. د دغه قانون له مخې، ځیني سیمه ایز وزارتونه له مینځه یوړل شول. د هیواد په یوه برخه کې، د لومړي ځل لپاره پوځي قانون(مارشل لا) نافذ کړلای

شو (۱۹۵۳ میلادي) او په پای کې دجنرال غلام محمد په لاسو مرکزي حکومت او ولسي جرگه دواړه له منځه یوړل شول.

د سنا جرگې چې څومره بحث کړی او ځیني تړونونه یي هم لاسلیک کړي؛ نو هغوی هم د حکومتي نظام په اړه څه نه دي ویلي. د نوي حکومت لپاره د [اسلامي جمهوري پاکستان] نوم وړاندي شو. د حکومت حاکمیت، د هیواد د اوسیدونکو پر ځای خدای ته ورکړل شو او ژمنه وسوه، چې نوی قانون به د قرآن او سنت په رڼا کې جوړیږي.

خو پاکستان کومه ځانته ټاپووزمه نه وه، چې نړیوالو حالاتو به پرې کومې اغیزې نه کولې. دا هغه وخت وو، چې د نړۍ له هر کونج څخه د سوسیالیزم غږونه راتلل. د ختیځې اروپا په ځینو برخو کې سوسیالیستي حکومتونه جوړ سوي ول. په چین کې کمونیستانو د ماوزي تونگ تر مشرۍ لاندي، د چیانگ کائی شیک حکومت له منځه یووړ. اندونیزیا؛ چې تر ټولو ستر اسلامي هیواد دی؛ ولسمشر سیکارنو غوښتل د سوسیالیستي افکارو پر اساس یو نوی حکومت جوړ کړي. برما؛ اعلان وکړ چې زموږ د هیواد چاري پر سوسیالیستي افکارو څرخي. د هندوستان په نوي قانون کې، سوسیالیستي اصولو ته ځانگړی حیثیت ورکړل شوی وو او لومړی وزیر نهرو د سوسیالیزم لاروی وو. خپله بریټانیه کې، چې زموږ سره ډیري نږدې اړیکې لري؛ هلته د لیبر(کارگر) گوند حکومت وو، چې په حقیقت کې د سوسیالیزم استازولي کوي. په دغو حالاتو کې، مسلم لیگ څه ډول له سوسیالیزم څخه ځان ژغورلای شوای؟ نو لومړي وزیر نواب زاده لیاقت علي خان، چې د لومړي وزیر سره سره د هیواد یو ډیر ستر شخص گڼل کېده هغه [د اسلامي سوسیالیزم] چیغه پورته کړه او پاکستان کې د اسلامي حکومت جوړولو لپاره، هغه د سوسیالیستي اصولو نظریات څرگند کړل. د ۱۹۴۹ میلادي کال په اگسټ کې، د لاهور په جلسې کې هغه خلکو ته وایي:

«زموږ لپاره یوازې یو [نظام] دی او هغه اسلامي سوسیالیزم دی، د اسلامي سوسیالیزم لنډیز داسې دی، د هیواد هر یوه وگړي ته باید کور، کالي، ډوډۍ، زده کړي او روغتیایي آسانتیاوې په مساویانه ډول ورکړل شي. هغه هیواد چې خپلو وگړو ته دغه آسانتیاوي نه ورکوي، هغه هیواد به هیڅکله هم پرمختگ ونه کړي. هغه اقتصادي نظام چې له نن څخه ۱۳۵۰ کلونه مخکې په لومړی ځل د (نبي کریم ص په زمانه) کې ترتیب شوی وو، موږ یي نن هم تر ټولو لوړ گڼو.»

لیاقت علي خان د اسلامي سوسیالیزم یادونه ډیر ځل په خپلو امریکایي سفرونو کې هم کړې ده، خو د اسلامي سوسیالیزم خوب یې پوره نه شو. دښمنانو په یوې ګولۍ قتل کړ. په دې هر کس پوهیږي، چې کومو خلکو غوښتل مرحوم لیاقت علي خان له مینځه یوسي او د کومې طبقې سره یې اړیکي درلودلې.

د لیاقت علي خان تر مړینې وروسته، زموږ هیواد ډیر ویجاړ سو او ټول اختیارات یو ځل بیا یوه کس ته ورکړل شول. نوی قانون جوړ شو، خو هغه قانون د هندوستان جوړ کړل شوی قانون وو.جنرال سکندر مرزا ولسمشر شو او هغه د (نړیوال جمهوریت) په حق کې کړني ترسره کولې. که څه هم هغه د قانون سره د ژمنتیا لپاره، د لوړې مراسم ترسره کړي ول، خو د نوي قانون له مخه اوس ټاکنې هم ونه شوې، چې د جنرال سکندر مرزا (نړیوال جمهوریت) ځای د جنرال ایوب خان پوځي حکومت ونیوه او پر هیواد باندې د پوځ دیکتاتوري پیل شول.

جنرال ایوب خان نه غوښتل، چې د پخواني جنرال کړنې پرمخ یوسي نو هغه د [کنټرول شوي جمهوریت] پر ځای د [بنسټیز جمهوریت] اصطلاح وکارول او دعوه یې کوله چې د اسلامي حکومت تر ټولو مهم څیز دغه بنسټیز جمهوریت دی.

« زما له انده د لویدیځ څخه د تقلید پرځای، موږ باید خپلې ادارې د Consensus of opinion پر نظریې کنټرول کړو. که موږ داسې کولای شو او د نه کولو لپاره یې کوم خنډ هم نه وي، ځکه زموږ ټوله تاریخ او مذهبي دودونه پر دغه اساس ولاړ دي، نو موږ به له ګوندي سیسټم څخه خلاصی ومومو.»

خو جنرال صاحب دا څرګنده کړې نه ده، چې د خلکو د رایه ورکولو وسیله باید څنګه مالوم کړل شي او د کومو [نوماندو ادارو] چې هغه یادونه کړې؛ هغه به د ولس له رایو پرته څنګه[نماینده] ټاکي. د اسلامي تاریخ او اسلامي پیښو په اړه، جنرال ایوب خان د سیاست د فلسفې ځیني نوي مقولې هم وړاندي کړي، د بېلګي په ډول، هغه ویل چې جمهوریت یواځې سړو(سرد) سیمو کې وضع کیږي، د ګرمو سیمو لپاره ښه نه وي. یاني د هغه له انده، د جمهوریت نازک نیالګی مری، ایبټ اباد او نتهیاګلي کې حاصل ورکوي، خو لاهور، ملتان او کراچۍ کې د لمر تاب نه لري، نو دلته کوم حاصل نه ورکوي.

د جنرال ایوب خان د[پرمختګ لسیزه] پای ته ورسېدل، نو په ۱۹۶۹ میلادي کال کې جنرال یحیی خان اقتدار ترلاسه کړو او هیواد کې په لومړي ځل تر ۲۳ کلنو وروسته ، یو کس یو رایه تر عنوان لاندي ټاکني وشوې. په ټاکنو کې ولسي ګوند زیاتې رایې ترلاسه کړې، خو د لویدیځ پاکستان ځینو ګوندونو نه غوښتل، چې واک دې له ختیځ پاکستان سره وي. پایله داسي شوه، چې د پاکستان پرنفوسه ولایت، له پاکستان څخه جلا شو او هیواد کې یو ځل بیا پوځي قانون وضع شو.

خو جمهوریت دومره یو قوي بار دی، که یو وار له مینځه ولاړ هم شي، بیا هم سر راپورته کوي، ځکه نظریه هیڅکله هم له مینځه نه ځي. ګوندي د ټولنیزو حالاتو سره سمون ونه خوري؛ بیا د وخت په تیرېدلو سره، له یوې ټولنې سره ځان جوړوي، نو په ۱۹۷۳ میلادي کال کې، یو نوی پارلماني جمهوري قانون جوړ سو، خو د دغه قانون پایله هم هغسې وه، لکه د ۱۹۵۴ میلادي د قانون پایله چې ول.

زباده تابه قدح ریختم بهار گذشت

موږ چې د دایرې له کوم ټکي پیل را کړی وو بیرته هغلته را وګرځېدو او په دغه درس لوستلو بوخت یو، چې اسلام څه شی دی، اسلامي نظام څه شي ته وایي؟ که له دغو کړنو خلاص شو، نو بیا به پر اسلامي حکومت هم فکر وکړو. موږ ورته لیواله یو، خو حکومت چې په کوم ډول روان دی؛ دغه ته که اسلامي حکومت ووایو، نو کوم څه شته چې خنډ ورته جوړ کړي؟

# دریم څپرکی

# سیکولریزم

د ۱۹۸۱ میلادي کال د اپریل دیارلسمه، لاهور

د پاکستان حکومت د علماوو مشر مولانا عبدالله درخواستي وویل: «سیاستوالو، نوماندانو او ملایانو ته پکار ده، چې د سیکولریزم مقابل کې سره یوموټي شي.» پرون ماښام یې جامعه مدینه کریم پارک کې یاده وینا علماوو ته وکړه. (مولانا درخواستي په خبل ژوند کې څوځلې ناروغه شوی وو او یو حکیم یا طبیب یې درملنه هم کړې، خو که ده ته وویل شي چې ښاغلیه ستا د درملنې ټولې وسیلې سیکولر وې، نو هېڅکله به یې هم درسره ونه مني)

د علم او حکمت ونه زیات خلک گمراه کوي او د جهنم په عذابونو کې یې راگېر کړي. پادري یونان ترا (۱۲۲۱- ۱۲۷۴ میلادي).

ځیني وایي: څنگه باید ومنل شي، چې ناروغی له یو شخص څخه بل شخص ته انتقال مومي(شریعت له یادې خبرې څخه انکار کوي) نو دوی ته موږ داسې ځواب ورکوو، چې د وبایي/ساري ناروغیو وجود پر تجربې، پلټنې، پنځو حواسو او معتبرو آیتونو ثابت دی. د وباء حقیقت هله څرگند شي، کله چې یو پلټونکی ووینې، هر څوک که یاد شخص سره اړیکه ونیسي، نو هغه به هم د یادې ناروغی ښکار شي او که څوک ترې لیري وي، نو کومه اغېزه نه پرې کوي. ساري ناروغی د کالیو، لوښو او گاڼو له لارې له یو شخص څخه بل شخص ته انتقال مومي.

(ابن خطیب غرناطوي، ۱۳۱۳- ۱۳۷۳ میلادي)

وایي: کله چې یې په سقراط د زهرو پیاله څښلې وه؛ نو د هغه یو شاگرد کریټو ترې وپوښتل: ای استاده! ووایه د تجهیز او تکفین مراسم دې په څه ډول ترسره کړو؟ (زما تجهیز او تکفین)؟ سقراط په خندا شو او لږ ځنډ وروسته یې وویل: «کریټو! ما تاسو ته هر وخت ویلي، چې د کلماتو/ لغاتو کارونه سمه زده کړئ، خو داسې څرگندېږي چې تاسو باید ډېر څه زده کړئ. کریټو! په یاد ولره د کلماتو بې ځایه /غلطه کارونه تر ټولو ستره گناه ده».

نن زمونږ په هیواد کې هم له سیکولریزم سره دغه ډول ناروا شروع ده. علماء خو پرېږده، ننني سیاستوال او د ورځپاڼو ایډیټران هم خلک د سیکولریزم په مقابل کې بدګومانه کړي او خلکو ته داسې ښیي، چې سیکولریزم یوه ساري ناروغي ده او دوی باید ځان ترې وژغوري. دوی وایي: سیکولریزم یو ناوړه نظام دی، چې بې دینی، خرافاتو او ناوړو اخلاقو ته لمن وهي/الاره هواروي. که چیرته د سیکولریزم مقابل کې پاڅون ونه کړو؛ نو نه به اسلام وي او نه پاکستان؛ یانې دواړه په خطر کې دي. راځئ! د دغه ډول درواغو د روښانتیا لپاره تاریخ ته یوه کتنه وکړو.

سیکولر او سیکولریزم؛ په ځانګړې توګه لویدیځې ګڼني دي. په لاتینې ژبه کې د(سیکولم) لغوي مانا دنیا/نړۍ ده. په منځنیو پیړیو کې کاتولیک پادریان په دوو برخو وېشل سوي ول. یو هغه پادریان ول، چې د کلیسا کړني به یې پر مخ وړلي. دویم هغه چې د عامو وګړو غوندې په ښار کې اوسېدل. د کلیسا په اصطلاح کې دویمې ډلې ته '' سیکولر '' پادري ویل کېده. هغه ټولي اداري هم سیکولر نومول شوي وې، چې د کلیسا تر امر لاندي نه وې او هغه ځمکي هم چې کلیسا به پلورلې. [نن له سیکولریزم څخه موخه حکومتي سیاست یا نظم و نسق یا له کلیسا لیري والی دی او سیکولر د زده کړو هغه نظام دی، چې پکښې دیني علوم له نورو علومو څخه جلا سوي وي]. (دایرت المعارف برینټیکا، ۲۰ ټوک، ۲۶۴ مخ)

په امریکانا دایرةالمعارف کې، سیکولریزم ډېر واضح تشریح شوی. د امریکانا دایرةالمعارف له مخې، سیکولریزم یو اخلاقي نظام دی، چې د طبیعت اخلاق او اصول پکښې راټول شوي، خو له مابعدالطبیعت څخه جلا دی. لومړۍ ماده یې د فکر آزادي ده؛ یاني هر یو وګړی باید فکري آزادي ولري. ۲- هریو وګړی کولای شي د کومي کړني په اړه خپله رایه مثبته یا منفي وکاروي. ۳- ټولو بنسټېزو مسائلو باندې د بحث یا نیوکي حق ولري؛ د بېلګي په توګه خدای او روح او همداسې نورو. سیکولریزم دغه دعوا نه کوي، چې له ننني ژوند پرته بل هیڅ شی هم ښه نه دی، بلکې سیکولریزم غواړې هغه مادي اوزار جوړ کړي، چې انسانان ترې محرومه دي او هر شی باید څرګند شي. (ایضا، ۲۴ ټوک، ۵۲۱ م)

د ډاکټر مولوي عبدالحق د انګلیسي - اردو قاموس له نظره، سیکولریزم هغه ټولنیز او سیاسي نظام ته ویل کېږي، چې له دین پرته پر ساینس ولاړ وي او هلته چې حکومتي چاري له دین/مذهب څخه پرته ترسره کېږي. ( ۱۰۹۱ مخ, ایضا)

سیکولر نظریات ډېر پخواني دي، خو د سیکولریزم اصطلاح په لومړي ځل يو روښانفکره انګلیس جارج جیک هولي په ۱۸۴۰ میلادي کې وضع کړل. هغه د برمنګم ښار د ټکنالوجی انسټیوټ استاد وو. د بریټانیې نامتو خیالي سوسیالیست رابرټ اووین (۱۷۷۱- ۱۸۵۸ میلادي) هم فکره وو؛ ځکه له وظیفې وشړل شو او د تل لپاره یو مُبلغ شو. په دغو ورځو کې، له لندن څخه د روښانفکرو یوه رساله[ د عقل چیغه ] خپریدل. کله چې په ۱۸۴۱ میلادي کې د رسالې سرمحرر د عیسویت مقابل کې بې احترامې وکړه؛ نو هغه د یو کال په بند محکوم شو او پر ځای یې هولي اوک سرمحرر وټاکل شو؛ خو څو میاشتې لا نه وې تیرې شوي، چې د یو تقریر خپریدو له کبله هغه د ٦ میاشتو په بند محکوم شو. کله چې آزاد شو، نو هر ځای به یې د فکر د آزادی په اړه مسلسل تقریرونه او رسالې لیکلې. په ۱۸۵۱ میلادي کې یې په لندن کې د (سینټرل سیکولر سوسائټې) تر نامه لاندې یو ټولنه جوړه کړل.د هولي اوک تګلاره یا موخه داسې وه:

۱.ساینس د انسان ریښتینی ملګری/پیشوا دی.

۲. اخلاق له دین/مذهب څخه جلا او یو ډېر پخوانی حقیقت دی.

۳. عقل؛ د علم او فکر ځانګړی مرکز دی.

۴. هر یو وګړي ته باید فکري آزادي ورکړل شي.

۵. موږ باید دغه نړۍ نوره هم ښایسته او آرامه کړو.

که چېرته سیکولریزم د ټولنیز نظام په توګه قبول کړو، نو دینداره به بې دینه او خدای پرست به بت پرست نه شي؛ نو ویلای شو، چې سیکولریزم د اسلام لپاره کوم خنډ او خطر نه دی، نه هم د پاکستان راتلونکی په خطر کې دی؛ بلکې زموږ له انده پر سیکولر اصولو ولاړ پاکستان به ډېر روښانفکره، پرمختللی او متمدن هیواد وي. د سیکولریزم موخه دا نه ده، چې د ټولنې دننه ګډوډي زیاته کړي او اخلاقي نظام له منځه یوسي؛ بلکې سیکولریزم یوه داسې فلسفه ده، چې د فکر او شخصي آزادۍ لپاره ځانګړې شوې ده؛ د تقلید او روایت پالني پرځای د عقل او علم پر ځواک تکیه ده، نو ځکه خو سیکولرانو تل هڅه کړې، تر څو خلک له وهمپالني / توهم پرستۍ (په پټو سترګو د یو څه منل. ژباړن) څخه وساتي او د عمل او فکر خواته یې راوبلي. دا کومه ځانته فلسفه نه ده. زموږ صوفي کرامو به هم ویل چې حقیقت خپله وپلټئ، خپله یې زده کړئ او که د خالق یا مخلوق سره هم اړیکه ټینګوئ؛ نو باید مخبنا یې پر حق ولاړه وي؛ نه د جنت او دوزخ له وېرې. د حضرت رابعه

بصرې په اړه ویل کېږي، چې یوه ورځ هغه د بصرې پر سړک روانه وه، چې په یو لاس کې یې شمعه او په بل لاس کې د اوبو ژی وو. خلکو ترې وپوښتل، نو هغې ځواب ورکړ، چې زه غواړم په جنت کې اور ولګوم او د دوزخ اورپه دې اوبو مړ کړم؛ تر څو مسلمانان د ګناه او ثواب له فکرونو آزاد شي او په ډک زړه له خدای سره مینه وکړي.

هغه خلک چې د عقل او اجتهاد پر ځای تقلید او اطاعت باندې زور کوي؛ هغوی پخپله د مذهب له تاریخه بې خبره دي. لږ فکر وکړئ، که چیرته حضرت ابراهیم د روایت پالنې لاره خپله کړې وه، پلرنی مذهب یې منلی وو او هغه یې پر فکري دلیلونو نه وو رد کړی؛ نو ابراهیمي دین به چیرته وو؟ غالب په دې اړه لیکي:

با من میاویز ای پدر! فرزند آذر رانگر
هر کس که شد صاحب نظر، دین بزرگان خوش نه کرد

غالب خو د خضر غوندې د شخص اطاعت هم اړین نه ګڼي، بلکې وایي هغه زما همسفر دی. سیکولریزم پر دغه ماده را څرخي، چې د فکر او رایې آزادي د ټولو انسانانو بنسټیز حق دی، نو باید هر یو وګړي ته پوره - پوره اجازه ورکړل شي، چې رښتینې لار خپله وموندي او د ژوند ټولو مسائیلو په اړه که څه هم هغه سیاست، اقتصاد، مذهب، اخلاق، فلسفه، حکمت، ادب وفنون او یا نور وي؛ له وېرې پرته خپل نظریات وړاندې کړي. د زور په وسیله/ له وېرې د چا خوله بنده نه شي او هېڅکله دې هم په زوره په چا خپل نظر ونه تپل شي.

کله چې د خلکو خولې په زوره وتړل شي؛ نو دا هم په ټولنه ډېره بده اغیزه لري. دننه په هیواد کې هر څه له مینځه ځي، فضا را تنګه شي او د اقبال له قوله د دوی سجدې ډېرې اوږدې شي، وېره دومره زیاته شي، چې هر یو وګړی له خپلې سایې څخه وډار شي، په پای کې خلک مجبور شي او د حکومت هر څه مني؛ فکر کول، پوښتنه کول، شک کول یا انکار کول (چې د علم او زده کړو لومړی شرط دی) هر څه تر شا پرېږدي.

له وېرې، ډار له ډاره، بنده ګي او له بنده ګۍ څخه د غلامۍ ذهنیت زیږي. د جرئت په نامه شی لا هم نه وي پاتې، د پلټنو، هلوځلو هره جذبه له مینځه ولاړه شي. په دې سره ورو - ورو یو داسې نسل

رامینځته شي، چې ذهناً او په عمل کې شل او شنډ وي. نو دغه ډول نسل به نړۍ سره څه ډول جګړه وکړي او څه ډول به یې په مقابل کې ودرېږي.

هر وخت چې د فکر او عمل قوانین له طبیعت سره همغږي وکړي؛ نو دې ته سیکولریزم وایي او که د طبیعیت له قوانینو سره ځان ووهي، نو یوه ورځ به یې پایله ویني. د انساني پنځوني هر عمل د طبیعت د قوانینو له مخې وي، نو که شعر ویل دي یا انځور کښل دي، که کالي ګنډل یا الوتکه الوزول؛ موږ مجبور یو، چې خپلو کړنو کې له سیکولر نظریاتو کار واخلو، دا که موږ ومنو که ونه منو؛ نو له دغه ستر حقیقت څخه سترګې نه شو پټولای، چې زموږ کړنې موږ پورې تړاو لري او پکښې کوم بهرنۍ ځواک لاس نه لري؛ یانې خدای. په داسې ویلو سره موږ هیڅکله هم له قتله ځان نسو خلاصولای، چې ووایو: « په خوب کې ماته د قتل کولو حکم وشو.» دنارغیو درملنه هم د سیکولر قوانینو له مخې وضع کیږي، خو پخوانیو زمانو کې انسان د طبیعت له قوانینو سره لږه آشنایي لرله، نو د طبعیت له قوانینو به وېریدل. د طبیعیت عبادت به یې کاوه او هر څه به یې له ترې غوښتل. د اوسپنې په زمانه کې نیل سیند، دجلې سیند، فرات سیند او سند سیند کې ډېري بدلونونه رامینځته شول او انسانانو د خپل ورځنې ژوند لپاره زیاتره شیان جوړکړل، خو د دغه وخت شعور لا پر تجربو ولاړ وو، نه په فکر او استدلال. هغو هیڅکله هم له خپلو کشفیاتو، ساینسي نظریه وانه خیستل. د دوی عمل سیکولر وو، خو فکر یې سیکولر نه وو.

په لویدیځ کې، د سیکولر نظریاتو پیل دایونیا (لویدیځې ترکیې) طبیعي فیلسوفانو وکړ، چې له اصله یونانیان ول. تالس، انکسي ماندر او دیموکریتوس او همداسې نورو به د طبیعیت د عناصرو له مخې هر څه تشریح کول. چا به ویل د هستۍ اصل اوبه دي، چا به ویل نه اور دی، چا به ویل یه هوا ده او چا به ویل یه اتوم دی. په دوی کې زیاترو یونانیانو خدای منځ، خو د ورځني ژوند زیاتره مسئلې به یې د سیکولر قوانینو له مخې شنلې. د یونان زیاتره ښاري حکومتونه په ځانګړې توګه د آیتهینز ښاري حکومت سیکولر وو، خو بیا به هم خلکو د خدایانو عبادت هم کاوه.

د یونان له زوال وروسته، هغه مهال چې د لویدیځ سیاسي مرکز روم ته ولېږدول شو، نو د ورځني ژوند له غوښتنو سره باچاهانو سیکولر نظریې خپلې کړي. په لومړیو کې به د قانون نسخې د رومیانو له پیشواوو سره وې. قوانین به هغو تشریح کړل او مذهبي دودونه به یې هم پر مخ وړل، پیشواوو له حاکمې طبقې سره د اړیکو لرلو له امله له دغه ډول صلاحیتونو څخه خورا ناروا ګټې وکړې. ۴۸۱ ق.م

کې چې په روم کې د پیشواوو خلاف بغاوتونه پیل شول، نو د رومن سینټ ټول قوانین په ۱۲ لوحو کې ترتیب کړل شول. دې سره د [رومن لا] سیکولر دوره پیل شول. د هیواد قوانین به اشرافو جوړول او ترتیبول. له میلاد تر مخه په دریمه پیړۍ کې، کله چې د پیشواوو پرځای په محکمو کې وکیلان وټاکل، نو د حکومت په چارو کې د پیشواوو لاسوهنې را لنډې شوې. له میلاد تر مخه په لومړیو پیړیو کې د ختیځو ټولنو یو نوی عنصر په رومیانو کې رواج وموند؛ دغه عنصر وتوانېد ټوله اروپا تر خپلې اغېزې لاندې راولي. دغه عنصر د عیسویت دین وو.

حضرت مسیح/عیسی به ویل: «د خدای حق، خدای ته ورکړئ او د قیصر روم حق هغه ته.» زیاتره شاګردانو یې د هغه پر حکم عمل وکړ، خو د روم قیصر د مسیح له ښوونو خوښ نه وو، کله چې پطرس او پال روم کې تبلیغ پیل کړ، نو دوی پر صلیب را ځوړند کړل شول. د زیاترو نورو مبلغینو هم دغه پایله وه او په عام ولس باندې زیات ظلمونه ترسره شول. د دریو پیړیو لپاره روم له دغه وضیعت سره مخ وو، خو له دې سره عیسوي مذهب زیات رواج وموند او په پای کې باچا قسطنطین اعلان وکړ (۲۷۴ – ۳۳۷ میلادي) چې [هر یو وګړی د عبادت په چارو کې آزاد دی؛ هر ډول چې غواړي، الهي عبادت دې پرمخ وړي] خو کله چې په ۳۱۳ میلادي کال کې، قسطنطین خپله عیسوی شو؛ نو پر نورو مذهبونو بندیزونه ولګېدل. په ۳۴۶ میلادي کال کې، ټول غیر عیسوي عبادت ځایونه وتړل شول. د عبادت ځایونو ټولې ځمکې ضبط کړل شوې او کلیسا ته وسپارل شوې. هغه خلک چې تر پرونه مفلسه او بې روزګاره ول؛ نن د ځمکو خاوندان شول. روم د کلیسا ستر مرکز وټاکل شو، ځکه پطرس او پال همدغلته خښ ول. د پاپ پطرس ځای ناستي د عیسویانو روحاني پیشوا وټاکل شول. له دې وروسته کلیسا حاکمه شوه او د اقتدار دوره یې پیل شول. باچا قسطنطین خپل مرکز قسطنطنیې ته ولېږدوه؛ ځکه هغه د شمالي اروپا له وحشي قومونو څخه وېره درلودل. د هغه تر مړینې وروسته، د اقتدار لپاره جګړې پیل شوې او ټوله امپراطوري په دوو برخوووېشل شول. یو د قسطنطنیې بازنطینې سلطنت او بل د لویدیځ سلطنت ستره مانۍ، روم ول.

لا د لویدیځ سلطنت لومړۍ ورځې وې، چې د ختیځې اروپا ګوت او هن قومونو پر لویدیځې اروپا یرغل پیل کړل. په ۴۱۰ میلادي کال کې یې د روم سلطنت هم له مینځه یووړ. د چوروچپال او قتلونو دغه لړۍ ۶۰ کاله وخت ونیوه. په دغه لړۍ کې ګوت قوم د هسپانیه، فرانسې او ایټالیا په زیاترو

سیمو کې حکومتونه پرانېستل. په ۴۷۶ میلادي کال کې، د گوت قوم یو مشر وتوانېد؛ باچا آگستولس له تخته لرې کړي او خپله حاکم شو. د روم لویدیځ سلطنت د تل لپاره له مینځه ولاړ.

دغو وحشي قومونو د پخواني روم زرکلن فرهنگ له مینځه یووړ او له دې وروسته د پخواني علم او ادب آثار هم له مینځه یووړل شول او اروپا کې جهالت خپور شو.

د لویدیځ سلطنت له زوال سره، رومن کلیسا زیاتې گټې ترلاسه کړې. که قسطنطنیه کې د روم په څېر یو پیاوړی حکومت رامنځته شوی وای؛ نو د رومن کلیسا حیثیت به داسې وو، لکه په بازنطین کې چې د پادریانو وو. هغوی به د باچا اطاعت کوه او هیڅکله به یې هم د کلیسا شا نه نیول. په روم کې د سلطنت له زوال وروسته اروپایي ټولنې کې ډېره خلا رامنځته شوه، له دې سره کلیسا نور هم پرمختگ وکړ. پادریانو، د ایټالوي فرهنگ پاتې نسخې له گوت قوم څخه وژغورلې. په دې کې هیڅ کوم شک نشته، چې[د جهالت په دغه دوره کې د پطرس ځای ناستي د لویدیځې اروپا په طوفاني سمندر کې، د نور منارې په څېر راڅرگند شول]. (Fisher, 1972) دوی له لیک او لوست سره بلد ول. د مذهبي ورځو حساب دوی ته مالوم وو. دوی به د زېږون، ودونو، تکفین او تجهیز دودونه پر مخ وړل او د باچا مخې ته به یې د بې وزلو شفاعت کاوه. نو ځکه داسې هم ویلای شو، چې د جهالت په دوره کې د ټول ولس خواخوږي یوازې او یوازې دغه پادریان ول. په منځنیو پیړیو کې، کلیسا د خلکو په زړونو کې کور جوړ کړی وو. دا نو بیا یو بل بحث دی، چې کلیسا له دغه ډول وضیعت څخه څومره ناوړې گټې پورته کړې، چې بیا د ټولنیز نظام لپاره یو ستر خنډ وو.

د اروپا نویو حاکمانو هم د کلیسا په مقابل کې کوم بد کار ونه کړ او تل به یې هڅې کولې، تر څو پادریانو سره ښې اړیکې ولري، ځکه د کلیسا پرته حکومت کول سخت وو. بل لور ته کلیسا هم دوی سره پوره - پوره مرستې کولې-مذهبي پیشواوو به په ډېري آسانۍ سره د حاکمانو سره اړیکې جوړې کړې؛ که هغه به هر ډول حاکم وو. د رومیانو په دوره کې حاکمانو او مشرانو به هېڅکله هم له پادریانو سره جگړې نه کولې.

د لویدیځ تاریخپوهان منځنۍ پیړۍ د جهالت له دورې سره تعبیروي. دوی وایي، له پنځمې میلادي پیړۍ نیولې بیا تر پنځلسمې میلادي پیړیو پورې دغه دوره د ټولنیز ژوند لپاره تر ټولو خرابه او بې کاره دوره وه، خو د ټولنیزو دورو عمر هېڅکله هم اټکل کېدلای نه شي، ټولنیزې دورې کومې تاریخي پېښې نه دي؛ بلکې دا یو تکاملي بهیر دی، چې د پیل او پای نېټه دي یې اټکل شي . دا یو

ستر حقیقت دی، چې د منځنیو پیړیو دوره ډېره سوکه - سوکه له منځه ولاړه او د نوې دورې پیل هم ډېر سوکه وو. په دیارلسمې میلادي پیړۍ کې اروپا د سیکولر افکارو سره نوې اشنا شول. دا یو تاریخ جوړونکې پیړۍ وه. په همدغه پیړۍ کې، ایټالیا له پانګوالي نظام سره مخ شوه او د سیکولریزم افکارو د هسپانیه او سیسلي له لارې اروپا ته لار وموندل، خو د تاریخ ظلم ته ګوره، چې د اسلامي دین ستر پوهان لکه الکندي، ابوبکر رازی، ابو علي سینا، ابن هیشم، خوارزمي، البیروني او ابن رُشد وتوانېدل، چې لویدیځ له سیکولر افکارو سره اشنا کړي. نن د همدغه دین علماء سیکولریزم د اسلام دښمن ګڼي.

انګلیس تاریخپوه پروفیسور فیشر وایي، زه له دغې خبرې ډېر تعجب کوم؛ د سیکولریزم افکار له ایټالیا پیل شول، چې د کلیسا تر ټولو ستر او پیاوړی مرکز وو، خو د دیارلسمې میلادي پیړۍ د فکري خوځښتونو په اړه لیکي:

«دا یوه سرچپه خبره ده، چې ایټالیا د کلیسا تر ټولو پیاوړی مرکز وو، خو په لویدیځو هیوادونو کې تر ټولو ستر سیکولر هیواد وو». (ایضا، ۲۶۰ مخ)

خو دا خبره هېڅکله هم درواغ نه شي کېدلای، بلکې سل په سله رښتینې ده، چې د صلیبي جګړو په دوره کې له ټولو لویدیځو هیوادونو ترمخه صنعت، حرفو او سوداګرۍ، ایټالیا کې رواج او پرمختګ کړی. په ښکاره د صلیبي جګړو موخه، د عیسویانو له مقدسو ښارونو، یروشلم او بیت الحم څخه د مسلمانانو وېستل ول، خو اصلي موخه یې د ختیځ روم سمندرګي پر سوداګرۍ او سوداګریزو لارو ولکې لګول ول. صلیبیان ونه توانیدل، چې فلسطین او شام آزاد کړي، خو دومره یې وکړل، چې د ختیځ روم سمندرګي پر سوداګرۍ یې د ایټالیا جمهوري حکومتونه جوړ کړل. دغه حکومتونه په ځانګړي توګه د وینز، میلان، فلورنز او جینوا ښاري حکومتونه ول. د دوی ټوله پانګه پر سوداګرۍ او صنعت او کسبونو څرخېدل. دوی به هرکله د کلیسا خلاف څه نه څه کول. کلیسا چې د هیواد تر ټولو ستر ځمکوال وو، ګڼي یې له فیوډالیزم سره نغښتې وې، خو جمهوري حکومتونو د پانګوالی نظام چیغې وهلې.

که څه هم د سیکولر ښوونیزو مرکزونو پیل په ایټالیا کې شوی، خو دا کوم ناڅاپي عمل نه دی، بلکې د صنعت، حرفو او سوداګرۍ د پرمختګ لپاره یوه تاریخي او اړینه غوښتنه وه. د ایټالیا بانک لرونکو، کښتۍ جوړونکو او د وریښمینو کالیو خاوندانو به هر کله د ماهرو کارګرو غوښتنې کولې، خو

د زده کړې مرکزونه د کلیسا تر لاس لاندې ول، چې د فني زده کړو سر سخته مخالف ول؛ نو پانگوالو به په خپلو شخصي لگښتونو د سیکولر زده کړو مرکزونه جوړ کړل. کلیسا د دوی مخالفت وکړ، خو هیڅ یې هم له لاسه ونه شول، بلکې د سترگو په رپ کې زیاترو غټو ښارونو کې د سیکولر زده کړو لپاره پوهنتونونه جوړ شول. [دغه پوهنتونونه یواځې او یواځې د سیکولر زده کړو لپاره جوړ شوي ول]. (ایضاـ) نو واضح خبره ده، چې د دوی زده کړې د کلیسا خلاف عمل کوه. د بلوانیا په پوهنتون کې خو د دینیاتو ځانگه بیخې نه وه. پیډوا پوهنتون د نویو افکارو ستر مرکز وو. په فلورنس کې خو د تخنیکې زده کړو لپاره ٦ ښوونځي جوړ سوي ول او زرو شاگرانو پکښې زده کړې کولې. د سالرمیا پوهنتون خو د طبې زده کړو لپاره ټولې اروپا کې ځانگړی نوم درلود. د دغو پوهنتونونو زده کړیالانو به سیکولر افکار درلودل او دوی به د کلیسا خلاف عمل کوه.

بل مهم عنصر چې له برکته یې سیکولر افکارو لا پراختیا موندل؛ د شرعي قوانینو پرځای د ټولنیزو قوانینو رواج وو. دغه نیک کار هم د ایټالیا جمهوري حکومتونو ترسره کړ. ځکه د کلیسا قوانینو د نوي ټولنې غوښتنې پوره کولای نشوې، نو په دیارلسمې میلادي پیړۍ کې روم، ملان، ویرونا او بلوانیا کښې د حقوق او قانون فاکولتې جوړې شوي. په دغه پوهنځیو کې به د پخواني رومن قانون تدریس کېده. دغه درسونه  د کلیسا لپاره زیاتې خطرناکې ثابتې شوې. له دې وروسته د محکمو چارو بدلون وکړ، نو ځکه پادري سینټ فریاد وکړ، چې د اروپا په محکمو کښې خو یواځې د جسټن قوانین اوریدل کیږي، د خدای د قوانینو خو څرک هم لېدل کیږي او پروفیسور فشر چې له کلیسا سره همغږی دی، هغه ومنل، چې په دیارلسمې پیړۍ  کې سیاست او ټولینز ژوند باندې چې څومره اغېزې وشوې؛ نو په ټوله کې رومن قانون اغېزه زیاته ول. د حکومت او کلیسا تر مینځ چې کوم کشمکش روان وو؛ په پای کې هغه وگړو، چې د قانون زده کړي یې ترسره کړې وې، د کلیسا خلاف او حکومت سره یوځای شول.

په همدغه زمانه کې فرانسه، بلجیم او بریټانیه هم د صنعت، کسبونو او سوداگرۍ سره آشنا سول او هلته دغو دواړه عنصرونو ډېر پرمختگ وکړ. په مارسلز، ایمسټرډم، همبرگ او لندن کې صنعتي او سوداگریزو شرکتونو ډېره پراختیا موندل. د سیکولر زده کړو لپاره پوهنتونونه جوړ سول او په پخوانیو پوهنتونونو کې به له دې وروسته سیکولر افکار تدریس کېدل، چې مخکې د کلیسا تر اغېزې لاندې ول. په بریټانیه کې اکسفورډ او کیمبرج پوهنتونونه لا تر ډېره د کلیسا تر اغېزې لاندې ول؛ نو د ټولنیزو

قانون د زده کړې لپاره سوداګرو په خپلو ښارونه کې د حقوقو او قانون مرکزونه جوړ کړل، چې لا تراوسه د ای این این«سرای» په نامه فعالیت کوي. زموږ د هیواد قاضیان او څارنوالان له همدغه مرکزه ډیپلومونه ترلاسه کوي.

د ژوند په دغې نوې دورې کې، چې د پانګوالي نظام په مرسته رامینځته شو، د پخواني فکر په مینځه وړلو کې ډېر ګټور ثابت شو، خو اروپایي ټولنه لا تر هغه مهاله د جهالت ورځي شپې سبا کولې. دغه نیمګړتیا هم د هسپانیې او سیسلي عربو مفکرینو بشپړه کړل. په اروپا کې، د فکري انقلاب د راوستلو لومړی نوم د دوی دی. نو پروفیسور فیشر، چې یو متعصبه تاریخپوه دی، هغه هم په پای کې ومنل، چې « په دیارلسمې میلادي پیړۍ کې د روښانفکری کوم عناصر چې اروپا ته راورسېدل؛ نو هغه له یونان څخه نه بلکې له هسپانیې د عربو په مرستو راورسېدل.» په همدې تړاو پروفیسور فلیپ لیکي:

«د اروپا په منځنیو پیړیو کې، د هسپانیې مسلمانانو د فکري تاریخ په اړه زیات کتابونه لیکلي. په اتمې او دیارلسمې میلادي پیړۍ کې، د عربي ژبې ویونکو په ټولې نړۍ کې ځانته ځانګړی مقام درلودی. دوی وتوانیدل، پخوانی ساینس او پخوانۍ فلسفه بېرته را ژوندۍ کړي. دوی په دغو علومو کې زیاتوني وکړې او لویدیځ یې له رنسانس سره اشنا کړ. په دغه کار کې، هسپانوې مسلمانانو ډېره برخه درلودل. هغوی وتوانیدل، چې یوناني فلسفه لویدیځ ته ولېږدوي. په لویدیځ کې دغو نویو افکارو او په ځانګړي توګه فلسفي نظریاتو، د جهالت دورې ته د پای ټکی کېښېښود». ( Hitti P. , History of Arabs,P.580-87)

دا یو ستر حقیقت دی، چې علم او حکمت له ډېرو سختو لارو را تېر شوی. د یوناني فکر او فنونو بنسټ، په لومړي سر کې د بطلیموسي باچاهانو په دوره کې( له میلاد څخه مخکې دریمه پیړۍ کې) اسکندریې ته ولېږدول شو. له دغې خزانې څخه د شام او عراق یهودي او عیسوي علماوو هم ډېر څه زده کړل. بیا د عباسیانو په دوره کې، یوناني کتابونه عربي ژبې ته وژباړل شول. له دغو ژباړو مسلمان حکیمانو او طبیبانو ډېري ګټې ترلاسه کړې. د عباسیانو له زوال وروسته، د علم او حکمت پانګه هسپانوي عربانو ته په میراث کې پاتې شول. دوی یوازې د دغې شتمنۍ ساتنه ونه کړه؛ بلکې په څېړنیزو او پنځنیزو هڅو سره یې په دې کې نوري زیاتوني هم وکړې. دوی خپله پوهه یوازې تر ځان محدوده نه کړل، بلکې لویدیځ ته یې هم ډېر څه لېږدول. ورو - ورو د لویدیځ په پوهنتونونو او زده

کړو په مرکزونو کې عربي کتابونه، لاتیني ژبو ته وژباړل شول. که ریښتیا ووایو؛ نو دا عرب مفکرین ول، چې اروپا یې له سیکولر نظریاتو سره آشنا کړې او دا یو تاریخي شهکار دی.

نهمه میلادي پیړۍ، چې له یوناني او سانسکریټ ژبو څخه عربي ژبې ته د ژباړو دوره وه؛ نو همداسي دولسمه او دیارلسمه پیړۍ(۱۱۲۵ میلادي- ۱۲۸۰ میلادي) له عربي څخه لاتیني ژبو ته د ژباړو دوره وه. هسپانیې په همدغو ورځو کې، زیاتره د لیک او لوست خاوندان درلودل، چې په عربي، لاتیني او فرانسوي ژبو ډېر ښه پوهېدل، خو د ژباړو په لړلیک کې د ایټالوي پوه جرارډ آف کري مونا (۱۱۱۴ میلادي- ۱۱۸۷ میلادي) نوم راځي. دی د علم تږی وو؛ نو طولیدو ته ولاړ او بیا د هغه ځای شو. جرارډ اتیا کتابونه له عربي څخه لاتیني ژبې ته وژباړل. په دغو ژباړو کې، د بطلیموس المجسیط، د الخوارزمي حساب، الجبر او المقابله، د ابوعلي سینا قانون الطب (چې د لویدیځ په پوهنتونونو کې تر ډېر وخته تدریس کېده)، د حکیم ابوبکر رازي سرالاسرار ( چې دوه نیمې پیړۍ د کیمیا معتبر کتاب گڼل کېده) او د جابر ابن فلاح الحیات کتابونه ول.

د دغو کتابونو تر څنگ یې د الجاحظ الحیوان، د ابوبکر رازي الطب المنصوري (چې په لسو ټوکونو کې لیکل شوی)، د الخوارزمي او الطباني زج، د ابن بیطار او ابن ماجه کتابونه او د الحادي کتاب چې د یوناني، ایراني او هندي طب قاموس وو، لاتینې ژبې ته یې وژباړل. ځینو عربو حکیمانو مستقیم په لاتیني ژبې باندې لیکل کول، د بیلگې په توگه جعفر احمد بن غفیقي، چې د قرطبې نامتو طبیب وو. هغه الادویه مفروده کتاب په عربي، بربري او لاتیني ژبو لیکلی. د دغه کتاب لپاره غفیقي هسپانیه او افریقه ته ولاړ او له اته سوو څخه یې زیاتې نسخې وموندلې. دغه ټول حکیمان چې پورته ذکر شول، مسلکي طبیبان ول؛ یانې د خپلې دورې ساینس پوهان ول. څکه خو پروفیسور لانگو د نامتو جرمن مفکر همبولټ دغه وینا را نقلوي، چې« عربان باید د طبیعي علومو بنسټگر وگڼل شي.»

په منځنیو پیړیو کې، چې کومو حکیمانو د لویدیځ افکارو بدلون کې غوښنه ونډه درلودل، په هغو کښې د ابوبکر رازي( مړینه- ۹۲۵ میلادي) او ابن رشد ( ۱۱۲٦ میلادي- ۱۱۹۸ میلادي) د نومونو په سر کې راځي. رازي د ری(تهران) اوسیدونکی وو، خو بغداد ته ولاړ، هغه ډېر روښانفکره ساینس پوه وو. البیروني یې د ٥٦ کتابونو یادونه کوي، خو د هغه کتابونه له سلو څخه زیات دي( ۳۳ په طبیعي علومو کي لیکل شوي، ۲۲ په کیمیا، ۱۷ فلسفې، ۱۴ دینیات، ۱۰ ریاضي، ۸ منطق، ٦ مابعدالطبیعاتي او ۱۰ نور کتابونه) د رازي کتابونه په لومړي ځل جرارډ لاتینې ژبې ته وژباړل؛ بیا د باچا چارلس آف

انجو په امر په دیارلسمې میلادي پیړۍ کې وژباړل شول. په اروپا کې په (رهزي) مشهوره دی. په پای کې د ډېرې مطالعې له وجې په سترګو ړوند شو.

رازي، د بت پالنې خلاف وو. هغه عقل او تجربه د علم اساس ګڼل او ولسي فکر یې درلود. هغه به ویل، عام انسانان هم کولای شي فکر وکړي او دوی کولای شي د ساینس حقیقت په خپلو فکرونو درک کړي. هغه به ویل دا زموږ حق دی، چې په فلسفې او مذهب/دین نیوکې وکړو. هغه له معجزو انکار کاوه، ځکه معجزې د طبیعت قوانین له مینځه وړي او د عقل خلاف عمل دی. هغه له ادیانو سره هم جوړ نه وو، ځکه دده له نظره ادیان هر کله حقیقت پټوي او په خلکو کې تفرقه اچوي. هغه د ټولنې په اړه، د افلاطون کتاب تماؤس رېښتنی ګڼي.

رازي د ارسطو پیروی نه دی، بلکې ځان له ارسطو ښه ګڼي. هغه د ارسطو [طبیعت] کتاب ردوي، د ډموکراټس او ایپی قورس اتومي فلسفو په اړه یې هم دلیلونه وړاندې کړي. د هغه له نظره، ټول مادي شیان له اتومونو جوړ دي او په فضا کې حرکت کوي. د ارسطو برعکس هغه د فضا منونکی دی. د هغه له نظره پنځه طاقتونه/قوتونه تل پاتې دي؛ خدای، روح، ماده، وخت او مکان. هغه به ویل، ساینس د پای ټکی نه لري، بلکې ورځ تر بلې پرمختګ کوي، نو انسان ته په کار ده، چې له عقل څخه کار واخلي او د منقولاتو پر ځای پر حقیقتونو باندې باور وکړي/ولري. ( Cambridge History of Islam, Vol.11, P.801)

طبیب خو ابن رشد هم وو، خو په اروپا کې د فلسفې له وجې مشهور وو؛ په ځانګړې توګه د ارسطو شرحې. له دولسمې میلادي پیړۍ څخه نیولې تر شپاړلسمې میلادي پېړیو پورې په ټولې اروپا باندې، د ابن رشدیت مکتب او فکر غلبې وې؛ که څه هم دعیسوي پادریانو خوښ نه وو او ډېر سخت یې خلاف ول. د ابن رشدیت فلسفې لنډیز داسې وو، چې: (۱) هستي او ماده تل پاتې ده، (۲) په ورځنیو چارو کې؛ خدای لاسوهنه نه کوي، (۳) عقل به تل پاتې وي او د علم اساس دی.

د ارسطو کتابونه په ځانګړې توګه [طبیعت او مابعدالطبیعت] باندې د ابن رشد شرحې پاریس ته ورسېدلې، نو په کلیسا کې یې جنجالونه جوړ کړل. استاد او شاګرد دواړو یې پر عیسوي عقایدو، معجزاتو او د روح په اړه نیوکې پیل کړې. حالات دومره خراب شول، چې په ۱۲۱۰ میلادي کې، د پاریس کلیسایي مجلس د ارسطو کتابونه په ځانګړې توګه، د ارسطو پر شرحو باندې بندیزونه ولګول، خو هیڅا هم ونه منل نو په کال ۱۲۱۵ میلادي کې پاپ په ټولې عیسوي نړۍ کې، د هغه په کتابونو

بندیزونه ولګوئ. د دغه ډول بندیزونو پایله وه، چې ابن رشد نور هم مشهور شو. څلورم پاپ سکندر د رشدیت خلاف پادري البرټس مغنوس ته دنده ورکړه، چې یو کتاب ولیکي، خو هغه هم تر ډېره د ابوعلي سینا ویناوې نقل کړې او د مسلمان مفکرینو حوالې ورکوي. په ۱۲۶۹ میلادي کې، د ابن رشد دیارلس ویناوي د مذهبي زده کړو خلاف وګڼل شوې، چې ځینې یې داسې دي: د ټولو انسانانو د ماغزو جوړښت یوډول دی، نړۍ تل پاتې ده، د آدم زېږیدنه یوه افسانه ده، انسان په خپلو چارو کې خپلواک/آزاد دی او له خپلو اړتیاو مجبور، د ورځني پیښو په اړه خدای نه پوهېږي او د انسان په اعمالو کې د خدای خوښي شامله نه ده. له دې وروسته ابن رشدیت نوره هم وده وکړه. نو ځکه خو په ۱۲۷۷ میلادي کال کې، د ابن رشدیت په ۲۱۹ ویناوو فتوا صادرې شوې، د بیلګې په توګه پنځونه ناشونې ده، د مړو جسدونه بیا نه را ژوندي کېږي، د قیامت په اړه بحث کول له فلیسوفانو سره ښه نه ایسي، د دین خبري ټولي کیسې دي، د دینیاتو له زده کړو سره زموږ په علم کې کوم زیاتوالی نه راځي، د عیسویت دین له علمه خارج/وتلی دی. دغه نړۍ خپله جنت دی؛ په آخرت کې څه نشته .

په فرانسې کې، د ابن رشدیت تر ټولو ستر پیرو د پاریس پوهنتون پروفیسور سیګر (۱۲۳۵ میلادي- ۱۲۸۱ میلادي) وو. په کال ۱۲۷۷ میلادي کې، په دیني محکمه کښې د هغه خلاف قضیه وچلېدل او د ټول عمر په زندان محکوم شو. د زندان ورځې شپې یې په روم کې تېرې کړې او هغلته ووژل شو. د دغه ډول سختو سره - سره د ابن رشد نظریاتو زیات ذهنونو متاثره کړل، آن تر دغه ځایه چې ویل ډیورنټ وایي'' د دیارلسمې پیړۍ په منځنیو لسیزو کې ابن رشدیت د باسواده طبقې فیشن وګرځېد. (duarant, The Age of Faith, P.956) او زرګونو خلکو د ابن رشدیت دغه ویناوو سره اتفاق وکړ، چې د طبیعت په قوانینو کې خدای هېڅ ډول لاسوهنه نه کوي، هستي تل پاتې ده او د جنت او دوزخ خبري د وېرلو لپاره شوي.

په فرانسې کې دغه ډول مفکرین هم پیدا شول، چې هغو به ویل د هستي له پیدا کولو وروسته خدای د هستي قوانین طبیعت ته وسپارل، نو معجزې درواغ دي؛ ځکه معجزې د طبیعت قوانینو خلاف عمل کوي. دوی به ویل، چې په مناجاتو او تعویزونو د طبیعت قوانین نه شوبدلولای. په مناجاتو د طوفان مخه نه نیول کېږي، نه هم باران ورېږي او نه هم د ناروغیو درملنه پرې کېږي. دوی به دا هم ویل، چې د نباتاتو او حیواناتو دغه نوي ډولونه دپنځوني ځانګړتیاوې نه دي، بلکې د طبیعت د تکامل پایله ده او دغه عقیده چې په آخرت کې به مړي را ژوندي کېږي، یوه ستره تېروتنه ده، ځکه

روح او جسد دواړه له مينځه ځي. له دې سره د پخواني يونان فيلسوف ايپي قورس(۳۴۱ – ۲۷۰ ق.م) او د هغه د شاگرد لوکرى شيش(۹۹- ۵۵ ق.م) اتومي فلسفې هم زيات پرمختگ او دغه فکر څرگند شو، چې دغه نړۍ حقيقي ده.

په اروپا کې، د ساينسي تجربو پيل هله وشو، کله چې عربي کتابونه لاتينې ژبو ته وژباړل شول. د دغې دورې تر ټولو ستر ساينس پوه روجربيکن (۱۲۱۴ ميلادي- ۱۲۹۴ ميلادي) دی، چې د علم حاصل کولو لپاره له آکسفورډ څخه فرانسې، ايټاليا او بيا هسپانيه ته ولاړ. هلته، دی د مسلمان ساينس پوهانو له نظرياتو سره اشنا شو. هغه په خپلو کتابونه کې تل د اسلامي ساينس او فلسفې يادونه کړې. د هغه له نظره دعلم او پوهي بنسټ تجربه ده. [کوم شخص، چې غواړي د طبيعيت په اړه ځان پوه کړي، هغه بايد زياتره وخت تجربې ترسره کړي؛ ځکه د طبيعي علومو اساس پر تجربې ولاړ دی].کله چې آکسفورډ ته ولاړ؛ نو هغه د ابن هيشم په مشاهداتو تجربې پيل کړې، له دې ورسته کليسا ډېره دقيقه څارنه پرې کول او پادري يوناون ترا(۱۲۲۱ ميلادي- ۱۲۷۴ ميلادي) ورته گواښ وکړ، چې [د علم او حکمت ونه زياتره خلک گمراه کوي او د جنهم سختيو ته يې ور نږدې کوي]. د دغه جرم په مقابل کې چې [ستا په ويناوو کې د عجيبو او غريبو نظرياتو يادونه شوې] روجربيکن د مذهبي محکمې له خوا زنداني شو او د پنځلسو کلنو وروسته آزاد شو.

په څوارلسمې ميلادي پيړۍ کې، د سيمه ايزو حکومتونو سره - سره سيکولر نظرياتو ډېره پراختيا وموندل. سيمه ايزو حکومتونو له کليسا خپلواکي ترلاسه کړل؛ په دغه برخه کې سيکولر مفکرينو ډېر کار وکړ. د بيلگې په توگه، د پيډوا پوهنتون استاد مارسي ليو د ايټاليا دښاري حکومتونو د يوې بيلگې جوړولو وروسته يې د سيکولر حکومتونو په اړه يوه ډېره پياوړې نظريه وړاندې کړه. هغه شرعي قوانين او انسانانو جوړ قوانين سره پرتله کړل او ليکي، چې د ښاريانو حقوق د دوی له عقايدو له مخې نه وضع کېږي؛ نو هيڅ يو شخص ته د هغه د مذهب له نظره جزا نه ورکول کېږي. د کليسا پر مذهبي محکمو دا يوه ستر حمله وه.

د کليسا زوال له دې وروسته ليري نه وو. نو ژر تر ژره داسې خوځښتونه پيل او له وخت سره داسې پېښې رامينځته شول، چې د سيکولر نظرياتو لپاره ډېر مثبت ثابت شول. په اروپا کې، د رنسانس دوره پيل شوه، مارټين لوتر، کالوين، زونيگل او همداسې نورو د پاپ خلاف بغاوتونه پيل کړل، په بريټانيه کې اتم هنري له کليسا سره جگړه پيل کړه، په ساينسي کشفياتو کې زياتوالی راغی، صنعت

اوحرفو خورا پرمختګ وکړ، د امریکا او هندوستان له کشف سره نړیوالي سوداګرۍ ډېره پرامختیا وموندل، په بریټانیه کې کورنۍ جګړې پیل شوې او د جمهوریت خوښوونکو لوړی باچا چارلس قتل کړو، د الهي ملکیت له نظریو ټول بیزاره شول او له پارلماني نظام سره ټولو خپلې خوښۍ څرګندې کړې، ياني په ټولو ادارو کې سیکولر نظریاتو پرمختیا وموندل او د ټولو د خوښۍ وړ وګرځېدل.

۱۷ پیړۍ، چې د فکر/عقلیت دوره بلل کیږي؛ سیکولر نظریاتو ډېره پراختیا وموندل. په دغه اړه پروفیسور آرنلډ ټوین بي لیکي: «په لویدیځ کې اوولسمه پیړۍ د سیکولریزم پیړۍ وه. د سیکولریزم په مرستې د لویدیځي ټولنې اقتصاد او پلټنو د ساینس له نظره د مذهب ځای ونیوه»./ (Toynbee, 1956)

اتلسمه پیړۍ د اروپا لپاره، د صنعتي انقلاب، سیاسي انقلاب او روښانو نظریاتو پیړۍ وه. د والتیر، روسو، مانتیسکو. اولباخ، ایلواتس، دیدرو، کانټ په څیر داسې مفکرین پیدا شول، چې د ټولنیزو افکارو رخ یې لا بدل کړ او کله چې د وګړو انقلابي هڅې پیل شول (امریکا او فرانسې کې) نو سیکولر نظریاتو ته عملي جامه ورواغوستل شول.

په امریکا کې، د آزادۍ لپاره هڅې د هغه ځای سوداګرو او صنعت کارانو پیل کړې. په دغو طبقو او د دوی فکري نوماندانو باندې، د جیمز میډیسن، توماس جیفر سن، ټام پین او بنجامین فرینکلین سربېره د برټانوي مفکر جان لاک او فرانسیسي عقل ډېره اغېزه ول. دوی د امریکې جمهوریت لپاره سیکولر قوانین وضع کړل. نو په کال ۱۷۸۹ میلادي کې، چې امریکې کوم قانون جوړ کړ، هغه پر سیکولر قوانینو ولاړ قانون وو. دغه قانون له تراوسه رواج دی. د دغه قانون له نظره د واک سرچینه د هیواد وګړي دي. د قانون د شپږمې مادې له نظره د حکومت په هیڅ یوه دوره کې دین شرط نه دی. د قانون د لا پراختیا لپاره ۱۷۹۳ میلادي کې د ولسمشر میډیسن په غوښتنې کانګریس د سیکولر افکارو د لا زیاتې شرحې لپاره قانون بیا تصحیح کړ، چې پکښې لیکل شوي ول: «کانګریس به د دین او د دین د آزادي په اړه هیڅ ډول قانون ته اجازه نه ورکوي». ولسمشر جیفر سن په دې اړه وویل، چې: «د امریکې ولس دغې پریکړې ته زه ډېر درناوی کوم، چې پکښې ویل شوي دي: د دیني پاڅون او دیني رسمونو د ادا کولو په اړه باید هېڅ ډول قانون وضع نه شي. دغه ډول دوی د حکومت او کلیسا تر مینځ یو لوړ دیوال جوړ کړ».

د تاریخ له نظره، امریکا د نوې دورې لومړی سیکولر حکومت دی، خو د کومو ټولنیزو انقلابونو له وجې چې سیکولرو ادارو او فکرونو اغېزه په اروپا او اسیا کې ولیدل شول؛ هغه د فرانسې ستر

انقلاب وو. له دې وروسته، په اروپا کې د ملوکيت، فيوډاليزم او دکليسا اجاره داري ته د پای ټکی کېښودل شو او نړۍ د پانګوالي نظام ته ور ودانګل.

د پانګوالي نظام، له هر اړخه د فيوډالي نظام ضد دی. دغه تضاد هغه مهال په اروپا کې راڅرګند شو، کله چې د نړيوالې سوداګرۍ لپاره سمندرې لارې کشف شوې. د اجاره دارۍ د زمانې توليدي ځواکونه ډېر ساده ول او له ځمکې سره هر شی د وګړو شخصي ملکيت ګڼل کېدل؛ نو کرنيز او صنعتي محصولات ډېر محدود ول. د انګرېزانو، هالينډيانو، او پرتګالي سوداګرو ترټولو لويه مسئله دا وه، چې محصولات څه ډول زيات کړي. دوی به له هندوستان، سرېلانکا، جاوا او ملايا څخه مساله جات او مصنوعات د سپينو او سرو زرو په بدل کې نغد پېرل. ځکه د لويديځ مصنوعات ډېر کم ول او د کيفيت له نظره هم ختيځو هيوادونو کې په کمو پيسو پيرل کېدل. هلته به د فابريکو او کارخانو لپاره کارګر هم نه موندل کېدل، ځکه بزګرانو به د اشرافو او فيوډالانو ځمکې کرلې. دوی به په ښارونو کې د کار کولو اجازه نه درلودل. همدغه ډول اشرافو او فيوډالانو به په سوداګرۍ ډول - ډول بنديزونه لګول، چې د سوداګرۍ د پرمختګ مخه يې ډب کړې وه. دا هغه اقتصادي تضادونه ول، چې د فيوډاليزم نظام يې له مينځه يووړ.

خو فيوډاليزم يوازي د توليداتو لپاره يو ناکاره نظام نه وو؛ بلکې د ژوند تېرولو لپاره تر ټوله ناروا نظام بلل کېده. د خلکو د اوسېدلو طريقې، د فکر او سوچ ډول، د دوی ټولنيزې او اخلاقي تګلارې، رسم او رواج ټول به د فيوډاليزم تر اغېزې لاندې ول. دغه ډول ټولنيز نظام، د خلکو لپاره دومره ستونزمن شو، چې د مينځه وړلو پرته يې کومه بله لار نه ليدل کېده. دغه وجه ده، چې لويديځو پانګوالو د مطلق العنان حکومت سربېره، د دغه ډول نظام سره هم جګړې پيل کړي. سيکولريزم يعنې جمهوريت او مساوات، قانون او د حکومت استازولي، د فکر آزادي، ساينسي فکر او د ښاري حقونو لپاره هڅې، د فيوډاليزم او پانګوالي نظام ترمينځ شته مخالفتونه ول. په دغه جګړه کې، د فيوډالانو سربېره کليسا هم زيات ظلمونه ترسره کړل او د هر ډول روښانفکرو خوځوښتونو سرسرخته خلاف ول، خو د تاريخ تکامل مخه نه فيوډاليزم او نه هم کليسا ونيول. په فرانسې کې ستر انقلاب رامينځته شو؛ په پای کې د حکومت درې واړه بنسټونه فيوډاليزم، اشرافيت او کليسا هر څه له مينځه يووړل شول. له دې وروسته، په ټولې اروپا کې د ټولنو او حکومتونو جوړښت په سيکولر افکارو ورغول شول، خو دې لړۍ پوره يو پيړۍ وخت ونيوه او لويديځو قومونو په لومړي ځل هغه حقوق ترلاسه کړل، چې د

سیکولریزم بنسټ ګڼل کېږي. د بیلګې په توګه، د وینا آزداي، د فکر آزادي، د مطبوعاتو آزادي، د ګوندونو جوړولو آزادي او د رایو آزادي. ځکه په فیوډالیزم کې دغه حقوق بیخي مطرح نه ول.

اروپا او امریکا له سیکولر حکومتونو سره مذهبونه پرې نښودل. نه عبادت ځایونه ویجاړ شول او نه هم د پادریانو تبلیغ ته کوم خنډ وو؛ بلکې هر وګړي دا موکه ترلاسه کړه، چې دوی له وېرې پرته مذهبي مسئلو باندې هم نیوکې هم کولای شي او کومې عقیدې او دودونه، چې د عقل خلاف دي هغه ردولای هم شي. له سیکولریزم سره، د کلیسا ځانغوښتنه ختمه شوه. د کلیسا په دوره کې، پر خلکو باندې زیات ظلمونه ترسره کېدل؛ تر څو دوی صراط مستقیم لارې ته راوبلي او دوی به یې اړ کړل، چې توبې وباسي. د سیکولریزم په دوره کې دغه ډول ظلمونه ختم شول او پادریانو هم خپلو کړنو ته بدلون ورکړ. اوس هغوي اړ دي، چې له خلکو سره په مینې خبرې وکړي او د وېرولو پرته باید دوی ته په عقلي دلایلو قناعت ورکړي.

په ختیځو هیوادونو کې، د سیکولریزم پیل له اتلسمې پېړۍ سره وشو. دغه نظریات په مستقیم ډول ترکیې او ایران ته له لویدیځه راغلل. په مصر کې، د ناپیلیون له حملاتو سره او هندوستان، آګره، بنګال، بهار او ډیلي کې د ختیځ هند کمپنی د واک په دوره کې. په دغه مضمون کې به موږ یواځې دآسیا او ترکیې د سیکولر خوځښتونو په اړه بحث کوو.

د سلطان سلیمان اعظم (۱۵۲۰ میلادي- ۱۵٦۰ میلادي) د سلطنت دوره د عثمانیانو د عروج دوره وه. هغه د نړۍ د ستر سلطنت باچا وو، د هغه سلطنت له هنګري نه نیولې، تر یمن، بغداد او مراکش پورې ِغځېدلی وو، د هغه په سلطنت کې ډول ډول قومونه او د ډول ډول ادیانو خلک اوسېدل. ترکان، عربان، کردان، سلافیان، میجاریان، یهودیان، عیسویان او مسلمانان ټول دده د سلطنت برخه ول. د عثمانیانو دغې دورې، دوه پیړۍ دوام وکړ. په ۱٦۸۳ میلادي کې، د ویانا(اسټریا) د دویم ځل یرغل دوی له زوال سره مخ کړل. په لومړیو کې یې هنګري له لاسه ورکړ (۱٦۹۹ میلادي) بیا کریمیا او ګرجستان، له دې وروسته بلغاریه، یوګوسلاویا، یونان، البانیه، قبرص، الجزائر، کریټ او مصر. تر لومړۍ نړیوالي جګړې وروسته د لویدیځ نړیوالو زبر ځواکونو عراق، عرب، شام او فلسطین باندې قبضې ولګولې. اوس له ترکیې سره د اناطولیه سربېره، د سالونیکا ځینې سمندري سیمې پاتي وې.

په عثماني سلطنت کې، اقتدار له باچا سره وو. هغه به ټولواک وو. د هغه اراده د شریعت تابع نه وه، خو له شریعت سره یې کوم ډول تبعیض هم نه درلود. هغه به د [تقدیر او تعزیر] پوره حق درلودل.

د سلطنت اراکین به په دریو طبقو باندې ویشل شوي وو. ۱- د قلم خاوندان؛ چې په دریو ډلبندیو باندې وېشل شوي ول، لومړی - رجال چې د سلطنت وزیران به ول-. دویم- خواجه گان چې دفتري چارې به یې پر مخ وړلې-. دریم- آغا، چې د شاهي دربار اجیران او ساتونکي ول. ۲- اصحاب سیف یانې د ولایاتو پوځي جنرالان او [عسکر] چې شاهي لښکر ته عسکر ورلېږي او مقابل کې [تیمار] ترلاسه کوي او [فدایان] دا هغه شاهي عسکر ول، چې تر ډېره عیسوي کم عمره ځوانان پکښې جذب کړل شوي ول. دوی باندې به یې اسلام قبول کړ. د واده کولو اجازه یې نه درلودل او نه به یې کوم کور درلودل. ۳- مذهبي طبقه.

د کلیسا نظام که چېرته په اسلامي هیوادونو کې شتون درلود، نو ترکیه یې ښه بیلگه ده؛ چېرته چې به شیخ الاسلام ته د لومړي وزیر رتبه ورکول کېده. هغه به د سلطنت تر ټولو لوی قاضي او مفتي وو. قاضي العسکر رومالیه، قاضي العسکر اناطولیه، د ستانبول قاضي، د مکې او مدینې ملاء، د بروسیې ملاء، ایدریانوپل، قاهره او دمشق ټول د ده تر ولکې لاندې ول. د سلطنت مسجدونه، محکمې او د زده کړو مرکزونه ټول به د شیخ الاسلام تر امر لاندې ول. برسیره پر دې به هغه په یو وخت کې، د زده کړو، د قانون او هم به د مذهبي چارو وزیر شمېرل کېده. هغه به د لویي څارنوالۍ قاضي القضات هم وو. دوه نورې طبقې هم وې، خو دوی به په سلطنتي چارو کې کومه ونډه نه درلودل. یوه طبقه خلک سوداگر، دکاندار او کارگر ول او بله طبقه خلک کروندگر ول. د سلطنت د اراکینو فریضه وه، چې د سلطان په ځواک کښې نور هم زیاتوالی راولي، نه دا چې د خلکو خدمت وکړي.

د سلطنت دغه ډول جوړښت په خپله د هر ډول فساد سرچینه ده. په اوولسمې پیړۍ کې، کله چې اروپا د صنعت حرفو او سوداگرۍ برخه کې پرمختګ وکړ، نو د فیوډالیزم پر ځای سیکولر او جمهوري افکارو زور ونیوه؛ د عثمانیې سلطنت چې اساس یې فیوډالیزم او عسکري طاقتونه ول، د اروپا نوي پانگوالي نظام سره یې د مقابلې توان نه درلود، نه په ټولنیزه توگه او نه هم د فکر له نظره. لیکواله خالده خانم، د ترکیې د دغه ډول فکر په اړه لیکي:

«کله چې لویدیځوالو د روایت پالني زنځیرونه مات کړل، د نویو علومو او ساینس لاره یې خپله کړه؛ دې چارې دومره اغېزه وکړه، چې آن د نړۍ جوړښت ته یې بدلون ورکړ. دې کار سره اسلامي زده کړې او افکار هسې بې گټې ثابت شول. علماء په دغه فکر کې ول، چې انساني علم او حکمت کټ - مټ د دیارلسمې پیړۍ په څیر پاتې دي، یانې کوم بدلون نه دی رامینځته شوی. د دوی دغه ډول

فکر آن تر نولسمې پېړۍ راورسېد. د عثمانيې علماوو په ترکيې کې نويو افکارو ته بيخي اجازه ورنه کړل. دوی چې تر کومه وخته مسلمانانو ته درسونه ورکول؛ تر هغه وخته نوي افکار د مسلمانانو په نصاب کې شامل نشول، نو علم ولاړ/جمود پاتې شو. دوی د هيواد په سياسي چارو کې دومره بوخت پاتې شول، چې آن د فکر کولو وخت هم ورپاتې نه شو. مدارسو هم کوم پرمختګ ونه کړ.»

د اتلسمې پېړۍ له پيل راهيسې، ترکانو له لويديځوالو پرله پسې ماتې وخوړلې، چې په پای کې هغو په ترکيې کې د سوداګرۍ دفترونه جوړ کړل. د لويديځو طاقتونو د بريدونو په پايله کې، که څه هم په ترکيې کې زيات ناوړه بدلونونه رامينځته شول، خو ورسره ځينې وړ بدلونونه هم وليدل شول. د لويديځ سياست سره د پېژندګلوۍ په موخه، د لويديځوالو ژبو سره بلدتيا اړين وګرځېدل، په ځانګړي توګه د فرانسوي ژبې او فرهنګ سره. دغه ډول د اصحاب سيف او د مذهبي طبقې سره، د ليکوالانو طبقې هم ورو - ورو پرمختګ وکړ، چې د لويديځ افکارو سره څه نه څه اشنا ول او د لويديځ تمدن يې د ترکيې لپاره مثبت ګڼئ. دوی به ويل، ختيځ او اسلامي ميراثنه شي کولای، د نويو افکارو مقابله وکړي او عثمانيان ترې وژغوري، نو موږ ته پکار ده چې لويديځ تمدن او افکار قبول کړو. دغه کار د سلطان احمد( ۱۷۰۷ ميلادي- ۱۷۳۰ ميلادي) په دوره کې چې [عهد لاله] بلل کېږي، د سلطان زوم او لومړي وزير ابراهيم پاشا په هڅو زور ونيوه. ده په ۱۷۱۷ ميلادي کې ساينسي کتابونه په ځانګړې توګه د جغرافيې، طب  او طبيعي علومو اړوند کتابونه ترکي ژبې ته د ژباړلو لپاره د پنځويشتو نفرو يو کميسيون جوړ کړو. په ۱۷۲۰ ميلادي کې يې سلطان محمد فيضي چپلي د سفير په توګه پاريس ته واستوه او ورته يې دنده ورکړه، چې د فرانسې د فابريکو کتنه وکړي، د هغه ځای د فرهنګي ادوارو چارې وڅاره او کوم څه چې ترکيې کې رواج موندلای شي د هغه په هکله خپل راپور چمتو کړه او ماته يې راواستوه. کله چې چپلي  بيرته راغی، نو هغه يو کتاب هم وليکه؛ په ياد کتاب کې هغه د فرانسې د ټکنالوجۍ، پوځي ادارو، روغتونو، ښوونځيو يادونه کړې او له دې سربېره د ښځو د آزادۍ ډېره ستاينه کوي.

د چپلي زوی سعيد محمد لومړی ترک وو، چې فرانسوي ژبه يې زده کړه. هغه د فرانسې د فکري آزادي خوښوونکی وو. کله چې په دويم ځل له پاريس څخه راغئ، نو هغه په هنګري کې له يو نوي مسلمان شوي شخص ابراهيم متفرقه(۱٦۷۰ ميلادي- ۱۷۵۴ ميلادي) سره په کال ۱۷۲۷ ميلادي کې لومړنۍ ترکي چاپ خانه جوړه کړل. ( په ترکيې کې د چاپ لړۍ په ۱۵۸۵ ميلادي کال کې پيل شوه،

خو د شیخ الاسلام په امر یوازي عیسویانو او یهودیانو کولای شوای، خپل کتابونه چاپ کړي.) ابراهیم متفرقه یو ستر مفکر وو. هغه د فرانسوي، ایټالوي، جرمنی، لاتینې او ترکي ژبو سره بلد وو. د نیازي برکس له قوله: «ابراهیم هغه کس دی، چې ترکیه یې له نوي فکر سره اشنا کړه او هم یې د بدلون او پرمختګ لارې روښانه کړې». (Niazi, 1953)هغه په کال ۱۷۲٦ میلادي کې د [وسیلته الطباعت] په نامه کتاب ولیکه او بیا یې لومړي ابراهیم داماد ته وړاندې کړه. په دویم کال ورته د چاپ کولو اجازه ورکړل شوه، خو کاتبانو یې مخالفت پیل کړ، چې اسلام په خطر کې دی؛ البته اصلي موضوع د دوی د جیبونو او یوې ګولۍ ډوډۍ ول. د کاتبانو له غبرګون سره شیخ الاسلام فتوا صادره کړه، چې د قرآن، حدیث، تفسیر او فقه کتابونه به په مطبعې کې نه چاپیږي. د اسلامي نړۍ لومړی چاپ کړل شوی کتاب په ۱۷۲۹ میلادي کال کې د جنوري په ۳۱ چاپ شو. ابراهیم متفرقه د لویدیځ د پرمختګ او د ترکیې د شاتګ په اړه هم یو کتاب د [اصول الحکم فی نظام الامم] په نامه لیکلی، چې سلطان ته یې هم ورکړ. په دغه کتاب کې، هغه د حکومت د دریو واړه ډولونو په اړه بحث کوي: ملوکیت، فیوډالیزم او جمهوریت، چې د جمهوریت په حق کې پریکړه کوي. دغه کتاب څکه تاریخي اړخ لري، چې په اسلامي نړۍ کې په لومړی ځل د اسې فکر په اړه څه ولیکل شول. هغه، هر ځل د بریتانیې او هالینډ یادونه کړې. هغه د هیواد په چارو کې د پوځ مداخله ښه نه ګڼي او خلاف یې دی. د پوځ په ادارو ډېري نیوکې کوي. هغه لیکي: «په عیسوي قومونو کې اوس حکومت د الهي احکامو تابع نه دی او نه هم احکام د خدای له لوري استول کیږي. هلته د اختلافاتو فیصلې د شریعت له نظره نه کیږي، بلکې د حکومت قوانین خپله انسانانو جوړ کړي.» ابراهیم متفرقه په جغرافیې، طبیعي علومو او پوځي تاکتیکونو باندې کتابونه لیکلي. هغه په لومړي ځل د کوپرنیکس او ډیکارټ د نظریاتو یادونه کړې او د ارسطاطالیسي طبیعي علومو په رد کې، د ګالیلو له دلیلونو سره همغږی دی. د هغه کتابونه [فیوضات مقناطیسیه او د پخواني او اوسني ژوند غورچاڼ] زیاترو خلکو خوښ کړل.

خو د سیکولر نظریاتو له خپرولو سره دیني علماوو ناخوښي څرګنده کړه. هغو هیڅکله هم نه غوښتل، چې ولس دې په ښو او بدو پوه شي او له خپلو ماغزو دې کار واخلي. دوی دا آوازه ګډه کړه، چې د نویو علومو یواځینۍ موخه عیسویت ته کار کول دي او دوی غواړي، چې په مسلمانانو کې بیلتون رامینځته کړي. (که څه هم شیخ الاسلام یواځې د عیسوي کتابونو د چاپ او خپریدو اجازه ورکړې وه. ژباړن) څکه خو سلطان احمد په پوځ کې هم اصلاحات پیل کړل. دغه اصلاحات

د[فدایانو] د ګټو خلاف وو؛ نو دوی له مولایانو سره یوځای شول او بغاوت ته یې لارې هوارې کړې، سلطان احمد له دندې ګوښه کړل شو. لومړی وزیر ابراهیم داماد او امیر البحر مصطفی پاشا یې قتل کړل. محمد فیضي چپلی او سعید محمد قبرص جلا وطنه شول، د ابراهیم متفرقه چاپ خانه بنده شوه.

د لیکوالي خالده خانم له قوله: «د ترکیې د رنسانس دورې پیل د دریم سلطان سلیم(۱۷۸۷ میلادي-۱۸۰۷ میلادي) په زمانه کې شوې. دا هغه زمانه وه، کله چې د فرانسې انقلاب په ټولي اروپا او امریکا کې غوغا جوړه کړې وه. د فرانسې انقلاب سلطان سلیم باندي ډېره اغېزه کړې وه، خو هغه نه غوښتل یواځې سمونونه راوړي، بلکې هغه په نویو قوانینو باندې د حکومت جوړولو هیله مند وو هم وو». (Khanom, 1935)

کله چې سلطان سلیم په تخت کښېناست، نو هغه محسوس کړل؛ د پخواني پوځ په شتون کې د هیڅ ډول اصلاحاتو رواړل شوني نه دي؛ نو هغه د[نوي نظام] تر نامه لاندي یو نوی پوځ جوړ کړو. مدرسې خو د علماوو تر څارني لاندې وې، نو هغه د پوځ او انجینرۍ لپاره نوي ښوونځی جوړي کړې او له مدرسو یې جلا کړل. د انجینرۍ په ښوونځی کې خو هغه خپله هم تدریس کوئ. هغه، په هیواد کې د نظم راوړلو لپاره د ښاریانو حقوق ذکر کړل او د دولتي مامورینو مطلق العناني/زورواکۍ له مینځه وړلو امر یې وکړ، چې د سیمه ایزو چارې پریکړې به خلک په خپلو کې سره حلوي. هغه، د پوځي نظام او پولي واحد د سمون لپاره هم هڅې وکړې. د لومړي ځل لپاره یې، په لویدیځو هیوادونو کې سفارتونه پرانیستل؛ د فرانسوي ژبې، فرانسوي پوښاک او فرانسوي ټولنیز ژوند په اړه یې ډېر ټینګار وکړ، خو سلطان سلیم په دغه ډول اصلاحاتو سره پخوانی پوځ، شاهي عسکر او علماء درې واړه خپل دښمنان وګرځول. په۱۸۰۷ میلادي کې، کله چې د سلطان پوځ د بالکان په جګړې کې بوخت وو، نو پخوانې پوځ د علماوو او مذهبي طبقې په مرستې قسطنطنیې باندې یرغل وکړ او سلطان یې قتل کړو.

دویم سلطان محمود (۱۸۰۸ میلادي- ۱۸۳۹ میلادي) د سلطان سلیم د تره زوی وو او د هغه له نظریاتو سره پوره همغږی وو، خو د وخت په تیرېدو هغه تر سلطان سلیم ډېر روښانفکره ثابت شو. هغه، د ۱۷ کلونو لپاره له[فدایانو] سره ښې اړیکې جوړې کړې وې. په دغه برخه کې هغه وتوانېد، چې له عام ولس سره هم اړیکي ټینګي کړي. د عام ولس خبرې به یې اوریدلې او له هغو سره به یې ښه اخلاق کاوه، نو ځکه خو خلکو هغه ته د محمود عدلي خطاب ورکړ. کله چې یې موکه ترلاسه کړه؛ نو له فدایانو سره یې جګړه پیل کړه او ټول یې له مینځه یووړل او د حکومت نوې نقشه یې جوړه کړه،

چې له مخه يې د لومړي وزير بست له مينځه ولاړ، د ټولنيز نظم د حاکميت لپاره يې ډول - ډول ادارې رامنځته کړې او هرې ادارې ته يې وزيران او وکيلان وګمارل او دې کابينې ته يې د [باب عالي] لقب ورکړ. شيخ الاسلام ته يې په دغه حکومت کې کومه برخه ورنه کړه، بلکې حکم صادر شو، چې علماء به په راتلونکي سياست کې کومه ونډه نه لري. په ۱۸۳۸ ميلادي کې، سلطان له مدارسو سره نوي ښوونځي جوړ کړل، چې د لويديځ په افکارو سنبال ول، زده کړې به پکښې په فرانسوي ژبې کېدلې او ساينسي علومو ته ځانګړې پاملرنه کېدل. هغه په نوي ډول سنبال حربي ښونځي جوړ کړل او ورسره يې طبي انسټيوټ هم پرانيستئ او د وينا(اسټريا) څخه يې ورته استادان راوبلل، خو علماوو د جراحي زده کړو سخت مخالفت وکړ او د مړيو جسدونه به يې ناروا بلل، چې ټوټې ټوټې کړل شي. له دې وروسته يې د جراحۍ لپاره د موميايي مجسمې جوړې کړې. علماء بيا هم چپ پاتې نه شول، بلکې دوی دغه بحثونه راوخيستل، چې څمکه ګرده ده که نه، له وباؤ بايد ځان وژغورو، يا په تقدير باندې باور ولرو او يا د سرخکانو واکسين روا دی که ناروا؟ خو سلطان د دغو بحثونه په اړه هيڅ ډول پام هم نه وکړ. هغه په لومړي ځل ۱۵۰ ترکي ځوانان د زده کړو لپاره اروپا ته واستول. د ژباړو لپاره يې يو مرکز هم جوړ کړ، هلته د سيد عثمان صائب او مصطفی بهجت په مشرۍ ساينسي کتابونه ترکي ژبې ته وژباړل شول. سلطان بخاري کښتيو ته رواج ورکړ او د وېرې له مينځه وړلو لپاره لومړی خپله پکښې کېناسته او د سياحت لپاره ووته. د کوبای پتلون او بُلوس /يخن قاق اچولو رواج هم د سلطان په زمانه کې وشو او له دې سره په ۱۸۲۰ ميلادي کې سره خولۍ د ترکانو رواج وګرځېدل. په ترکي ژبه لومړۍ ورځپاڼه[تقويم وقايع] وه، د سلطان محمود په امر ۱۸۳۱ ميلادي کال کې خپره شوه. محرر يې اسد بې وو او سرمحرر يې مصطفی سميع وو(مړينه: ۱۸۵۵ ميلادي).

د دغې زمانه د پرمختګ په اړه که ځان پوهول غواړئ؛ نو د مصطفی سميع [سفرنامه اردپارسالسی] (۱۸۳۸ ميلادي) ولولئ. په دغه سفرنامه کې د روم، فلورنس، وينا، پراګ، برلن، پاريس او لندن مشاهدات او اغېزې را اخېستل شوي دي. مصطفی سميع په لويديځ کې د پرمختګ، ديني آزادۍ، د نويو او پخوانيو پنځونو په اړه ډېر څه ليکلي دي. ليکوال ليکي: «په لويديځ کې هغه صنعتونه پرمختللي دي، د کومو چې مسلمانانو ته سخته اړتيا ليدل کېږي. د بيلګې په توګه کاغذ، کاليو، ښيښې او د ساعت جوړولو صنعتونه.» علماوو مصطفی ته د کافر او ملحد لقبونه ورکړل.

د دغې دورې بل روښانفکره لیکوال صادق رفعت (۱۸۰۷ میلادي- ۱۸۵٦ میلادي) دی چې وروسته یې د [اصلاحاتو] قوانین ترتیب کړل. په ۱۸۳۷ میلادي کال کې، هغه په اتریش کې سفیر وټاکل شو. هلته له اوسېدلو ورسته یې د اروپا او ترکیې د حالاتو په پرتله کولو سره دوه کتابونه ولیکل. هغه لیکي: « د اروپا حکومتونه د ښاریانو د خدمت لپاره جوړ سوي دي، نه د ښاري حکومت جوړولو لپاره. نو حکومتونه د وګړو د حقونو او قوانینو له نظره پرمخ وړل کېږي.» صادق رفعت لومړی شخص دی، چا چې ترکان له لویدیځ فرهنګ، تمدن، آزادي، ملت او انساني حقوقو سره اشنا کړل او لیکي، چې: «لویدیځ تمدن د نوي ساینس محصول دی او د دوی ټکنالوجي خورا عالي ده.»

ترکي تاریخ پوهان سلطان محمود ته د پیټر اعظم لقب ورکوي، چا چې لویدیځ فرهنګ او تمدن په ترکیې کې رواج کړل، خو د نیازي برکس له قوله:

«دغه د لویدیځ اصلاحات خپله د سلطان د زړه خبرې نه وې، بلکې د پخوانیو ادارو له منځه تلو وروسته د لیبرال او سیکولر نظریاتو پرمختګ سره لویدیځ کې د اصلاحاتو زمینه برابره شول.»

سلطان عبدالمجید(۱۸۳۹ میلادي- ۱۸٦۱ میلادي) د پلار لاره تعقیب کړه او لا یې پسې وغزوله. د [اصلاحاتو] تاریخي دوره د ده په وخت کې پیل شوه. کله چې هغه په تخت کښیناست، نو د ۱۸۳۹ میلادي کال د نومبر میاشتې په دریمه کې یې یو فرمان صادر کړ، چې د[ګلشن لیک همایون] په نامه مشهور دی، دغه لیک هغه پخپل قلم لیکلی او د شیخ الاسلام له اجازې پرته یې صادر کړ. په دغه لیک کې سلطان اعلان کړی، چې له دې وروسته به د هریو وګړي دځان او مال قانوني ساتنه کېږي. مسلمان او کافر به د قانون له نظره مساوي وي. د [نوي قوانین] خلاف به عالي شورا/باب عالي کوم حکم نه صادروي او هم به ورسره څنګ کې د شورا مجلس جوړېږي، چې قوانین به وضع کوي، خو قوانین به د سلطان له توشیح وروسته منل کېږي. د همایون په لیک کې خو دغه خبره نه ده واضح شوې، چې باچا به د ولس په خوښه ټاکل کېږي، خو دومره ویل شوي دي چې خپله سلطان به د حکومت باچا نه وي.

د اصلاحاتو په دوره کې (۱۸۳۹ میلادي-۱۸۷۴ میلادي) خو په ښکاره زیاتره سمونونه رامینځته شول: د کابینې له قوانینو سره سم زیاتره وزارتونه جوړ شول. د اجرائیه، مقننه او قضایه قوې ادارې سره جلا شوې. د شیخ الاسلام له محکمو سره - سره سیکولر محکمې هم جوړې کړل شوې او پخوانیو مدرسو سربیره سیکولر ښوونځي هم جوړ شول. زده کړې به په فرانسوي ژبې ترسره کېدلې. د استادانو

ټرينينګ کالج او ستانبول پوهنتون هم په همدغه دوره کې جوړ شول. له دې پرته غير مسلمانانو ته زياتره حقوق ورکړل شول او جزيه/ماليه ختمه شوه. دغه ټول کارونه ترسره شول، خو د سلطان اقتصادي نقشه همغسې فيوډال پاتې شوه او د لويديځو طاقتونو تر ولکې لاندې ول. نه خو نوي فابريکې جوړې شوي او نه هم له معادنو کار واخيستل شو. د لويديځو بازارونو له مخې، د ترکيې کورنۍ صنعت هم له منځه يووړل شول. سوداګري او د کښتيو بازار زور ونيوه، پر دغو ادارو له ترکانو پرته..... د يونانيانو او ارمنيانو واک وو او دوی بيا د بريټانيې او فرانسې تر امر لاندې ول.

د اصلاحاتو د دورې د اقتصاد په اړه تاريخ پوهان ليکي:

« عثماني سلطنت په يو ډول د اروپايانو ستر مارکيټ وو، چې د دوی لپاره به يې ارزان بيه خام مواد تيارول. په همدغه دوره کې، د لويديځوالو پانګه هم زياته شوه او دوی ډېري حقوق هم ترلاسه کړل. کومه نيمګړتيا چې پاتې وه، نو د ۱۸۵۴ ميلادي کال له شاهي پورونو سره دغه نيمګړتيا هم پوره شول. دغه پورونه په زياتو ستونزمنو شرطونو باندې له بريټانيې او فرانسې څخه ترلاسه شوي ول. د دولتي پانګې زياتره مهمې ادارې د سود په بدل کې دوی ته په اجارې ورکړل شوې وې.»

(Combridge history of Islam,Vol.1, P.368)

دلته په ترکيې کې لويديځوالو د ترکانو هر څه خپل کړل هلته په اروپا کې يو ځل بيا د هيواد دآزادي، حکومتي قانون او جمهوريت لپاره جګړې پيل شوې. په ايټاليا، هنګري، چکوسلواکيا، فرانسې او جرمنې کې يو ځل بيا خلکو وسلې راواخېستې او له دښمن سره ښه وجنګېدل. د فرانسوي مفکرينو نظرياتو خپل ځای ونيوه. د اصلاحاتو په دوره کې، چې د ترکيې منځنۍ طبقې زور ونيوه نو دوی د اروپا له انقلابي فعاليتونو څخه ډېر څه زده کړل او ولس ته يې يو نوی فکر وړاندې کړو. د وطن پرستو په دغه خوځښت کې ځينو دولتي مامورينو ، پوځي افسرانو او کارګرو هم برخه واخيستل، خو د خوځښت چلونکي روښانفکره ترکي ليکوالان ول. دوی د نوي ترکي ادب او [ترکي ځوانانو خوځښت] د دواړو بنسټګر ول. لکه په هندوستان کښې سرسيد او د هغه ملګري، مولانا محمد علی جوهر، مولانا ابوالکلام آزاد، علامه اقبال، مولانا حسرت موهاني او همداسې نور وطن پرستو ليکوالانو ترڅنګ ادب او سياست د يوې سکې دوه مخه ول او هغو به په يو وخت کې دواړو ته خدمت کول؛ دغه ډول په ترکيې کې نوي ادب او سياست دواړو پرمختګ وکړ. ليکوالان نه يواځې د هيواد سياست

سره تړلي ول؛ بلکې لومړی پاڅون هم دوی وکړ. په دوی کې د ابراهیم شناسي، نامق کمال، ضیا پاشا او مصطفی فاضل شاه نومونه په سر کې راځي.

د [ترکي ځوانانو] غوښتنه وه چې د حکومت قانون باید د خلکو په خوښې جوړ شي. هیواد کې یو قانوني حکومت رامینځته شي او د خلکو استازو ته هم باید په حکومت کې برخه ورکړل شي. د مدرسو پرځای باید سیکولر ښوونځي جوړ شي، د هیواد په چارو کې باید د علماوو لاسوهنې بندې شي او د لویدیځو طاقتونو د مینځه وړلو لپاره باید لویدیځ فرهنګ او تمدن دود کړل شي. عثماني فرهنګ په حقیقت کې، د ترکانو فرهنګ نه وو بلکې د ایراني فرهنګ یو برخه وه. د سلطنت دفتري ژبه فارسي وه او په عثماني ژبه کې هم د فارسي او عربي ژبو لغاتونه شامل ول. په دربار کې به اصیلو ترکانو ته بد او رد ویل کېدل، ځکه درباریان هم په اصلي ترکي ژبې نه پوهېدل. په ایراني او عربي کې کوم داسې نوی فکر شتون نه درلود، چې نوي ترکیې ته یوه لاره وښیي، یا دوی ته د راتلونکې لپاره څه شی ورکړي، نو په پای کې دوی اړ شول، چې د ختیځ پر ځای [لویدیځ فرهنګ] خپل کړي. په دغو ورځو کې، هرې خواته د فرانسوي فکر او فنونو غلبې وي، نو ترکي لیکوالانو هم فرانسې سره اړیکې ټینګې کړې او د فرانسوي فلیسوفانو، ډرامه لیکونو، لیکوالانو او شاعرانو کتابونه یې ولوستل.

که چیرته یواځې یوه چاته ته [د ترکي ځوانانو] او د نوي ترکي فکر او ادب بنسټګر ووایو؛ نو هغه به ابراهیم شناسي آفندي (۱۸۲۴-۱۸۷۱ میلادي) وي. ابراهیم شناسي په ستانبول کې زیږیدلی وو. یو کلن وو، چې پلار یې په پوځي جګړو کې ووژل شو، نو یې پالنه او روزنه نیمګړې پاتې شوه. هغه له ماشومتوبه د لیک او لوست لېواله وو. د اتلسو کالو په عمر کې، شاهي ډیپو ته د متعمد په توګه واستول شو. هلته ده د یوه نوي مسلمان شوي افسر راشد بې څخه فرانسوي ژبه زده کړه، د راشد بې میرمنه ترکۍ وه. راشد بې د ابراهیم له فکره زښته زیاته اغېزمنه شول، نو هغه ته یې وویل: «ته باید د لوړوزده کړو لپاره فرانسې ته ولاړ شې.»

ناڅاپه په همدغو ورځو کې لومړی وزیر د دولتي ادارو کتنې لپاره راوتی وو، چې ابراهیم له دغه موکې څخه په ګټه اخیستني د دولتي وظیفې لپاره عریضه ورکړه، تر څو فرانسې ته ولېږدول شي. عریضه یې ومنل شوه او هغه د پاریس په لور روان شو. څلور کاله پاریس کې پاتې شو، هلته یې د فرانسوي فلسفې، ادب او ساینس مطالعه یې کړه.

په ۱۸۵۲ میلادي کال کې، ابراهیم شناسي بېرته ستانبول ته راغی. هغه د څو ورځو لپاره دولتي دنده وکړه او د سلطان عبدالمجید د ساینس او ادب اکاډمي'' انجمن دانش'' غړی وټاکل شو، خو هغه هیڅکله هم هیله نه درلوده، چې دولتي دنده ترسره کړي. هغه د لومړي وزیر خلاف چې د قانون د سمون ځاني دښمن وو، زیات طنزیه لیکونه خپاره کړل، نو ځکه له دندي وشړل شو. هغه اوس د ورځپاڼې لپاره لیکل کول. لومړی یې [ترجمان] ورځپاڼه خپره کړه او بیا یې [د افکارو انځور]. د خالده خانم له قوله، د نوي ترکیې د مطبوعاتو بنسټګر ابراهیم شناسي دی. د [افکارو انځور] لومړی ګڼه، چې خپره شوه نو سلطان عبدالعزیز( ۱۸۶۱ میلادي- ۱۸۷۲ میلادي) پنځه سوه پونډه د بخششي په توګه ورکړل، خو شناسي بخششي ونه منل او داسې یې وویل: [زه نه غواړم داسې کوم شی رانیسم، چې بیه یې پنځه سوه پونډه وي].

د خالده خانم له قوله، ابراهیم شناسي [د نوې ترکیې ټولنیز ژوند او فکر ته ډېر څه وکړل]. (خانم, ۱۵۴ مخ) هغه ښاري حقوق، انساني حقوق، سیمه ائیز شعور، حکومتي قانون، جمهوریت او دې سره تړلي نور اصلاحات نه یواځې رواج کړل، بلکې په ورځپاڼو کې یې زیات څه پرې ولیکل. هغه لومړی لیکوال دی، چې د ملت کلمه یې د قوم یا [نېشن] لپاره وکارول. هغه، د فرانسوي ژبې د لیکوالانو کیسې ترکي ژبې ته وژباړلې او خپرې یې کړې. ټولنیزي ډرامې یې ولیکلې او [د شاعر واده] ډرامه کې یې په پخواني ټولنیز ژوند باندې ډېرې نیوکې کړي دي. هغه د وهمپالني خلاف وو او له جمهوریت سره همغږی وو. نو له همدې کبله علماوو ورته د ملحد او کافر خطاب وکړ.

عثمانیانو، چې په ترکي ژبه کې کوم غفلت کړی وو، نو ابراهیم شناسي پکښې د مطبوعاتو په دوره کې هرڅه تجربه کړل. ځکه دودیزي ژبې ونشواى کړاى، د لویدیځ نظریات وځېړي؛ نو هغه په څوارلس ټوکونو کې د ترکي ژبې لپاره د قاموس جوړولو پلان جوړ کړ، خو یواځې یې د [ط ]حرف ته ورسوه، چې تشدد بیا پیل شو. ملګري یې ونیول شول او دی اړ شو هیواد پرېږدي. پاریس ته ولاړ (۱۸۶۴ میلادي)، له شپږو کلنو وروسته ستانبول ته راغی، په خپلې چاپ خانې کې اوسېده او د ناروغۍ په حالت کې هغلته ومړ.

نامق کمال(۱۸۴۰ میلادي-۱۸۸۸ میلادي) د دغې دورې یو بل ستر شخصیت وو. په ځوانۍ کې له ابراهیم شناسي سره اشنا سو او د هغه ریښتینی ځای ناستی شو. نامق کمال سیاست پوه، تاریخ پوه، شاعر او ډرامه لیکونکی وو. ده د بیکن، مانتسکیو، روسو او نورو مفکرینو کتابونه وژباړل او خپاره یې

کړل. [د نوي فکر کومه شمع، چې ابراهیم شناسي روښانه کړې وه، هغه یې د ادب او سیاست په میدان کې نوره هم وځلوله]. له هیواد سره  دبې کچې مینې او حب الوطن جذبه، د ده په لیکونو کې لېدل کېږي. کله چې  د ده لومړی ډرامه[وطن/هیواد] په ستانبول کې ننداري ته وړاندې شوه، نو په نندارچینو کې ډول ډول جذبې راوپاریدل او سړکونو ته راووتل، په هغه شپه یې مظاهرې پیل کړې او په دویمه ورځ یې نامق کمال هم ونیول شو.

نامق کمال، د یوه انسان انساني حقوقو ته ډېر درناوی کاوه. هغه به ویل هغه حکومتونه، چې د خلکو په خوښه نه جوړېږي د ظلم او جبر نښانې دي، نو د هر یو وګړي فریضه ده چې د خپلو حقونو لپاره تر پایه مبارزه وکړي او ترې قربان شي. په دې اړه به د هغه د شهکار[قصیده حریت] یوه برخه وړاندې کړو:

«حالاتو د هر شي مخ بدل کړی، خو انسان که انسان وي، هغه به هیڅکله هم د بشریت له خدمت څخه مخ ونه ګرځوي. دغه بېوزله خلک باید راپورته کړل شي. د ظالمانو په ماغزو کې هر کله فساد ځای نیسي. ظالم ښکاري ته سپي ډېر خوښ وي. د جلاد پړی که څه هم د مرګ پړی وي، خو له غلامۍ دغه ډول مرګ زر ځله او سل زره ښه وي. د آزادۍ میدان که له اوره ډک وي یا له وینو، خو انسان به یواځې د ځان ساتلو لپاره هڅې نه کوي. تقدیر دې  دخپل ظلم او تشدد ټولې هڅې وکړي؛ خو لعنت دې وي پر ما چې زه به د انساني خدمت  لاره پرېږدم. اې خپلواکۍ! ته څه ډول جادو لرې؟ چې موږ ټول زنځیرونه مات کړل، خو بیا هم ستا غلامان یو.»

په ۱۸۷۰ میلادي کې، نامق کمال له اروپا بیرته هیواد ته راغئ. د هغه ځای، د ټولنیز ژوند له مطالعې وروسته نامق کمال دغې پایلې ته ورسېد، چې په اروپا کې د پرمختګ او بریا اصلي لامل دا دی: خلکو د توکل او برخلیک پالني ټول عقاید له ذهنونو ویستي دي. هغه به ویل، د ترکیې اصلې مسئله اقتصاد دی، نو موږ ته پکار ده چې نوي صنعت او حرفو ته پرمختګ ورکړو او نوې ټکنالوجي دود کړو. مطبوعات باید خپلواک وي او د زده کړو لپاره باید نوي مرکزونه جوړ کړو. د نامق کمال او د ده د ملګرو غوښتنه وه، چې په هیواد کې د [اساسي قانون] له نظره حکومت جوړ شي (اساسي قانون پخپله نامق کمال په پاریس کې ترتیب کړی وو). د هیواد د امنیت ساتنې چارې[سنا او مجلس شورا] باید خلکو ته وسپارل شي او سلطان باید په قانوني توګه د هیواد ولسمشر وي. دغه هغه زمانه وه، کله چې په فرانسې کې د دریم باچا ناپیلیون له ظلمونو خلک په تنګ راغلي ول. جرمني، فرانسې ته ماته

ورکړه او د ناپیلیون له زنداني کېدو سره د فرانسې حالات ډېر خراب شول، نو دوی اړ شول، چې سوله وکړي خو د پاریس انقلابي کارګرو دغه شرطونه قبول نه کړل، بلکې په زوره یې خپل سیمه ایز حکومت جوړ کړو( پاریس کمون ۱۸۷۰ میلادي – ۱۸۷۱ میلادي)، دغه ډول حالاتو ته په کتو سره سلطان عبدالعزیز ډېر وډار وډار شو. هغه وډار شو، چې د ترکیې حالات خرابنه شي، نو زیاتره انقلابي څېرې یې زنداني کړې. نامق کمال او زیاتره نور ملګري یې زنداني شول او له دوی پرته زیاتره لیکوالانو او سیاسیونو خپل هیواد پرېښوده. کله چې تشدد ډېر زیات شو؛ نو مدحت پاشا، چې د داینوب او عراق والي پاتې شوی وو او د نویو ځوانانو سره همغږی وو؛ سلطان عبدالعزیز یې له تخته لیري کړ او د هغه وراره دویم سلطان عبدالمجید یې (۱۸۷٦ میلادي- ۱۹۰۹ میلادي) په تخت کښېنوه. مدحت پاشا لومړی وزیر وټاکل شو او په ترکیې کې د لومړي ځل لپاره په کال ۱۸۷٦ میلادي، د دسمبر په ۲۳ اساسي قانون د سلطان تر لاسلیک وروسته نافذ شو. سلطان په قرآن شریف لاس کېښود او د لوړې مراسم یې ترسره کړل او ژمنه یې وکړه، چې زه به هیڅکله هم د قانون خلاف کار نه کوم. بیا د قانون له نظره هیواد کې په دوو برخو ملي مجلس شورا جوړه شوه او هیواد کې خوشحالي او امنیت راغی.

خو دغه خوښی لنډ مهاله وې؛ ځکه کال وروسته سلطان خپله اصلي څېره وښودل. مدحت پاشا یې په طایف کې زنداني کړ او وروسته یې وواژه. نامق کمال یې د ځارنې لاندې ونیوه او سلیمان پاشا یې په بغداد کې زنداني کړو او لږه موده وروسته هغلته ومړ. قانون او پارلمان له مینځه ولاړل. پدغه خیر کار کې علماوو له سلطان سره ډېرې مرستې وکړې. شیخ الاسلام فتوا ورکړه، چې قانون خوښوونکي [ملحدین دي] یانې د پاریس کمون ایجنټان. په دغه برخه کې شهاب الدین احمد ربیعي خپل[سلوک الممالک فی تدبیر الممالک] کتاب سلطان ته وړاندې کړ. لنډیز یې داسې وو: «قانون خوښوونکي ملحدین او مفسدین دي. دوی د آزادۍ او جمهوریت له تقریرونو سره سیکولریزم ته پراختیا ورکوي او آزادي هسې یو پروپاګنډ دی. د اسلامي حکومت اساس نه فیوډالیزم دی او نه جمهوریت؛ بلکې عثماني خلافت دی، نو د ستر اقتدار څښتن خدای دی او د خدای نائب سلطان دی.»

د سلطان عبدالمجید په باچاهي کې ظلم او ملائیت ډېره وده وکړه. سلطان په خپله ماڼۍ کې یوه ځانګړې خونه د علماوو لپاره جوړه کړې وه. د ډېرو ستر علماوو لپاره ځانګړې خونې جوړې شوې وې. احمد فریس الشریاق، سید جمال الدین افغاني، شیخ محمد ظفر مکي، شیخ جواد، شیخ فضل

حضر موتي، امير مسقط او عبدالهدی سید جلی چې د روحاني ځواک لرونکی وو؛ د سلطان سلاکاران شول. دوی به په زوره، پر خلکو باندې د شریعت احکام منل او په دغه برخه کې پولیسو ته هر ډول صلاحیت ورکړل شوی وو. د دغو حالتو په اړه نیازی برکس لیکي[د ترکیې په تاریخ کې داسې کومه دوره نه لېدل کېږي، چې د شریعت احکامو ته دي دومره کار شوی وي؛ دا یوازینۍ دوره وه، چې په هر ځای کې د شریعت د احکامو یادونه کېدل، خو زیاتره علماء منافقین ول]. د دغې خبرې د ټینگار لپاره هغه د موسی کاظم ویناوې رانقلوي، چې د سلطان عبدالمجید وروسته شیخ الاسلام وټاکل شو. هغه لیکي:

«د سلطنت بادارانو به د خپلو کړنو د پټولو لپاره دین را مخته کړ. دوی به چې چیرته تلل، نو ملازمینو به جای نمازونه ورسره وړل؛ آن تر دې چې دوی به دفترونه کې هم دغه نمایشي عبادتونه ترسره کول. د خلکو لپاره به یې مذهبي پروگرامونه چمتو کړل. خلیفه ته د خدای درجه ورکړل شوه». (برکس, ۲۵۹ مخ)

د سلطان له حکم سره په ورځپاڼو، کتابونو او مجلو باندې سانسور پیل شو. ځینو سیاسي اصطلاح گانو لکه هیواد، قانون او جمهوریت باندې بندیزونه ولگېدل. (خانم, ۱٦۳ مخ) د اصلاحاتو دورې ټول نصاب ضبط کړل شو، چې پکښې د نامق کمال کتابونه هم شامل ول. د اصلاحاتي زده کړو که یو مخ هم چاسره موندل کېده یا د چا له خولې داسې کلمات اورېدل کېدل، چې بندیزونه پرې لگېدلي ول، نو هغو ته به سخته جزا ورکړل شوه یا به له هېواد څخه تبعید شول. په همدې وخت کې زرگونو ځوانانو په پټه د نامق کمال کتابونه مطالعه کړل. له ستانبول څخه به په کښتیو کې داسې ځوانان راوړل کېدل، چې په عمر به ډېر وړوکي او د مکتب هلکان ول، د یمن او فزان صحراو ته به تلل. (خانم, ۱٦۰ -۱٦۲ مخونه)

د تشدد او سانسور له وېرې زیاترو لیکوالانو خپل هیواد پرېښود. ځینې ناهیلي شول او ځان وژنې یې وکړې، خو ډېرو لیکوالانو د سیاسي چارو پر ځای په ټولنیزو مسئلو لیکل پیل کړل. د بالزک، زولا، فلابیر او ستاندل ژباړې خپرې شول. د عثماني ژبې پر ځای پخوانۍ ترکي ژبې پرمختگ وکړ. ضیا پاشا د روسو «امیل» وژباړه او لیکي، چې زموږ حقیقي ژبه او شاعري هغه ده، چې په ترکانو کښې ژوندۍ ده. زموږ خپله شاعري لوک شاعري ده. مدحت آفندي په عثماني ژبې ډېر ټینگار کوي او لیکي:

«زموږ قوم له خپلې مورنۍ ژبې څخه محرومه پاتې دی. موږ ته پکار ده، عثماني ژبه زده کړو. دا ژبه نه عربي، نه فارسي او نه هم ترکي ده؛ بلکې د لړکیو ژبه ده، چې په ډېرکیو باندې حکومت کوي او له دې یې ژبې جوړه وي». (Cambridge History of Islam, P.555)

د ترکي ژبې په کړۍ کې یوه حلقه د لیکوالانو هم وه، دوی د عربې ژبې او لیک سخت مخالفت کوه. د بیلګې په توګه، طاهر منیف، حسین ثابت، توفیق فطرت او حسین رحمی.... او همداسې نور. طاهر منیف یوه ټولنه د[جماعت علمیه عثمانیه] په نامه جوړه کړه او یوه رساله یې د[مجموع فنون] په نامه خپرول، دغه رساله کې به په ساینسي مالوماتو بحثونه کېدل. دوی به ویل، د ترکانو د نالوست والي او شاته پاتې کېدو ستر لامل عربي لیکدود دی، دوی د لاتیني لیکدود خپلولو هیله مند ول.

د سلطان د جبر او استبداد له مینځه وړلو لپاره د ستانبول په پوځي کالج کې زده کړیالانو په ۱۸۸۹ میلادي کې په پټه یو ټولنه[عثمان لي یووالي او پرمختګ] تر نامه لاندې جوړه کړه. دغه ډله ورسته بیا د[ترک ځوانانو] په نامه مشهور شول. له یووالي د دوی موخه د سلطنت د ځینو قومونو یوځای کول وو او له پرمختګ څخه موخه د لویدیځ تمدن دودول ول. په ۱۸۹۶ میلادي کې، حکومت د دغې ټولنې په اړه خبر شو، ځینو وګړو یې فرانسې ته مخه کړه او هلته یې ځانونه پټ کړل. زیاتره ونیول شول. له یو څه مودې وروسته د ټولنې غړو وکولای شوای، ټولنه بیرته فعاله کړي، خو دا ځل د یووالي او پرمختګ مرکز په سالونیکا ( اروپایي ترکیه ) کې جوړ شو. کمال اتاترک، د سالونیکا له دغې پوځي ټولنې سره اړیکې درلودلې.

د حمیدي په دوره کې په ځانګړې توګه دریو کارونو ته پاملرنه وشوه. ۱- پخواني فکر ته ۲- د لویدیځ نظریاتو سره پیاوړی مخالفت ته ۳- د اسلام یووالي ته. د دوی دغه موخه وه، چې پخواني فکر ته لا ډېر کار وکړي، نیکونو پالنې ته یې ډېر کار وکړ او له قرآن او حدیث څخه یې دا ثبوت کړل، چې د سلطان اطاعت پر ټولو مسلمانانو فرض دی. لیکواله خالده خانم لیکي:

«دوی په دولتي بودیجې ډېر کتابونه چاپ او خپاره کړل، خو لوستونکو دغه کتابونه نه لوستل، لوستونکو غوښتل چې اروپایي کتابونه مطالعه کړي، کوم چې دوی ته په پټه ورکول کېدل.»

دوی د لویدیځو علومو او فکارو پر خلاف دوې ستراتیژۍ خپلې کړلې. لومړی، دوی غوښتل دا ثبوت کړي، چې د لویدیځ علوم د اسلامي زده کړو خلاف عمل کوي؛ نو مسلمانانو ته پکار ده،

چې له دغو علومو ځانونه وساتي. د لویدیځ نظریاتو په مقابل کې، ورځپاڼو ته وویل شول چې د لویدیځ د پارلمان په اړه هیڅ کوم شی باید خپورنه شي. د هغه ځای د سیاسي کړنو په اړه په تېروتنه کې هم کوم شی خپور نه کړئ او هلته چې په حکومت کې کوم بدلونونه روان دي؛ هغه خبرونه خو بیخي باید خپارهنه شي. له دې پرته د«ماویین او طبیعیون» ویناوي هم درواغ ثبوت کړل شوې او هر یو شخص ته به یې د ملحد او کافر خطاب کوه. که څه هم دغه ډلې، د سمون لپاره کار کوئ، یانې د ماویین او طبیعیون ډله. په دغه [فکرې] تګ لاره کې، د سیدجمال الدین له کتابونو څخه ډېر کار واخېستل شو. ده، د هندوستان د پاڅون په وخت (۱۸۷۸ میلادي) کې د سرسید خلاف په فارسي ژبه کې [رد نیچر /طبیعت] کتاب لیکلی وو. په ۱۸۸۵ میلادي کې، محمد عبده له بیروته د همدغې کتاب ژباړه [الردالاالدهریون] خپاره کړه( چې د عثمانیې په قلمر کې شامل وو). په دغه کتاب کې له یوناني اتومي  فلسفې تر ډاروین، له مزدکه تر روسو، له یهودیانو تر فرمیسن، له اسماعیلیانو تر مرمنو او له لیبرال سیاسته تر سوسیالیزم، کمونیزم پورې  هر ډول فکر او بدلون یې طبیعي ښودلی او فتوا یې صادره کړې وه، چې: «دغې ملحدې او مفسدې ډلې هر کله له مذهبي ټولنو سره جفا کړې، له خدایه منکر دي، قانون او اخلاق یې له مینځه یوسئ». (برکس، نیازي، ۲۶۲ مخ) دغه کتاب ترکي ژبې ته وژباړل شو؛ نو د مدحت پاشا، سلیمان پاشا او نورو مفکرینو د نومونو هم یادونه شوې  او لیکل شوي، چې [دغو جفاکارو ته زموږ عادله حکومت جزاوې ورکړې او دوی یې مستحق ول].

د لویدیځ په اړه زیاتره داسې خبرې خپریدلې، لکه په ننیو ورځو کې چې زموږ د هیواد په هر ګوټ کې اوریدل کېږي؛ یانې لویدیځ ته زر کاله مخکې موږ د فرهنګ او تمدن درس ورکړئ او که دوی د لمریز نظام د نظریې، تکامل، مقناطیسي څواکونو، اتومي بمب، فضاء ته د تګ، سپوږمۍ ته د ختلو او ټولو ساینسي کشفیاتو په اړه دعوې کوي؛ دا له ساینس څخه مخکې زموږ په مقدسو کتابونو کې د دغو په اړه هر څه ذکر شوي دي. موږ اړ نه یو له لویدیځ څخه څه زده کړو. مها سبهایي هندو هم د وید او پران له مخې داسې بې بنسټه خبرې خپروي یا دعوا کوي. پاتې شو د اسلام د یووالي غږ! دوی خو له دوو پیړیو څخه دغه هڅې کوي ترڅو مسلمانان تېر باسي. ناپیلیون ، سلطان عبدالمجید، موسولیني، فرانک  او هټلر دوی ټولو تل هڅه کړې، تر څو د اسلام نوم بد کړي او دا هڅې اوس هم روانې دي. د نړۍ هر یو باچا چې به غوښتل د مسلمانانو جمهوري حقوق غصب کړي، نو دوی به له هر څه مخکې د اسلام نوم بد کړ، یا دوی به غوښتل مسلمانانو کې بېلتون واچوي. د اسلام د یووالي

خبرې، که څه هم د سلطان عبد العزیز په دورې کې(۱۸۷۲ میلادي) پیل شوې، خو د سیاسي موخې لپاره سلطان عبدالمجید پر مخ یووړې. سلطان عبدالمجید فکر کاوه، چې شام، لبنان، فلسطین، البانیه، عراق، نجد او یمن کې د آزادۍ ځینې خوځښتونه او خپله ترکان له حکومته په تنګ راغلي ول، نو یواځینې لاره یې دا ده چې دوی د اسلام د یووالي په شعارونو سره راټول کړل شي او بهرني سیاست کې هم باید له دغې حربې کار واخېستل شي؛ ځکه هندوستان، مصر،سوډان، ترکستان، الجزائر، لیبیا، تونس او همداسې نورو هیوداونو کې چې میلیونونه - میلیونونه مسلمانان د برتانیې، فرانسې او روسیې تر ولکې لاندې ول، دوی فکر کاوه چې د نړۍ په سطحه یواځې عثماني سلطنت دی، چې لا تر اوسه اسلامي پاتې شوی، نو له دې امله مسلمانانو له دغه هیواد سره ډېره مینه درلودل. هندوستان کې خو د جمعې ورځې خطبه د سلطان په نامه ویل کېده. په دغه وخت کې، که سلطان  د اسلام د یووالي په موخه راوتی وو؛ نو مسلمانانو به هرومرو د ترکیې سلطنت ژغورلو لپاره د نړیوال ځواک سره جګړې کولې.

له یوې خوا سلطان د اسلام د یووالي شعارونه ورکول؛ تر څو خلکو ته ثابت کړي چې زه د نړیوالو طاقتونو خلاف یم، خو بلې خوا ته ده د هیواد ټوله پانګه  نړیوالو طاقتونو ته په ګروي ورکړې وه. ځکه خو په ۱۸۸۲ میلادي کې د اوسپنې د پټلیو، د تیلي ګراف د راویستلو، د ټولو بندرونو او پلچکونو جوړولو قراردادونه انګرېزانو، فرانسویانو او جرمنیانو ته ورکړل شول. اروپایي سوداګر وتوانیدل، تر څو د ترکیې سلطنت په ټولو بانکونو او کانونو ولکې ولګوي او د حکومت د مالیې اخیستلو ټولې چارې دوی ته ورکړل شوې. د نړیوالو طاقتونو د بریا اندازه له دغې خبرې هم کولای شو؛ په پور باندې چې څومره سود واجب وو، یواځې د دې د اداء کولو لپاره نهه زره کسانو ملازمت کاوه، دوی ټول یهودیان او عیسویان ول. له دې پرته سلطان د لویدیځو طاقتونو دغه غوښتنه هم پوره کړل، چې په ترکي محکمه کې، په ملکي یا غیر ملکي عیسوي او یهودي باندې باید هیڅ ډول قضیه ثبتنه شي. لویدیځوالو طاقتونو په ترکیې کې خپل خپلواک حکومتونه جوړ کړي ول؛ یانې د دوی آډه وه.

په پای کې حالات نور له زغم ووتل؛ نو د ۱۹۰۸ میلادي  په جولائ کې د پوځ دریمې ډلې بغاوت پیل کړ، چې کمال اتاترک هم پکښې ګډون درلوده. سلطان عبدالمجید لیري کړل شو. د ۱۸۷۶

میلادي کال اساسي قانون بیرته نافذ کړل شو. حکومتي چارې[ترکي ځوانانو] پرمخ وړل او نوی سلطان پنځم محمد شاد یواځې په نامه سلطان پاتې شو.

د نویو ترکي ځوانانو په دوره کې(۱۹۰۸ میلادي-۱۹۱۹ میلادي) د ترکیې په سیاست او فکر کې درې ځانګړې بدلونونه راغلل. ۱- د پخوانې فکر په اړه چې ترټولو اغېزمن شخص ژباړن سعید حلیم پاشاه وو. ده به ویل[د اسلامي جمهوریت کومه اړتیا نه لېدل کېږي]. دغه شخص له ۱۹۱۳ میلادي تر ۱۹۱۶ میلادي پورې، د ترکیې لومړی وزیر وو. لومړی معاون یې مصطفی صابري وو چې له ۱۹۱۸ میلادي تر ۱۹۲۳ میلادي پورې شیخ الاسلام وو. ده په کمال اتاترک او د هغه په ملګرو د کفر فتوا ورکړه او په پای کې له انګرېزانو سره یوځای شو. یوه بله ډله هم وه، دوی به غوښتل چې عثماني سلطنت د نسلونو په اساس جوړ کړي. دوی هغه سیمې چېرته چې ترکان اوسیدل (منځني اسیا او لویدیځ ایران) د ترکیې برخه ګڼل. د دغې ډلې مشر انور جمال پاشا وو. دریمه ډله د نیشنلستانو وه. دوی به ویل، چې ترکیه به هله په کراره شي، تر څو چې له عربي فکر څخه خپلواکي واخلو او د ترکیې نوی حکومت باید اصیلو ترکانو ته ورکړل شي. د نیشنلستانو سیاسي مفکر ضیا ګوکلپ (۱۸۷۵ میلادي- ۱۹۲۴ میلادي) وو. کمال اتاترک، عصمت انونو، خالده خانم، روف بی، ډاکټر عدنان او همداسې نورو چې وروسته بیا د ترکیې د انقلاب مشري کول؛ د ضیاکوګلپ نظریات ورته په دغې برخه کې زیات اغېزمن ثابت شول.

ضیا ګوکلپ د سهیل ختیځ اناطولیه تاریخي ښار «دیار بکر» کې زېږیدلی وو. په لومړیو کې به یې د نامق کمال او توفیق فکرت په اړه شعرونه لیکل، بیا چې ستانبول ته ولاړ نو د یووالي او پرمختګ په ټولنې کې یې ګډون وکړ او د ژورنالیستۍ چارې یې پرمخ وړلې. هغه ژر دغې پایلې ته ورسېد، چې یواځې سیاسي بدلونونه اړین نه دي، بلکې ترکیه باید سیاسي او ټولنیز انقلاب هم پر مخ یوسي. هغه غوښتل چې په ترکیې کې دې لویدیځ تمدن رایج شي، په دې شرط، چې د ترکیې دوو تاریخي روایاتو ته هم پاملرنه وشي؛ لکه ترکي فرهنګ او اسلام ته. یانې د ترکیې تمدن دې د لویدیځ وي، مذهب دې اسلام وي او فرهنګ دې په ځانګړې توګه ترکی وي.

ضیا ګوکلپ فکر کاوه، چې روایت پرسته ډله د فرهنګ او تمدن ترمینځ توپیر نه کوي، که څه هم دواړه ځانته ځانته تعریف لري. فرهنګ د یو ملت یا قوم د ټولنیزو چارو استازیتوب کوي. دا که قبیلوي یا ملي وي، خو تمدن د ټولنیز نظم او ټولنیزو چارو نوم دی، د بیلګې په توګه د نظم او نسق

قوانین، د ژوند تیرولو طریقې، صنعت و حرفې، ښاري حقوق، جمهوریت، ملوکیت او همداسې نورو اصولو ټولګه ده. تمدن د ټولنې شعوري تګلاره ده. برعکس فرهنګ د وګړو د شعوري تګلارو پایله ده او نه یې هم په مصنوعي توګه لاسته راوړلای شو. د ګوکلپ له نظره د یو قوم د فرهنګ اساس، د هغه قوم د خلکو ژبه ده. د ژبې له مخه د فرهنګ او تمدن د توپیر په اړه ګوکلپ لیکي:

« د کلمو د جوړښت له نظره (خوړل، څکل، ویدېدل) د فرهنګ نښانې دي، چې د خلکو د خوښې تابع وي خو اصطلاح ګانې مصنوعي وي، چې له تمدنه رېښه مومي.»

ضیا ګوکلپ د رویت پالونکو دغه دعوه هم نه مني، چې ګواکې اسلام یو تمدن دی او دا چې لویدیځ تمدن او عیسویت دواړه یو دي، نو ځکه مذهب له تمدن سره کومه اړیکه نه لري. هغه وایي تمدن د اخلاقي موخو تابع نه وي؛ بلکې یو واقعي حقیقت دی. نو که وګورو لویدیځ تمدن له مذهب سره کومه اړیکه نه لري. لویدیځ تمدن یو نړیوال حقیقت دی، چې په بریتانیې، فرانسې، جرمنې، امریکا او هر یو هیواد کې دود دی، خو د بریتانیې، فرانسې، ایټالیا او جرمني فرهنګونه له یو بل څخه جلا دي.

ضیا ګوکلپ وایي:

«اسلام موږ ته په پوره توګه خپلواکي راکړې، چې د حالاتو مطابق ځانته تمدن خپل کړو.» پر علماوو له ټینګار وروسته هغه لیکي: «دغه ښاغلي چې د شریعت نافذولو خبرې کوي، دې ته نه ګوري چې اسلامي فقه د تمدن هغې خواته بل شی نه دی. اسلامي فقې د منځنیو پیړیو د تیوکراټیک تمدن لپاره د هغه وخت اړتیاوې پوره کولې. دغه ښاغلي د اسلام له حقیقتونو بې خبره دي. نننی تمدن د صنعتي انقلاب محصول دی، نو کومه فقه چې د پخواني تمدن استازیتوب کوي، له نني تمدن سره همغږي نه شي کولای.»

هغه وایي، موږ د امت فکر هم له ملت سره یوځای کولای نشو. ځکه امت یوه نړیواله مذهبي ډله وي، خو د ملت بنسټ هیواد وي (ترکي او ایراني پوهان د ملت اصطلاح قوم او د هیواد دواړو لپاره کاروي) دوی ترکانو ته د یو ملت خطاب کوي او په دغه ملت کې عربانو ته ونډه نه ورکوي، نه هم هغو ترکانو ته چې د ترکیې له قلمروه وتلي دي؛ ایران او ترکستان کې میشت دي، ځکه د ضیاګوکلپ له نظره د ملت اساس نسل نه وي؛ بلکې د هیواد فرهنګ وي.

ضیا گوکلپ په پای کې دې پایلې ته رسیږي، چې ترکان باید له عربي او ایراني فرهنګ څخه جلا د ترکیې نوی فرهنګ په ترکي ژبې او ترکي فرهنګ ورغوي. له دې پرته به د ترکانو مذهب اسلام وي او تمدن د لویدیځ.

«موږ ته پکار ده چې د لویدیځ تمدن خپل کړو. که موږ داسې ونه کړل، نو په پای کې به د لویدیځو طاقتونو غلام یو. موږ ته پکار ده چې له دواړو یو وټاکو. لویدیځ تمدن خپل کړو، یا لویدیځوالو ته اجازه ورکړو، چې ترکیه تر خپلې ولکې لاندې کړي. د لویدیځ تمدن موخې ساینسي علوم، په نوې ټکنالوجۍ سنبال صنعت او ټولنیز ژوند ته (جمهوریت، ښاري حقونو، پارلماني ټاکنو، یو پرمخ تللي حکومت) پراختیا ورکړو. اروپا د خپل ستر تمدن له وجې پرمسلمانانو یرغل کوي ، دوی یې له ماتې سره مخ کړي او نن په نړۍ باندې حاکم دي». (Gokalp, 1959)

په ۱۹۰۸ میلادي کې، کله چې سلطان عبدالمجید لیري کړل شو، نو[ترکي ځوانانو] په هیواد کې اساسي قانون نافذ کړ، د یووالي او پرمختګ په ټولنه کې د اسلام د یووالي، قوم پرستې او نیشنلسټو ډلو دریو واړو ګډون درلودل، خو د ۱۹۱۳ میلادي په جنوري کې انور پاشا، طلعت پاشا او جمال پاشا چې د اسلام د یووالي مشران ول؛ ټول اختیارات یې خپل کړل، ولسي جرګه یې له مینځه یووړه، چیرته چې زیاتره نیشنلسټان ول.( دوی له اروپایي ټولنې سره کوم ډول اړیکې نه وې رامنځته کړې). له جرمني سره یې په پټه تړون وکړ او کله چې جګړه پیل شوه نو له جرمنیانو سره ودرېدل.

په جګړه کې تر ګډون وروسته، د ترکیې پاځون ډېره بده پایله درلوده. انورپاشا او د ده ملګري هیله مند ول، چې تر فتحې وروسته به جرمني، روسیه، ترکستان، مصر، لیبیا، تونس او الجزائر ترکیې ته وسپاري. دوی داسې فکر هم کاوه، چې د لویدیځ ناخپلواکه مسلمانان به هم د ترکیې په حق کې پاځون کوي او له ترکیې سره به اوږه په اوږه ولاړ وي، خو د ترکیې حکومت دغه هیلې پوره نشوې، کله چې جرمني له ماتې سره مخ شو نو انورپاشا او د ده ملګرو ترکیه په دغه وضعیت کې پرېښوده او ترې وتښتېدل، له دې وروسته حکومت د سلطان لاسو ته ورغی. برتانوي پوځیانو ستانبول ونیوه او سلطان د دوی تابع شو. د ختیځې اناطولیه، ارمنیا سیمو ته د خپلواکو حکومتونه درجه ورکړل شو او یوناني پوځیانو په اسمرنا کې قتل عام پیل کړ. په ظلم پسې ظلم وو، له دې وروسته سلطان ترکي پوځیانو ته چې د اناطولیه په سیمو کې جنګیدل امر وکړ؛ خپلې وسلې وغورځوي. وطنپالونکو د دې عمل په مقابل کې غبرګون وښود. د دوی آزادي، قومي وجود او ژوند هر څه په خطر کې ول. سرېیو

ښځو، ځوانانو سپينږيرو، ښاريانو، کليوالو، وسلې واخيستلې او بغاوت پيل شو. د هيواد ژغورنې دغې جذبې او انقلاب مشري کمال اتاترک کول. هيواد پلورونکی سلطان چې د نړيوالو طاقتونو تابع وو، کمال اتاترک، علي فواد پاشا، ډاکټر عدنان بې او د ده انقلابي ميرمنې خالده خانم سربېره ۷ نورو مشرانو ته د ده په نشتون کې د مرگ جزاوې واورول شوې، خو د مرگ فرېښتو له دوی سره هيڅ هم ونه کړل. شيخ الاسلام فتوا صادره کړه، که هرچا دغه ۷ اشخاص قتل کړل؛ نو هغه به جنت ته ځي، خو ترکانو د شيخ الاسلام په خوښې د جنت ګټلو تلوسه نه درلودل. د خپلواکی اخيستلو جګړه، د دوو کلنو لپاره روانه وه. يوناني پوځيانو ماته وخوړل. ټول پوځ اړ شو، چې له اناطولیې، ستانبول او سالونيکا څخه بهر شي. سلطان، د برتانويانو په جنګي کښتيو کې ځان پټ کړ او مالاتا ته ولاړ. د ترکيې انقلاب سور بيرغ هسک شو. کمال اتاترک، د جمهوري ترکيې ولسمشر وټاکل شو او بيا ولسي جرګې د ۱۹۲۲ ميلادي کال په نومبر کې، په اکثريت رايو د سلطنت له مينځه وړلو پريکړه وکړه. د ۱۹۲۳ ميلادي کال د اگسټ په دويمه د قانون جوړولو لپاره نوی مجلس جوړ شو. د ۱۹۲۳ ميلادي په اکتوبر کې نوی اساسي قانون ومنل شو. د۱۹۲۴ ميلادي کال په مارچ کې ولسي جرګې د خلافت رتبه رد کړه او له مذهبه د سياست جلا کولو لپاره زياتره قوانين ومنل شول. د شيخ الاسلام رتبه له مينځه يوړل شوه او مذهبي چارو شعبه لومړي وزير ته ورکړل شوه. د ترکيې نوی حکومت سيکولر وو؛ نو ځکه په اساسي قانون کې هرڅه واضح ليکل شوي ول:

«د ترکيې جمهوريت، يو نيشنليسټ، جمهوري، سيکولر او ټولنيز حکومت دی، چې پکښې انساني حقوق د قانون له مخې حاکم ده.» (دويمه ماده).

نن خو موږ د الماسو جوړولو فابريکې جوړې کړي، خو د شلمې پيړی په دويمه او دريمه لسيزه کې د اسلامي نړی تر ټولو ستر شخص کمال اتاترک وو. هغه د ترکيې انقلاب لارښود او يواځې د نوې جمهوري ترکيې بنسټګر نه وو، بلکې د ټول ختيځ لپاره يو ستر شخص ګڼل کېده. ده لويديځو طاقتونو ته ماتې ورکړل، نو ناخپلواکو هيوادونو د ده په کړنو وياړونه کول او خوښي به يې څرګنده کړل. د هندوستان په هر ګوټ کې د کمال اتاترک انځورونه راوځړول شول. پين ورځپاڼې به په ډېری خوښيې سره د ترکيې حالات خپرول. تقريرکوونکو به په هرې غونډې کې د ترکانو د قرباني خبرې کولې او خلکو کې به جذبې راوپارول شوې. د ترکي ليکوالانو، ليکونو به زموږ د رسالو خوند ور زيات کړ او د هند په لويې وچې کې به يواځې او يواځې د نوې ترکيې خبرې کېدلې. د کمال اتاترک له انقلابي

تگلارو څخه علامه اقبال ډېر اغېزمن وو. ده فکر کاوه چې په ترکیې کې یو نوی انسان زېږي او د ترکانو وېښېدل د ټولې نړۍ مسلمانانو لپاره د خوښۍ زېری دی. د علامه اقبال د ورستیو ورځو یو نظم «د غلامانو لمونځ» کې یې د ترکانو په اړه داسې لیکلي دي:

کہا مجاہد ترکی نے مجھ سے بعد نماز
طویل سجدہ ہیں کیوں اس قدر تمھارے امام
وہ سادہ مرد مجاہد، وہ مومن آزاد!
خبر نہ تھی اسے کیا ہے نماز غلام
ہزار کام ہیں مردان حر کو دنیا میں
انھیں کے ذوق عمل سے ہیں امتوں کا نظام
بدن غلام کا سوز عمل سے ہے محروم
کہ ہے مرور غلاموں کے روز و شب پہ حرام
طویل سجدہ اگر ہیں تو کیا تعجب ہے
درائے سجدہ غریبوں کو اور کیا ہے کام

علامه اقبال، په خطبات مدارس کې د نوې ترکیې په اړه لیکي:

«که ریښتیا ووایو، په اوسني عصر کې په اسلامي هیوادونو کې ترکیه یواځینۍ هیواد دی، چا چې له عقل څخه کار واخیست. ترکیه یواځینۍ هیواد دی، چې د فکري آزادی غږ یې پورته کړ. دا هیواد په دې پوهېږي، چې له تکامل سره ټولنه بدلون کوي، نو موږ ته پکار ده له تکامل سره حرکت وکړو؛ نه شاته پاتې شو. زما له فکره هغه انگلیس مفکر هابز وو، چې ویلي یې ول، د یوډول نظریو او جذباتو هرځل یادونه خو دغه مانا ورکوي، چې نظریه شته خو جذبه نه. همدا اوس د اسلامي هیوادونو اوضاع همدغسې ده. دوی پخوانې خبرې تکراروي، خو ترکیه د نننې عصر سره په حرکت کې ده. د ترکیې ټولنیز ژوند حرکت کړئ او ډېر ژر به تکامل ته رسیږي. دغه هیواد د نویو محصولاتو هیلې لري، چې له ځان سره ډول - ډول سختیو ته لاره هواروي، خو له وخت سره یې په ځان کې حلوي او د یو خوشحاله ژوند زېری ورکوي». ( Iqbal, Reconstruction of Religious Thought in Islam, (P.162

آیا د سکولریزم په اړه به له دې ښه تعریف او وضاحت وموندل شي؟ خو زموږ قوم لا هم ویده دی او خپل راتلونکي ته کوم پلان نه لري. نه دوی د هڅې کولو لیوالتیا لري او نه هم کوم نوی شی موندلی شي. دوی نه غواړي، چې د هستۍ په اړه پلټنې وکړي او طبیعت د ځان په ګټه وکاروي.

کمال اتاترک له حده ډېرې هڅې وکړې، ترڅو له ترکیې یو پرمختللی هیواد جوړ کړي. ده هغه هر څه له مینځه یوړل، چې له مخه د نړیوالو طاقتونو سره تړونونه امضا شوي ول. په ترکیې کې، د سویزرلېنډ په څېر ټولنیز قانون نافذ شو، پوځي قوانین یې له ایټالیا څخه تقلید کړل او د سوداګرۍ چاري یې د جرمني هیواد په قوانینو ورغول. د ترکي ژبې رسم الخط د عربې ژبې پر ځای لاتیني شو. ښځو ته د نرانو غوندې ښاري حقوق ورکړل شول او د مخ پټولو رواج ختم شو. د اروپا شاته پاتې هیواد ځان جوړ کړ او له دې وروسته د نړۍ په پرمختللو هیوادنو کې شمیرل کېده.

خو د کمال اتاترک له مړینې وروسته ځای ناستو یې هر څه بدل کړل. دوی په دې کې پاتې راغلل، چې هیواد د صنعت له مخې بسیا کړي. دوی د ماډرنیزم شا ونیوله او دا یې هیر کړل چې لویدیځ تمدن خو یواځې د پتلون او بلوز اغوستلو نوم نه دی؛ بلکې نوي صنعت، حرفو او ساینسي ټکنالوجۍ ټولګه ده. ښاري حقونو ته باید کار وشي او جمهوري ادارې باید منظمې کړل شي. د ترکیې نویو واکمنو پر دغو خبرو د عمل کولو پرځای د اروپا فاشیستي طاقتونو سره اړیکي جوړې کړي او د پرمختګ په عناصرو یې تشدد پیل کړ. ترکیه د هټلري طاقتونو لپاره اډه جوړه شوه او له دې وروسته فسادو زور ونیوه. په دویمې نړیوالي جګړې کې، چې فاشستانو ماته وخوړل؛ نو ترکیې له امریکا سره اړیکي ټینګې کړي او د ترکیې له پانګې به یې خپل پوځ ته مهمات اماده کول. اوس هر ځای د امریکې پوځي او هوایي اډې جوړي شوې. د ترکیې بهرنۍ او کورنۍ پالسي به د امریکا په خوښي جوړیدل. د دغو کړنو پایله وه، چې ترکیه له څلورو لسیزو را په دې خوا لا تر اوسه په مسلسله توګه له سیاسي او اقتصادي بحران سره مخ ده. د حکومت چارې پوځ پر مخ وړي، ښاري آزادي اخیستل شوې ده، د جمهوریت څرک هم نه لیدل کېږي او د سیکولریزم د مخالفینو طاقت ورځ تر بلې زیاتېږي.

د هند د لویې وچې دغه تاریخي پیښه هیڅ د هیرولو نه ده، چې د ۱۴۹۸ میلادي کال د مۍ میاشتې په ۲۷مه پرتګالي بیړیو چلونکو د واسکوډیګاما په مشرۍ د ملابار په ساحل خپل لنګر واچوه او د کالي کټ له مشر راجا زمورن سره یې د سوداګرۍ اړیکې جوړې کړې. پرتګالیانو ژر تر ژره ګواه

ونیول، چې د بیجاپور سلطنت تر ټولو ستر بندر وو، دوی ورو ورو دمن، دیو، سالسټ، بسن، چول، ممبیي او په بنګال کې د هګلې سیمو مالکان هم شول. دوی په ګواه کې یوه خپروندویه ټولنه جوړه کړه، چې پکښې به مذهبي کتابونه چاپیدل او خلک به یي په زوره عیسویان کول. دوی په سیمه ائیزو خلکو، په ځانګړې توګه مسلمانانو باندې زیات ظلمونه ترسره کول؛ ځکه مخکې د هند سمندري سوداګري له پیړیو- پیړیو د عربانو تر ولکې لاندې ول. په پای کې دوی بریالي شول، تر څو خپلو دښمنانانو ته په سوداګرۍ کې ماتې ورکړي، له دې وروسته د هند په سمندر د دوی تګ او راتګ او اغېزه دومره زیاته شوه، چې په شپاړلسمې او اوولسمې پیړۍ کې د مغولو شهزادګانو او د سلطنت ستر خلک به هم د حج د زیارت لپاره د دوی په بېړیو کې سفر کاوه. له دې سربېره هم مغولانو داسې فکر ونه کړ، تر څو خپل سمندري ځواک زیات کړي او دوی پخپله پرتګالیانو ته دا زمینه برابره کړه، تر څو دوی پرې مسلط شي. پرتګالي پادریانو د چاپ خانو بیلګې اکبر باچا ته ورښودلې، خو د اکبر باچا غوندې یو عاقله سړي هم د دوی د انقلابي کشفیاتو اهمیت محسوس نه کړ او دا یي ورته وویل، چې د چاپ خانو له پرانیستلو سره به زموږ د کاتبانو د خولې ګوله ترې واخیستل شي.

تر پرتګالیانو یوه پیړۍ وروسته، انګرېزانو د هند پر خوا مخه کړه. دوی د ۱۶۰۰ میلادي کال د دسمبر په ۳۱ لندن کې د ختیځ هند کمپنۍ جوړه کړل. د دوی د سوداګرۍ استازی، کپتان هاکنس په ۱۶۰۸ میلادي کې هندوستان ته راغی او د جهانګیر په دربار کې حاضر شو، خو انګرېزانو ته پنځه کاله(۱۶۱۳ میلادي) وروسته اجازه ورکړل شوه ترڅو سورت کې د سوداګرۍ فابریکې جوړې کړي. ورو - ورو دوی له مغولو باچاهانو څخه زیات مراعات ترلاسه کړل او احمد اباد، بړوچ، آګره، لکهنو،مسول پټم، هګلې، قاسم بازار، پټنه او مدارس کې یې فابریکې جوړې کړې. ورپسې دوی شاهې دربار ته هم لاره پیدا کړه. ډاکټر برنیئر، د اورنګ زیب په زمانه کې دولس کاله په ډیلي کې پاتې شو. هغه د نواب هوښیار طبیب وو. داسې ښکاري چې برنیئر د فرانسې نامتو مفکرینو په ځانګړې توګه ډیکارت او ګیسند فلسفې هم نواب ته تشریح کړې وې، خو کله چې برنیئر ومړ؛ نو هر څه له مینځه ولاړل او له دې وروسته کوم بله ډیوه ونه ځلېدل.

کله چې د ختیځ هند کمپنۍ ممبیي او مدارس تر خپلې ولکې لاندې کړل؛ نو دوی ژر تر ژره وانګېرل، چې د مرکزي حکومتونو خپلواکي او هیواد کې چې کوم بدلونونه را روان دي، نو پکار ده باید خپلې سوداګرۍ ته ډېر پرمختګ وکړو، تر څو سیاسي واک خپل کړو. نو ځکه خو په ۱۶۶۹

میلادي کې سرجان  آک زندن د سورت والي د کمپنۍ ټولو مدیرانو ته داسې مشوره ورکړه[د حالاتو غوښتنه ده، چې د خپلې سوداګرۍ د مخته وړلو لپاره باید له توریې کار واخېستل شي] او کمپنۍ پر دغې خبرې د عمل کولو وروسته په ۱٦۸۲ میلادي کې والي ته یو لیک واستوه، چې پکښې لیکل شوي ول: «داسې ملکي او پوځي حکومت باید جوړ شي، چې پکښې د دواړو شعبو د خرڅ انتظام وشي چې بیا په هند کې د یوې پراخې او تل پاتې بریتانوي مستعمرې اساس جوړ کړل شي». په یاد ولرئ، دغه لیک د هغې زمانې دی، کله چې اورنګ زیب باچا له مدارسه لیري د دکن په یرغل مصروف وو او د مغولو سلطنت هسې په ظاهره یو متحد سلطنت ښکاره کېده.

د اورنګ زیب له - تر مړینې وروسته د سلطنت حالات ورځ تر بلې خرابېدل او له دغه داستانه هر یو وګړی خبر دی. نو انګرېزانو په لومړیو کې، د حیدرآباد دکن ته مخه کړه او هلته له درباري نارواوو وروسته آصف جاهي کورنۍ یې د تل لپاره خپل تابع وګرځوله. د پلاسي او بکسر له جګړو وروسته کمپنۍ د بنګال، بهار او اړیسه مالکان شول او په ۱۷٦۵ میلادي کې دویم شاه عالم(۱۷۵۹ میلادي- ۱۸۰٦ میلادي) دغه فرمان صادر کړ، چې د یادو ولآیتونو چارې باید کمپنۍ ته ورکړل شي. دغه بهرني واک خو هسې د ناخپلواکو سیمو ټولنیز ژوند تر خپلې اغېزې لاندې راویستل، خو په ځانګړې توګه یې درې عناصر ډېر اغېزمن کړل. ۱- قضایي نظام ۲- ښوونیز نظام ۳- فکري او اعتقادي نظام.

د مغولو په دوره کې د حکومت چارې په دوو برخو ویشل شوي وې. د سترې محکمې په غاړه به د مالیاتو اخیستل، طلاق، میراث، پرځمکو جګړې، د راکړې - ورکړې تړونونه او د واده کولو په څېر، د دغه ډول ټولو قضیو پریکړې به په دغې محکمې کې ترسره کېدلې. د سترې محکمې په مالیاتي څانګې کې، تر ډېره هندوان ول، دوی به فارسي ژبه زده وه او کتاب او حساب کې به ډېر پیاوړي ول. مسلمانانو به په ځانګړې توګه دغه مسلکونه بد ګڼل.  دوی د دغه ډول کړنو پایله د انګرېزانو په دوره کې تجربه کړه. په محکمو کې به د هندوانو فیصلې د دهرم شاستر له مخې پناتانو کولې او د مسلمانانو پریکړې به د شریعت له مخې قاضیانو کولې. ناظم به په حقیقت کې د ولآیت والي وو. شاهي پوځ به د ده ترلاس لاندې وو. په ولایت کې امن راوستل، شاهي قوانین رواجول او نورې چارې به ده پر مخ وړلې. د پوځ قوانین (قتل، غله، فساد او همداسې نور به) چې په حنفي فقهې

وو، د هندوانو او مسلمانانو به یوشان ول. نو د پوځي محاکمو قاضیان به مسلمانان ول او د پوځ په زیاترو برخو کې به هم مسلمانانو ګډون درلود.

که چیرته د زده کړو په اړه وغږیږو؛ نو اتلسمې پیړۍ کې هند لا څه کوې، د نړۍ په هیڅ یو هیواد کې هم د زده کړو نظام د حکومت برخه نه ګڼل کېده. د هندوانو په واکدارۍ کې راجاګانو او پانګوالو به خپلې ځمکې وپلورلې، تر څو د پنډاتانو خرڅ ورکړي. له دې پرته کاشي، مترا، هردوار او نورو زیاترو کلیو کې به ستر ستر پنډتان سنت هم ول، چې خپلو پیروانو ته به یې وید، پران، بګوت ګیتا او دهرم شاستر درسونه ورکول. مسلمانو باچاهانو به هم دغه ډول کړنې ترسره کولې. دوی به سترو علماوو او استادانو ته د ښوونځیو او مدارسو د خرڅ لپاره د معاش په بدل کې ځمکې ورکولې. (داسې ویل کیږي، د ټیپو ولآیت نیمی ځمکې علماوو ته په مفته ورکړل شوي). پیرانو او شیخانو به خپلې حلقې درلودې، چې به د مریدانو لپاره د زده کړو او خواړو انتظام مفت وو. لومړۍ دولتي مدرسه په ۱۱۹۱ میلادي کال کې سلطان شهاب الدین غوري په اجمیر کې جوړه کړل. بیا بختیار خلجي په بنګال کې ډېري مدرسي جوړې کړې. سلطان التمش په ۱۲۲۷ میلادي کې په اوچ او ۱۲۳۷ میلادي کې په ډیلي کې مدرسي جوړې کړې. (Haq, 1975) د مغولو په دوره کې ملتان، ټټه، سیالکوټ، جون پور، پټنه او ډیلي د زده کړو ستر مرکزونه ول، خو په سلو کې به یوښار یا کلي کې د مدرسي څرک نه وو.

د مسلمانانو په دوره کې د زده کړو ژبه فارسي وه. په ښوونځیو کې به د هجا حروف تدریس کیدل. د لیک لپاره به د لرګیو جوړې تختې موندل کیدل. ماشومانو ته د تورو یا الف ب زده کولو لپاره بغدادي قاعدې تدریس کیدلې او د عم سپارې ځینې صورتونه به هم ماشومانو یادول، د فارسي ژبې ځینې مصدرونه به هم تدریس کېدل. کېدای شي بوستان او پنج ګنج په څیر اسانه کتابونه هم تدریس کیدل. د مدارسو په نصاب کې، کوم ځای کې چې لوړې زده کړې ترسره کیدې؛ نو فقه، اصول فقه، بلاغت نحو، علم کلام، تصوف او تفسیر کتابونه شامل ول، چې له پیړیو پیړیو مخکې ایران او عراق کې لیکل شوې ول. فقې باندې به ډېر ټینګار کیده ځکه په محاکمو کې به د دندې ترلاسه کولو لپاره له فقې سره بلدتیا ډېره اړینه وه. د اکبر باچا په دوره کې ډېرې کړنې ترسره شوې، خو د پخوانیو مدارسو ترڅنګ په سیکولر فکر ښوونځۍ هم ورغول شول. ځکه خو مفتي انتظام الله شهابي د اکبري قانون په اړه لیکي:

«د اکبر په دوره کې داسې ښوونځۍ هم ورغول شوې، چې شاګردانو ته به يې رياضيات، اخلاقيات، زراعت، مساحت، هندسه، فلکيات، اصول حکومت، طب، منطق، کيميا، طبيعي علوم او تاريخ تدريس کيدل.» (History of Freedom Movement: Vol,11,P.172, 1960)

ډاکټر عابد حسين ليکي:

«اکبر ډېر داسې دولتي ښوونځۍ جوړې کړې، چې به هندو او مسلمان ځوانانو په يوه ټولګي کې په فارسي ژبې زده کړې کولې. کتابونه به ټول سيکولر ول، د بيلګې په توګه منطق، اخلاقيات، هندسه، طبيعي علوم، طب، سياست، تاريخ او فارسي ادب شامل ول». (Husain, 1951)

که څه هم د اکبر ځای ناستو دغه لاره پرېښودل او پخوانۍ زده کړې يو ځل بيا رواج شوې، خو د اورنګ زيب له دغه ډول زده کړو سره جوړه نه وه؛ يانې پخوانۍ زده کړې. د دغې خبرې اندازه د اورنګ زيب له يو تقرير څخه کېږي، کله چې يې د خپل استاد مخې ته وړاندې کړ. اورنګ زيب چې کله باچا شو، نو استاد يې د خپل انعام اخيستلو لپاره ورغی. اورنګ زيب د هغه د جغرافيې او تاريخي پوهې وروسته د هغه په اړه وويل:

«آيا استاد ته پکار نه وه، چې زه يې د ټولي نړې د قومونو د حالاتو په اړه پوه کړی وای، د بيلګې په توګه، د دوی له پوځي ځواک، د توليدي ځواکونو، د جګړې له تاکتيکونو، د دوی له دودونو او رواج، مذهب او د حکومت کولو په پاليسيو سره به يې آشنا کړی وم او تاريخ علم يې بايد ماته داسې په زور او زېر تشريح کړی وای، تر څو ما د هر سلطنت اساس، بنياد، د پرمختګ لاملونه، پيښې، حقيقتونه او تيروتنې زده کړي وای، چې په پايله کې دوی د سترو - سترو انقلابونو شاهدان ول... باچا ته اړينه ده، چې د خپلو ګاونډيو هيوادنو له ژبو سره اشنا وي، خو تا د دې پرځای ماته عربي ليک را زده کړ. د دغې ژبې په زده کولو سره زما د ژوند نيم عمر ضايع شو..... تا هيڅکله هم فکر ونه کړ، چې يو شهزاده بايد له کومو - کومو علومو سره آشنا وي؛ تا يواځې ماته صرف او نحو او داسي نور فنون تدريس کړل، چې يو قاضي اړتيا ورته لري، تا زما د ځوانۍ ورځې په بې ګټې او لفظي بحثونو را ضايع کړې». (زيب، ۱۹۶۰)

خو د افسوس ځای دی، کله چې ملا نظام الدين سيوهالوي، د سلطان ذي فهم په حکم يو نصاب ترتيب کړ؛ نو په هغه کې د اورنګ د دغه تقرير يوه خبره هم رانقل شوې نه ده، ده چې د کومو کتابونو او علومو په تدريس ټينګار کړئ، د هغو ټولو په اړه سلطان خپله ناخوښي څرګنده کړې وه. د

بیلگې په توگه، د منقولاتو په تجوید او قرات، تفسیر، حدیث، فقه، اصول فقه، فرائض(وراثت) کلام، تصوف، په معقولاتو کې صرف او نحو، بلاغت، عروض، منطق، حساب، حکمت او مناظره... مفتي انتظام الله شهابي د دې ښوونیز نصاب ډېر تعریف کاوه، خو په پای کې ده هم په پټه ومنل، چې: «که وکتل شي په منځنیو پیړیو کې اسلام زیاتره داسي ستر مفکرین او ساینس پوهان لرل، خو په ښوونیز نصاب کې د دغه ډول علومو نشتون ډېره د حیرانتیا خبره ده. د اسلام د سترو او ځانگړو مفکرینو لکه...... د الکندي، الفارابي، ابن سینا، البیروني او ابن رشد نومونه لاسره پکښې ذکر شوي هم نه دي.

د خواشینۍ خبره ده، چې زموږ په دیني مدارسو کې لا تراوسه دغه نصاب دود دی.

په اسلامي فکر کې د جمود یواځنی لامل دا وو، چې پخپله اسلامي ټولنه د جمود ښکار شوه. څېړنې او پلټنې، تجربې او مشاهدې او اجتهادي فکر خو نه یوازي علماوو او پیرانو پرې ایښې ول، بلکې د منځنیو پیړیو روښان فکره مسلمان مفکرینو ته به یې کافر او ملحد ویل او دوی د کتابونو پر لوستلو به یې بندیزونه لگول. پایله دا شوه، چې زموږ مشران د منقولاتو په نړۍ کې بند پاتې شول او بیا هیڅکله هم ترې خلاص نشول. بس یواځې پخوانۍ خبرې به یې کولې. د پخوانیو کتابونو شرحې به یې کولې؛ نه خو یې په خپله نوي څه زده کړل او نه یې ولس ته نوي شیان ورمعرفي کړل. نو ځکه خو په تیرو اوو پیړیو کې داسې کوم لیکوال پیدا نه شو، چې د اسلامي حکومتونو په اړه داسې څه ولیکي؛ تر څو نړۍ ته یې په وړاندې کولو سره پرې وویاړو. د [کوچه زهاد] څخه که څوک سم راووت نو هغه[رندان قدح خوار] دی؛ دا شعر تر اوسه لا صدق کوي. د تاریخ په اړه ډېري کتابونه لیکل شوي، خو لیکوالان یې د تاریخ له فلسفې سره بلد نه ول. دوی یواځې د پیښو په اړه لیکل کړي، چې ورته د پېښو لیکوالان باید ووایو، نه تاریخ پوهان. دوی خو له ابن خلدون څخه هم زده نه کړل. څومره به د حیرانتیا خبره وي چې دوی د ابن خلدون نوم هم لا نه دی اوریدلی.

کله چې شاه عالم د محکمې اختیارات کمپنۍ ته ورپه غاړه کول، نو دا یې پرې یو شرط ومانه، چې د ولآیتونو په چارو کې به کوم ډول بدلون نه راځي. یعنې دفتري ژبه به فارسي وي او د محاکمو پخوانی سیستم به هم دود وي؛ ځکه خو جنرال وارن هسټینگر (۱۷۷۴ میلادي-۱۷۸۵ میلادي) اړ شو تر څو ژر تر ژره ځینې باسواده مسلمانان وومي، چې د هیواد له قانون سره سم بلد وي. ځکه هم دی د خپلو خاطرو په کتابچه کې لیکي:

« مورږ غوارو عدلي ارگانونو او پوځ کې زياته ونډه مسلمانانو ته ورکړل شي. دغه دندې به د عربي او فارسي ژبې ويونکي او مسلمانان په ښه توگه ترسره کړي، خو دغه علوم او علماء ورځ تربلې د ورکيدو په حال کې دي.... دغه هم واقعيت دی، چې د مسلمانانو له زوال وروسته مسلمانان تباه او برباد شول او خپلو زامنو ته د درس زمينه نه شي برابرولای.» (ډاکټر ضياء الحق، ۲۷۹ مخ)

وارن هسټينگر د دغو لاملونو په اساس ۱۷۸۱ ميلادي کې عالي مدرسه (د کلکتې مدرسه) جوړه کړه، تر څو مسلمانانو ته هر ډول موکه ورکړل شي، چې په نظم او نسق کې ونډې واخلي. هغه د ۲۴ ولسواليو زياتره ځمکه هم د مدرسې د مصارفو لپاره ځانگړې کړه.

وارن هسټينگر له ډيرې مودې راهيسي په هندوستان کې ميشت وو. هغه په فارسي ژبې ښه پوهيده؛ د ختيځ علومو او ژبو ډېر شوقي وو. هغه هيله درلوده، چې د برتانوي حکومت او هندوستاني فرهنگ تر مينځ بايد مشترکات پيدا کړل شي، تر څو کمپنۍ ښه په ارامه د خپلو موخو د ترلاسه کولو په برخه کې کامیابه وي. په دغو ورځو کې د کمپنۍ په عالي رتبه مامورينو کې هم داسې يوه ډله وه، چې له وارن هسټينگر سره همغږي ول او دوی به له ختيځو علومو او ژبو سره ډېره مينه درلوده. د بيلگې په توگه، د قاضي القضات سروليم جونز، سرچارلس ولکنس، نيتي نيل هال هيډ، سرجان شور چې بيا وروسته والي شو، فرانسس گليډن، جان کارناک، جان گل کرسټ، جونا تن ډنکن، وليم جميز برس.... او همداسې نور.

په ۱۷۸۳ ميلادي کې، کله چې سروليم جونز قاضي القضات وټاکل شو، نو کلکتې ته راغئ او د لسو کلنو ورسته د ۴۷ کاله په عمر مړ شو. هندوستان ته د راتلو له مخه د هغه عبراني، يوناني، لاتيني، عربي، فارسي، فرانسوي، هسپانوي، ايټالوي، جرمني، ترکي او چينايي ژبې زده وي. کله چې دلته راغی، نو سانسکريټ ژبه يې هم زده کړه او د نړيوالو ژبو په اساس ډېر مشهور شو(کله چې هغه د ژبو مطالعه پای ته ورسوه، نو ده وويل، چې سانسکريټ، فارسي او اروپايي ژبې له يوې کورنۍ سره اړيکې لري)، هغه د فقه په کتابونو کښې [السراجيه] او دهرم شاستر وژباړل او خپاره يې کړل، په ۱۷۸۴ ميلادي کې، يې په بنگال کې د اسيا ټاک په نامه يوه ټولنه جوړه کړه چې تراوسه لا شته. د ټولنې موخه، د هغه له قوله: «انسان او طبيعت، طبيعت چې په آسيا کې څه پيدا کوي او انسان چې په خپلو هڅو څه جوړوي، د دغو ټولو په اړه يې څېړنې او پلټنې کول ول». (Mukerji, 1968)

د سرچارلس ولکنس ترټولو ستره کارنامه دا ده، چې ده د بنګالي، اردو او ناګري ژبې لپاره یې په ډېري سختۍ سره، ټایپ ماشین تیار کړ. د فورټ ولیم کالج اردو کتابونه د ده په مټ جوړ شویو نستعلیق فونټونو کې خپرېدل. سرچارلس او ځینې نورو ختیځوالو چې مخکې یې یادونې وشوې، ادب، ګرامر، لغت، قانون، تاریخ، فقه او مذهب په اړه یې ډېري کتابونه له فارسي، عربي او سانسکریټ ژبې څخه انګلیسي ته وژباړل او د هند د لویې وچې په اړه یې ډېر کتابونه ولیکل او خپاره یې کړل.

وارن هستینګر، سرولیم جونز او همداسې نورو له ختیځو علومو او ژبو سره زیاته مینه یواځې د کمپنۍ د ګټو ترلاسه کولو لپاره نه وه؛ بلکې په اتلسمې پیړۍ کې د ټولو لویدیځوالو فیشن جوړ شو. د پرتګالي، برتانوي او فرانسوي کمپنیو د سوداګریو کیسې د ختیځ په مارکیټونو کې د لویدیځ د سیاحینو او نورو خلکو پام وروان‌وه، ورسره د ختیځ فرهنګ د لویځوالو په زړونو کې ځانته ځای خپل کړی وو. د فارسي ژبې په تقلید د ګویته محکمې، د شیلي اسلامي بغاوت، د بائیرن نظمونه، د سوئفټ د ګلی ور سفر(۱۷۲۶ میلادي)، د رابن سن کروسو تجربې، د رمبرا او ګویا انځورونه، د والټیر افسانې او د فرانسوي روښانفکره مفکرینو کتابونو کې د اسلامي مفکرینو له یادونې سره داسې مالومېږي، چې ګوندي اروپاپانو یوه نوې نړۍ کشف کړه او د هغه له واقیعتونو سره اشنا دي. وارن هستینګر، سرولیم جونز او د کمپنۍ نور لوړ رتبه مامورین د ختیځ له فکر څخه اغیزمن ول. په اتلسمې پیړۍ کې د کمپنۍ په انتظامي پالیسیو د دغو عناصره لاس وو.

خو د دغو [نیشنلیستانو] سره - سره د کمپنۍ د ملازمینو یوه بله ډله هم وه، چې هندیانو ته به یې انګلیسي ور زده کوله او ترځنګ به یې فرهنګ ورښوده، تر څو دوی متمدنه شي.

دوی غوښتل چې دلته باید برتانوي قانون نافذ شي، د دغه ځای دولتي ژبه باید انګلیسي شي او په ښوونځیو کې دې په انګلیسي ژبې تدریس کېږي. دغه څرګندونې په لومړي سر کې د کمپنۍ یو افسر چارلس ګرانټ وکړې. د ده له نظره'' ټولنیز او اخلاقي فساد د جهالت له مخې دومره پراختیا موندلې، چې د مهارولو لپاره یې اړینه ده تر څو زده کړې عامې شي''. د هغه خبره چا دلته ونه منله؛ کله چې انګلستان ته ولاړ؛ نو د کمپنۍ مدیرانو ته یې دغه تجویز وړاندې کړ، خو د کمپنۍ مدیرانو هم د نورو غونډې له دغې خبرې سره مخالفت وښودل. سربېره په دې په ۱۷۹۲ میلادي کې، د انګلیسي ژبې استادان هندوستان ته ولېږدول شول. د دې په خلاف د کمپنۍ یوه مدیر وویل:

«موږ دا تېروتنه په امریکا کې وکړه، چې هلته مو ښوونځی او پوهنتونونه جوړل کړل، له همدې امله مو هغه هیواد له لاسه ورکړ اوس دغه تیروتنه دلته بیا نه تکراروو.» (احمدنظامي, ۱۹۷۱)

د دې ټولو سربېره د انګلیسي ژبې پادریان او د انګلیسي ژبې ورځپاڼې، چې د وارن هسټینګر سخت خلاف ول، خو بیا هم دوی د انګلیسي ژبې د دود کېدلو په اړه موافق ول. د پادریانو په انګلیسي ژبې، د تدریس تجربه ممبیي او مدارس کې کامیابه شوې وه، نو دوی په بنګال کې هم ځینې ځایونه ښوونځي جوړ کړل، مطبعې یې پرانیستلې او د تبلیغ کتابونه به یې خپاره کړل. دوی په سي رام پور کې د کاغذ جوړونې یوه کارخانه هم جوړه کړه. دغه کاغذ به ارزان بیه او ښه وو، ځکه د ورځپاڼې اړتیاوې به یې پوره کولې. پادریانو به له انګلیسي ژبې سربېره، د لویدیځ علوم هم تدریس کول. مسلمانان چې له هر نظره د انګرېزانو خلاف ول؛ نو هغو خپلو ماشومانو ته دا اجازه نه ورکول، تر څو انګلیسي ښوونځیو ته ولاړ شي، خو بلې خواته هندو ځوانانو ښه په ذوق سره په دغو ښوونځیو کې درسونه پیل کړل. په راتلونکې کې دغه زده کړي دوی ته خورا ګټورې ثابتې شوې او دوی له مسلمانانو څخه ښه راتلونکی درلود.

ورځپاڼه د یوې ټولنې څلورمه قوه ګڼل کېږي، ځکه د خلکو په سیاسي او ټولنیز شعور کې ډېر مهم رول ترسره کوي. دغه وجه ده، چې ظالم باچا هرکله له ورځپاڼو ویره لري او له هر څه مخکې د مطبوعاتو آزادي ترپښو لاندې کوي. په هند کې ترټولو لومړۍ ورځپاڼه په ۱۷۸۰ میلادي کال کې په انګلیسي ژبې له کلکتې خپره شوه. د دغې اونیزې ورځپاڼې نوم''بنګال ګزټ'' وو(تر ده له مخه د ختیځ هند کمپنۍ په دولتي توګه یو انګلیسي ورځپاڼه انډیا ګزټ په نامه کال ۱۷۷۴ میلادي کې خپره کړه، خو په هغه کې یواځې د کمپنۍ خبرونه خپریدل). بیکي د ختیځ هند کمپنۍ او د هغه د مامورینو ځاني دښمن وو او د دوی د کړنو یادونه به یې په ښه توګه ورځپاڼې کې ولیکل. له دغه وجې، هغه دوه ځلې زنداني شو او په پای کې له هیواد څخه تبعید شو. د بنګال ګزټ وروسته ژر تر ژره په کلکتې، ممبیي او مدارس کې د زیاترو اونیزو ورځپاڼو خپرول پیل شول. په دغو ورځپاڼو کې به د هندوستان سربېره د نورو هیوادونو خبرونه هم خپریدل، چې د لندن له ورځپاڼو به نقل شول. [له دغو ورځپاڼو سره د هندیانو شوق ډېر زیات شو او د ورځپاڼې لیکلو دود زیات شو]. له دې وروسته د نړیوالو حالاتو سره هم اشنا شول (په یاد مو وي چې دا د فرانسې انقلاب دوره وه).

وارن هستینګر او لارډ کارنوالس په زمانه کې، که څه هم ځیني آزاد فکره انګلیسي ایډیټرانو باندې سخته بندیزونه لګیدلي ول او هغوي له هیواد څخه بهر ولیږدول شول، خو مطبوعات آزاد ول، لارډ ویلزلي د فرانسې له انقلاب څخه ویریده او خپل هیواد کې یې په مطبوعاتو بندیزونه ولګول، چې له امله یې په ۱۷۹۹ میلادي کې سخت سانسور نافذ شو. انګلیسي ایډاتیرانو مظاهرې پیل کړې او پارلمان کې د سانسور خلاف غږونه پورته شول، خو سانسور همغسې پاتې شو. بیا لارډ هستینګر له (۱۸۱۳ میلادي-۱۸۳۳ میلادي) تر ۱۸۱۷ میلادي پورې سانسور ختم کړ. له دې وروسته هندیانو هم په خپلو ژبو ورځپاڼې لیکل پیل کړل. لومړنۍ ورځپاڼه په بنګالي ژبه ولیکل شوه او په زیاته اندازه خپره شو. په ۱۸۳۰ میلادي کې له کلکتې د بنګالي ژبې درې ورځپاڼې، یوه دوه ورځینۍ، بله درې ورځینۍ او یوه اونیزه، دوه ۱۵ ورځینۍ، میاشتنۍ. (Cary, 1882)

په فارسي ژبې لومړۍ ورځپاڼه ۱۸۲۲ میلادي کال کې خپره شوه او کال وروسته په اردو ژبه. حیرانونکې خبره خو دا ده، چې د فارسي ورځپاڼې لومړی[مراة الاخبار] چلونکی او سرمحرر راجه رام موهن رای او د اردو ورځپاڼې[جام جهان نما] چلونکی او سرمحرر منشي سدا سک دواړه مسلمانان نه ول. راجه رام موهن رای د [مراة الاخبار] په اړه لیکي چې د انګریزانو ورځپاڼې شته خو:

«له دغو ورځپاڼو هغه خلک ګټې اخیستلای شي، چې له انګلیسي ژبې سره بلد وي، خو د هندوستان ډېري خلک په انګلیسي ژبې نه پوهیږي. ځکه له انګلیسي ژبې سره اشنا نه دي، نو هغوی د انګریزانو له خولې خبرونه اوري یا خو له خبرونو بیخې بې خبره دي. ځکه خو ما فکر وکړ، چې په فارسي ژبې یوه اونیزه ورځپاڼه وچلوم. د ولایتي سیمې ټول خلک له دغې ژبې سره بلد دي. د دې ورځپاڼې له چلولو څخه زما یواځینۍ موخه دا ده، تر څو عامو وګړو ته داسې خبرې وشي، له کومو چې دوی بې خبره دي. د حکومت مشرانو ته باید د خلکو په اړه سم مالومات ورکړل شي او خلکو ته باید د حکومت د قوانینو په اړه پوره پوره مالوت ورکړل شي، ترڅو باچاهان په دغه پوه شي؛ د خپلو خلکو اړتیاوې پوره کړي او د خلکو له هر ډول ستونزو څخه خبر وي». (صدیقي, ۱۹۵۷)

راجه رام موهن د ختیځ هند کمپنۍ په دوره کې د هند د لویې وچې تر ټولو ستر مصلح، د عربي او فارسي ژبې عالم او د لویدیځ تمدن غوښتونکی وو. هغه، د ۱۷۷۴ میلادي په ۲۴ مې کې، د بنګال په رادهانګر کې زیږیدلی وو. د ده کورنۍ پنځو پښتونو څخه له مغولو باچاهانو سره تړلي ول، یانې دوی سره یې اړیکي درلودې. د رواج له نظره، د ده لومړنۍ زده کړي هم په فارسي او عربې ژبو ول. د

لوړو زده کړو لپاره پټنه ته واستول شو، چې په دغه ورځو کې د اسلامي زده کړو ستر مرکز وو. هلته ده د قرآن شريف، فقه، اسلامي دينيات او د مناظرې علم زده کړل، ورسره ده د ارسطو عربې ژباړې او ډېر نور کتابونه هم ولوستل. هغه، د پيرانو کتابونه هم ولوستل او د وحدت الوجود له فلسفې دومره اغيزمن شو، چې بيا وروسته يې د بت پرستۍ مخالفت وکړ. هغه، د شپاړلس کلنۍ په عمر کې يو کتاب [تحفته الموحدين] فارسي ژبې باندې وليکی (سريزه يې په عربي کې وه) او پر بت پرستۍ يي ډېري نيوکې کړي. ناڅاپه، د کتاب په سرليک باندې د ده د پلار سترګې ولګېدلي؛ نو ورته په غوسه سو او د دوی ترمينځ خبره حتی تر دې ورسيدل، چې رامن موهن رای کور پرېښوده. له دغې پيښې وروسته هم موهن رای د خپل پلار ډېر احترام کوه او دغه رساله يي د هغه تر مړينې وروسته خپره کړه.

رام موهن رای د برتانوي حکومت ډېر سخت خلاف وو، خو کلکته کې له اوسيدلو وروسته کله چې ده انګليسي قوانين مطالعه کړل؛ نو وې منله چې [د پرديو د غلامۍ پړه] د انګليسي زده کړي او لويديځ علومو په ترسره کولو پرته ناشونې ده، نو ځکه خو ده انګليسي ژبه زده کړه، کله چې يي انګليسي ژبه زده کړه؛ نو د لويديځ د کتابونو لوستل ورته اسانه شول. هغه د ۱۵ کلونو لپاره له کمپنۍ سره تړلی وو، خو په ۱۸۱۵ ميلادي کې يې تقاعد واخيست او ټول ژوند يي په ټولنيزو کړنو کې تېر کړئ. هغه د نسل پاشلو، بت پرستۍ او د ښځو د سنتي کېدلو ډېر زيات خلاف وو، نو د هندو ټولنې د سمون لپاره هغه د برهمو ټولنه جوړه کړه او په هندو ټولنې کې يې د خرافاتو له منځه وړلو لپاره د پام وړ ښه کارونه ترسره کړل.

په ۱۸۱۳ ميلادي کې، کله چې د کمپنۍ اصول نامه نوې کېدل، نو په پارلمان کې [د ادب د پرمختګ او د هندوستان ليکوالانو ته ډېر کار وشو او د دوی د تشويق لپاره يې هر کال د ۱۰۰۰۰۰ پونډو وعده وکړه]. خو د کمپنۍ مديرانو د لس کاله لپاره دغه تړون ته کومه پاملرنه ونه کړه. په ۱۸۲۳ ميلادي کې، کله چې په لومړي ځل، د زده کړي کميسيون جوړ شو، نو د اتلسمې پيړۍ په جريان کې يې دغه پيسې په ختيځ علوم او السنه باندې خرڅ کړل او د کلکتې د مدرسې په څير د سانسکريټ لپاره د کالج جوړولو پريکړه وشوه. راجه رام موهن رای د دغې پريکړې مخالفت وکړ.

ده، چې د جنرال لارډ ايمبرسن مخې ته کوم وينا وکړل، نو همدغه يوه وينا د ټولو روښانفکرو هنديانو استازولي کوي. راجا رام موهن رای (د راجا خطاب ورته دويم اکبر شاه ورکړی وو، خو انګرېزانو دغه خطاب هم ونه منه) په دغه تاريخي نسخې کې ليکلي ول:

«د سانسکریټ کالج زده کوونکي به هغه د سلګونو پیړیو پخوانۍ خبرې لولي، چې اوس له ځانه هم ډېر شیان پرې اضافه شوي. که د برتانوي پارلمان خوښه ده، چې دغه هیواد دې یوځل بیا د جهالت خواته مخه کړي، نو د سانسکریټ زده کړې پرته کومه بله لاره هم نشته، خو که وکتل شي چې د حکومت موخه د سیمه ایزې آبادۍ سمون او پرمختګ دی، نو پکار ده چې د زده کړو یو روښانفکره او آزاد سیستم رامنځته کېدو ته کار وشي، چې پکښې ریاضي، طبیعي فلسفه، کیمیا، علم الابدان او نور ګټور ساینسي علوم نغښتي وي. په یادو پیسو باید له اروپا څخه ځیرک او پوه استادان راوړل شي او کالج ته ځینې د اړتیا وړ کتابونه، آلات او ډېري نور شیان چمتو کړل شي.»

لارډ ایمبر سن، د راجا دغه ډول تجویز رد کړ او د سانسکریټ کالج جوړ شو، خو ځینو روښانفکرو د خپلو شته امکاناتو په واسطه د لویدیځ په څېر زیات ښوونځي او کالجونه ورغول او د انګلیسي ژبې د کتابونو د چاپ او پلورلو لپاره یوه« سکول بُک ټولنه» هم جوړه کړه. کتاب خپروندیې ټولنې د دوو کلونو په ترڅ کې له ۳۱ زره څخه زیات کتابونه وپلورل، خو په مقابل کې دولتي کمیسیون په دریو کلونو کې د عربي او سانسکریټ دومره کتابونه هم ونه پلورل، تر څو د چاپ لګښت یې بیرته را وباسي. دهند په لویې وچه کې، که څه هم ترټولو مخکې د نویو افکارو څرک په بنګالیانو کې ولیدل شو؛ نو دا دوی د ژورنالیستي کړنو پایله وه. دا څرګنده وه، چې ټولو غوښتل له تیارو ووځي؛ ځکه له پخوانیو علومو او السنې څخه تر پوزې راغلي ول.

له دې ورسته انګرېزانو په ۱۸۰۳ میلادي کې آګره او ډیلي هم تر خپلې ولکې لاندې کړه. دویم اکبر شاه ته، په ډیلي کي د برټانویانو د حکومت تر پیلېدو وروسته، هر کال اته سوه زره تقاعد ورکول کیده. هلته هم د انګلیسي ژبې او لویدیځو علومو خبري پیل شوې؛ ځکه دا یو واضح حقیقت وو. دغه خدمت ډیلي کالج ترسره کړ. ډیلي کالج په لومړیو کې په پخواني ډول سنبال وو، چې د نظام الملک آصف جا زوی نواب غازي الدین په ۱۷۹۲ میلادي کې رغولی وو. په ۱۸۲۵ میلادي کې د کمپنۍ په خوښه مدرسه کالج ته واړول شوه. د میاشتې د پنځوسو زرو مرستې تړون لیک شو او یو انګلیس ښاغلی ټیلر پوني په دوه سوه معاش د کالج مدیر وټاکل شو. له دریو کلونو وروسته د ډیلي ولسوال سرچارلس مټکاف په غوښتنه د انګلیسي ژبې یو ټولګی هم جوړ شو. د مولوي عبدالحق له قوله، کله چې په کالج کې د انګلیسي ژبې ټولګی هم ور اضافه شو په خپلو کې یې ډېرې خبرې راغلې، مسلمانانو او هنداوانو دواړو د دې کار مخالفت وکړ. سپینږیرو به ویل، دوی زموږ ځوانان له دین څخه

اړوي او عیسوي دین ته ستر کار شروع دی. دغه ډول ستونزه بنګال کې هم را پیدا شوې وه، هلته د راجا رام موهن رای په څیر یو روښانفکره او ستر مشر شتون درلود. هلته دغه ستونزه راپیدا خو شوه، خو ژر له مینځه یوړل شوه. په لومړي ځل، برهمنو مخالفت پیل کړ، خو دلته مسلمانان مخته ول...... د مسلمانو زده کونکو شمېر په انګلیسي ټولګې کې د تل لپاره کم وو. (عبدالحق, ۱۹۶۲) که ریښتیا ووایو، نو د نیکه ګانو د فکري جمود جزا حتی نویو نسلونو ته هم ورکړل شوه. مولوي عبدالحق د ډیلي کالج په اړه لیکي« که څه هم په لومړیو کې د انګلیسي ژبې د ټولګي ډېر مخالفت وشو، خو په درېو کلونو کې(یعنې ۱۸۳۱ میلادي) د انګلیسي ژبې ویوونکي دریو سوو ته ورسیدل. دا د وخت بدلون وو.» له دې وروسته په ډیلي او آګره کې مشن ښوونځي او په بریلي کې مشن کالج جوړ شو، چې پکښې به لویدیځ علوم په انګلیسي ژبې تدریس کیدل.

د ډیلي کالج په ځانګړې توګه یو سیکولر مرکز وو. هلته د هندوانو، مسلمانانو او عیسویانو لپاره یو ډول نصاب اماده کړل شوی وو. کالج د چا له دین او عقیدې سره هیڅ ډول ستونزه نه درلود. نه هم د یو دین لپاره کار روان وو. واضح خبره ده چې د انګلیسي ژبې په څانګه کې، د لویدیځ علوم او ادب تدریس کیدل، خو د ختیځ په څانګې کې د پخواني نصاب سربیره اصول حکمت، د قوانینو نافذول، د محکمې قوانین، الجبر، ریاضیات، حرکات، میکنکس، کیمیا، طبیعي علوم، اقلیدوس، د المناظر علم، اخلاقي علوم، تاریخ، جغرافیه او طبیعي علومو فلسفه تدریس کیدل.

د ختیځ په څانګه کې، دغه علوم په اردو ژبه تدرس کېدل، خو د دغو علومو لپاره په اردو ژبې کتابونو شتون نه درلود. د دغې نیمګړتیا رفع کولو لپاره د کالج د مدیر ښاغلي تبروس خوځښت (ده په اردو ژبې شعر هم لیکه) ۱۸۴۳ میلادي کې [په سیمه ایزه ژبه د علومو خپریدنې] تر عنوان لاندې ټولنه جوړه کړه. د دغې ټولنې موخه دا وه، چې دلویدیځو علومو انګلیسي ژبې کتابونه، اردو ته وژباړي. مرحوم مولوي عبدالحق چې د ټولنې ژباړل شویو او خپرو شویو کتابونه کوم لړلیک جوړ کړی، نو په دې کښې پورته ذکر شویو ټولو موضوع ګانو باندې کتابونه شتون لري. له دغو کتابونو څخه دغه ګټه واخیستل شوه، چې د ختیځ څانګو زده کونکو سربیره هغو زده کونکو هم څه نا څه زده کړل، چې له انګلیسي ژبې سره بلد نه ول.

د ډیلي کالج زموږ لپاره زیات څه کړي دي. ددغه کالج له برکته د شمالي هند مسلمانان په لومړي ځل د لویدیځ له افکارو سره اشنا شول. د کالج شاګردانو او استادانو چې کله کتابونه اردو ژبې

ته وژباړل، نو دوی دا ثابت کړل چې په اردو کې بهرنيو اشخاصو نظريې شتون لري. د کالج د دغو کړنو په اړه مولوي عبدالحق ليکي: «دغه تر ټولو لومړی مرکز وو، چې پکښې د لويديځ او ختيځ افکار په يوه ځای تدريس کيدل. دغه يوځای والي د نظرياتو د بدلون، په مالوماتو کې د زياتونې او د مطالعې کوونکو جلبولو په سمون کې يو ستر کار وکړ او له دې وروسته يې د يو نوي فرهنګ او دورې اساس کېښوده، بيا يې له دې سره يوه داسې ډله جوړه کړه، چيرته پکښې پاخه روښانفکره او د غوره نظريو لرونکي ليکوالان ټولنې ته وړاندې کړل، موږ به تل د دوی احسانمند وو». د کالج په استادانو کې مولوي امام بخش صهبايي، مولوی سبحان بخش، شمس العلما داکتر ضياءالدين، د ساينسي کتابونو ليکوال ښاغلی رام چندر، ماسټر پياري لال(چې د غالب ملګری او د قصص هند، رسوم هند، تاريخ انګلستان، دربار قيصري او همداسې نورو کتابونو ليکوال، د رساله تاليف پنجاب او لاهور سرمحرر وو)، شمس العلما مولوي ذکاءالله او د زده کوونکو له ډلې، چې يې اردو ادب کې شهرت ترلاسه کړ؛ ډپټي نذير احمد، مولوي محمد حسين آزاد، مولوي کريم الدين د تعليم النسا، ګلستان هند، تذکراةالشعرای هند، تذکرةالنسا ليکوال وو او مير ناصر علي يې يو پياوړی تصحيح کونکی وو. د ډپټي نذير احمد له قوله:

«د مالوماتو ډېروالی، د رايو آزادي، اجتهاد او همداسې نور د زده کړو يوه ښه پايله ده او دغه ټول د ژوند اصلي حقيقت ګڼل کېږي. ما په کالج کې زده کړل، او که زه چيرته کالج ته نه وی ورغلئ؟ نو نن به مولوي وم؛ تنګ نظره، متعصب، ناپوه، د خپل نفس له محوره وتی، د نورو خلکو د عيبونو په لټه کې به وم، خو زه به پخپله غلط وم.»

ترک دنيا به مردم آموزند
خويشتن سيم و غله اندوزند
(نورو ته به وايي چې تاسو دې نړۍ پسې مه ګرځئ او خپله به د مال او دولت ټولوي)

د مسلمانانو ناپوه ملګری، د وخت له غوښتنو سره بيخې ړوند او کوڼ. صم بکم عمی فهم لا يرجعون- ما اصابتی من حسنة فی الدنيا فمن الکاج (د دين او نړۍ کومې ځانګړتياوي، چې ما ترلاسه کړې دي هغه د کالج له برکته دي).

دا خبره غلطه ده، چې د انګليسي ژبې او لويديځو علوموسره د عامو مسلمانانو فکرونه بدل شول يا دوی د لويديځ فرهنګ او تمدن په جال کې راګير شول، خو که وکتل شي يوه ريښتنې ډله پيدا

شوه، چې له زړه به یې داسې محسوس کول؛ د لویدیځ د سیکولرو ادارو او سیکولر علومو سره اسلام ته هیڅ ډول گواښ متوجه نه دی او که غواړئ ښه ژوند وکړئ، نو پخوانی خبرې به شاته پرېږدئ او خپلو فکرونو کې به سمون راوړئ.

همدغه مهال، د کمپنۍ په کړنو او عملي حکمت کې هم انقلابي بدلونونه راغلل. اوس هغه یو نړیوال طاقت وو، چې د هند پر ۳۱۲ برخې قابض ول او دوی غوښتل نورې سیمې هم تر خپلې ولکې لاندې راوړي، نو کمپنی اړ وه، تر څو داسې یوه پالیسي جوړه کړي، چې دغه سیمي د تل لپاره تر خپل کنټرول لاندې کړي او خپل قلمرو ته نوره هم پراختیا ورکړي. دوی باید د قوانینو او محکمو لپاره څه ډول نظام جوړوي، د حکومت دولتي ژبه باید څه وي، په ښوونځیو کې د زده کړو وسیله فارسي ژبه وي یا انگلیسي او ښوونیز نصاب دې د ختیځ وي یا د لویدیځ... د کمپنۍ ستر حاکمان په دغو ورځو کې په دوو برخو جلا شوي ول. په پای کې له ډېر بحث وروسته د لارډ میکالي وړاندوینه ومنل شوه، چې ښه پوخ لویدیځوال وو. جنرال لارډولیم بنټنک په ۱۸۳۵ میلادي کې پرېکړه صادره کړه، چې د حکومت دولتي ژبه به له دې وروسته انگلیسي وي نه فارسي، خو په دفترونو او محکمو کې سیمه ییزه ژبه هم کارېدلی شي. د دندې ترلاسه کولو لپاره انگلیسي ژبه ډېره اړینه ده، په ښوونځیو او کالجونو کې به له دې وروسته په انگلیسي ژبې تدریس کیږي او زده کونکو ته به انگلیسي ادب او لویدیځ علوم تدریس کیږي. د مغولو د دورې پوځي قانون درې کاله مخکې رد کړل شوی وو او پرځای یې برتانوي قانون نافذ شو. لارډ میکالي، د پادریانو د تبلیغي کړنو هم خلاف وو. هغه ویل ترکومه ځایه، چې د زده کړو خبره ده، نو حکومت ته اړتیا نشته کوم دین یا مذهب ته کار وکړي، بلکې په پوره توگه به آزاد وي. نو پایله داسې شوه چې په دولتي او خیریه مرکزونو کې به سیکولر زده کړې رواج وي.

په دولتي ښوونځیو کې د سیکولر زده کړو پالیسي ته د مسلمانانو او هنداونو روښانفکره ډلو ښه راغلاست وویل، نو سرسید احمد خان د[دین او عامې زده کړې] تر نامه لاندې چې کوم مضمون په ۱۸۷۱ میلادي کې خپور کړو، پکښې د حکومت له پریکړې سره همغږی دی، هغه لیکي:

«د هند په دولت کې د هرډول مذاهبو/ادیانو پیروان شته او دوی پخپله له یو بل جلا دي، نو له دغې مخې دوینه شي کولای چې یو دین/مذهب ته کار وکړي. موږ له زړه وایو حکومت چې د زده کړو لپاره داسې یو خپلواکه لار غوره کړه او حکومت چې په هندوستان کې د زده کړو لپاره کومې

هڅې ترسره کړې نو دغه دواړه بې مثاله دي او کيداى شي د نړۍ په کچه کوم سيال ونه لري، خو که له دې وروسته هم څوک د زده کړو مخالف وي، نو هغه د حکومت له قدرته وتلې خبره ده، دوى خو داسې کولاى شو، چې خپلې دينې زده کړې جلا کړي، خو داسې يې نشواى کولاى، چې د هندوستان ټول مذاهب/اديان يا دکوم ځانګړى مذهب يا مذاهبو زده کړې رواج کړي». (د سرسيد مقالې،۱۹۶۲، ۱۰۵ مخ)

خو د کمپنۍ سيکولر پاليسي مخلصه نه وه، بلکې پر سياسي استراتيژيو جوړه شوې وه. ځکه خو د لاړډ ميکالي له ټينګار وروسته هم کمپنۍ د پادريانو تبليغي کړنې لا زياتې کړې. انګليس حاکمانو به له دوى سره مرستې کولې، دوى به يې خپلو اتاقونو ته د تبليغ لپاره راوغوښتل او خپل کارګر به يې اړ کړل، تر څو د پادريانو خبرې واوري. سرسيد په خپل مشهور کتاب[اسباب بغاوت هند] (۱۸۵۹ ميلادي) کې د کمپنۍ غير سيکولر پاليسى په اړه ليکنه کې د هر ډول واقعاتو حوالې ورکوي، چې په څه ډول بيوزله ماشومان عيسويان کړل شي،  څه ډول د حکومت پادريان د هندوانو او مسلمانانو د مقدسو شخصيتونو يادونه په خپلو تقريرونو او تحريرونو کې په غلط ډول بيان کړي او څنګه به دوى په ښوونځيو کې له ماشومانو څخه د عيسوي مذهب له کتابونو آزموينې واخلې. سرسيد، د کلکتې لاټ پادري ايډمنډ د يوليک حواله هم ورکوي، په دغه ليک کې دولتي مامورينو ته لارښوونه شوې وه، چې دوى دې عيسوي دين قبول کړي. [زه رښتيا وايم، کله چې دغه نسخې ومونډل شوې، نو زياتره خلک وويرېدل. ټولو باور وکړ، هنديان چې د کوم وخت منتظر ول هغه وخت راغى. اوس په لومړيو کې بايد دغه دولتي مامورين عيسويان شي او بيا به د وخت په تېريدو ټول ولس]. (حالي ا.ح.، حيات جاويده، ضميمه، د هندوستان د پاڅون وجوهات، ۹۰۲ مخ)

په ۱۸۵۷ ميلادي کې که څه هم هندوستان د برتانوي حکومت تر تسلط لاندې وو، خو د هند حکومت په پاليسيو کې کوم بدلون رانغى. بيا هم د هيواد قوانين او اصولونو ته زياته پاملرنه وشوه، ترڅو سيکولر شي. ۱۸۵۹ ميلادي کې د اصولو قانون وضع شو. په دويم کال د هند پوځي قانون وضع شو. په ۱۸٦۴ ميلادي کې، له عدلي او قضايي ارګانونو مسلمان قاضيان او هندو پنډتان وشړل شول، د هيواد د ټولني له نظره له دې وروسته به ټولې پريکړې دولتي قاضيان کوي. په ۱۸۷۲ ميلادي کې، د شهادت قانون وضع شو. په ولآيتونو کې محکمې تر دې له مخه جوړې شوې وې، دغه ټول قوانين د لويديځ له سيکولرو اصولونو څخه اخيستل شوې وې.

خو انګرېزانو هيڅکله هم هندي سياست ته وخت ورنه کړ، تر څو په سيکولر قوانينو پرمختګ وکړي، په لومړۍ ورځ يې د مسلمانانو او هندوانو ترمينځ بيلتون را منځته کړی. «اېل يې کړه او بېل يې کړه» د دوی د پاليسۍ بنسټ وو. دغه نوې پاليسي د مغولو د پاليسيو ضد وه. مغولو حکمانو د خپل سياست اساس د هندوانو او مسلمانانو اتحاد/يوځای والی ايښی وو. دوی نه غوښتل چې دواړه قومونه دې په خپلو کې سره وجنګېږي، بلکې تل به يې هڅه کول ترڅو دوی سره يوځای شي، د يو بل د عقيدو او جذباتو احترام دې وکړي، کوم شيان چې د دواړو ګډه ملکيت ګڼل کېږي، هغه ته دې لا ډېر کار وکړي او پرمختګ دې ورکړي او له کومو خبرو چې دښمني منځته راځي، له هغه دې پرهيز وکړي. مغولو ټولې د نفاق خبرې له مينځه يووړې، چې د هندوانو او مسلمانانو دښمنې يې زياتوه. برعکس، انګرېزانو داسې د نفاق حالات رامينځته کړل چې په پايله کې د هندوانو او مسلمانانو ترمينځ مذهبي مخالفتونه زيات شول. د هند په لويې وچه کې د سيکولريزم د پرمختګ لپاره خنډونه جوړول خپله د برتانويانو سيکولر دښمنه پاليسي وه.

**(۵)**

د هند په لويه وچه کې سيکولر نظرياتو که څه هم پرمختګ وکړ؛ يعنې صنعت، حرفو، د لويديځ په څېر قوانين او په انګليسي ژبې باندې د لويديځو علومو زده کړې عامې شوې، خو سيکولر نظرياتو تر دې له مخه دلته شتون درلودل، اما په بيلابېلو ډولونو! ځکه ټولنيز حالات او فکري غوښتنې جلا وې. د بيلګې په توګه، د اردو او فارسي پخواني ادب کې په ځانګړې توګه شاعري، چې زموږ د جذباتو او احساساتو هينداره ده، سيکولر فکر ډېر پخوانی دی. د دغه ډول فکر موخه د ټولنې هغه عناصر ول، چې د جبر او استبداد ښکار شوي وو او انسان دښمني، تعصب او د تنګ نظرۍ يې داسې يادې کړي، لکه په منځنيو پېړيو کې چې د لويديځ د کليسا وې. زموږ به هيڅ کوم داسې شاعر نه وي، چې د اسلامي زده کړو پيروانو په مقابل کې د ملايانو په اړه، د دوی د هوس او معيشت په اړه، د پيرانو د درواغو او غلطو کړنو په اړه، د محتسبو په اړه، د نصيحتونو د جذباتو په اړه او د ښار د فقهاؤ رياکاريو په اړه لعنت نه وي ويلي، ځکه په دغه دوره کې د سيکولر نظرياتو او جذباتو تبليغ همداسې کيده.

خو د کوم فرهنګ او تمدن پيل چې په ۱۹ پيړې کې روان وو له دغې غوښتنې څه بل ډول وو. د دغو غوښتنو په مقابل کې مرزا غالب تر ټولو لومړی د ډيلي کالج ته لبيک وويل. مرزا غالب (۱۷۹۷

میلادي- ۱۸٦۹ میلادي) یو روښانفکره شخص وو. د هغه له خپله قوله، دی د هغو[خپلواکو] اشخاصو څخه وو. ده به ویل د تیر د هیرولو غم [اه یوې ساه ایستلو زیات وخت] نه نیسي ځکه:

برق سے کرتے ہیں روشن شمع ماتم خانہ ہم

داسې ویل کېږي، چې د سیکولر نظریاتو فکر د کلکتې پاڅون پر مهال د غالب په مغزو کې ځای ونیوه، هلته دی دوه کاله یواځې د خپل تقاعد لپاره پاتې شو (۱۸۲۷ میلادي- ۱۸۲۹ میلادي) خو حیرانونکې خبره دا ده، چې د لویدیځ افکارو بنګال ته د ده تر تګ وړاندې پرې اغېزه کړې وه، خو دغه افکار هله پاخه شول کله چې کلکتې ته ولاړ او د لویدیځ ټولنیز ژوند یې په خپلو سترګو ولیده. ده باور درلود، چې د ختیځ ټولنیز ژوند بیا د رغولو نه دی او انګرېزانو چې کوم نظام له ځان سره راوړی هغه خورا نامي او په زړه پورې نظام دی.

د مرزا غالب کورنۍ په ۱۸۰۳ میلادي کې، چې دی لا د شپږو کلونو په عمر وو، د انګرېزانو باچاهي منلې وه. لارډلیک چې آګره فتح کړه، نو د غالب تره او مشر مرزا نصرالله خان بیګ یې د څلورو سوو پوځ مشر وټاکه او معاش به یې ورکاوه. د مرزا غالب نیکه هم په کمپنۍ کې یو ښه وظیفه درلودل او د آګرې په اشرافو کې شمیرل کېده، غالب هم د یوه هټیوال لور سره واده وکړ. ده، چې په ۱۸۱۱ میلادي کې په ډيلي کې مېشت شو، نو یې له انګرېزانو سره د راشې - درشې زیات فرصت وموند. ده، د ښاغلي اینډمنټن، ښاغلي فریزر او له نورو انګرېزانو سره اړیکي ټینګې کړې، تر څو له دوی ګټې واخیستل شي، خو په دغه ملګرتیا کې د ده مزاج ډېر تغیر وکړ. له دې پرته یو عام وګړی هم د انګرېزانو او د مغولو د دورې پرتله کولو وروسته دغې پایلې ته رسیدلی شو، چې د ختیځ ډیوه ورو - ورو مړه کیږي او هیڅکله به هم نوره ونه ځلېږي:

کیا شمع کے نہیں ہیں ہوا خواہ اہل بزم
جب غم ہی جاں گداز ہو، غم خوار کیا کریں

دغه ډول ټولنیز نظام د نړۍ د جګړو پایله وه، خو غالب هیڅکله هم له مرګ ونه ډار شو او هیڅکله هم مرده پرسته نه وو(مرده پرور دن مبارک کار نیست).

کومې خبرې چې د غالب په فکر کې لانیمګړې پاتې وې، په کلکتې کې بشپړې شوې. غالب، چې د کلکتې د آب هوا په اړه یادونه کړې، هغه به د ده شاعري مزاج وو؛ ځکه د آب هوا له نظره که وکتل شي، کلکته د هندوستان تر ټولو خراب ښار وو او لا تراوسه هم دی. د هغه ځای د ګرمۍ، زړه

تنګې فضا او له چټل چاپېریال هم سړی ووېرېږي، خو کوم شی، چې د غالب فکر ته داسې ښایسته کلمې راوستې دي، نو هغه به ګوندې په کلکتې کې د لویدیځ ټولنیز ژوند، له انګرېزانو سره ناسته پاسته، د ښار خوشحالي، زیات نفوس او د خلکو ترمینځ له خندا ګانو ډک ژوند وو، خو که ډیلي ته وکتل شي نو هغه وخت وران، ویجاړ او بې وزله وو. د کاروبار او روزګار څرک هم نه وو، بیوزلي او سخته زیاته مفلسي وه. د غالب په څېر، حساس شخص که د ځمکې او آسمان دغه ډول توپیر ته نه وو ځیر شوی بیا به ډېره حیرانونکې خبره وه. خپل یو ملګري علي بخش رنجور ته د کلکتې په اړه لیکي:

«کلکته څه یو خوندور ښار دی، هرډول هنرمند دلته موندل کېږي او د تقدیر پرته هر شی، چې وغواړې په ارزانه بیه یې موندلی شې».(فارسي)

او کله چې ډیلي ته راغئ، نو خپل یو ملګری چې کلکتې کې اوسي هغه ته لیکي:

«د کلکتې خاوره د نورو سیمو له خاورې ډېره ښه ده. قسم په خدای، که د ښځې او ماشومانو خوښه وه؛ زه به هیڅکله هم له کلکتې چیرته نه تلم».(فارسي)

د فارسي په یوه قطعه[ساقی بزم اګهی] (ساقي د عشق اراده نه لرم) کې یې پر بیلابېلو موضوع ګانو باندې بحث کړی. په خبرو - خبرو کې د بنارس او پټنه یادونه کوي، نو ساقي یې د دغو ښارونو ډېر تعریف کوي. [بیا ما د کلکتې په اړه ترې پوښتنه وکړه؛ ویې وویل: «که چیرته کلکتې ته اتم اقلیم ووایم، تېروتنه به نه وي. ما ترې وپوښتل د هغه ځای خلک څنګه؟ هغه وویل د هر یو هیواد او د هر ډول هنر خلک دي.»

حال کلکته باز جستم گفت
باید اقلیم هشتمین گفتن
گفتم آدم بهم رسد دردی
گفت از هر هر دیار، از هر فن

غالب، په کلکتې کې د ورځپاڼو لوستلو شوق پیدا کړ. له دې وروسته د هغه علم نور هم زیات شو. په هغه ورځو کې، له کلکتې د فارسي ژبې دوه اونیزې ورځپاڼې خپریدې. یو د منشي سدا سکھ[جام جهاں نما] بل د راجه رام موهن راۓ[مراةالاخبار] وو. جام نما کې خو د غالب هغه بحثونه هم چاپ کېدل، چې د قتیل له شاګردانو سره به یې کول. مراةالاخبار د غالب د نظریاتو ټولګه وه، چې

د ده په څېر ډېر ښه وو او يواځينی موخه يې[د سومو پرېښودل] ول. ډېره حيرانونکې خبره ده، چې د مراةالاخبار له مطالعې وروسته د مرزا غالب باور په وحدت الوجد نور هم زيات شو.

مرزا غالب چې د نثر ليکلو لپاره يوه نوې لاره پرانيستل، هغه هم سل په سله د لويديځ وو. د مسجع پر ځای يې ليک روان کړ، د مکتوب عليه يادونه او د ليک په سر يې مخاطب د ادرس يادونه او تاريخ هم دود کړ. دغه ټولې خبرې له انگليسي ژبې څخه تقليد وو. هغه په سيي مانا يو خپلواک شخص وو. له مذهبي تعصباتو ليري، د دودونو له قيده آزاد، د رنگ او نسل له خبرو ليري، د نيکه گانو له دين څخه بېزار، د عقل تابع او له منقولاتو ليري. داسې روښانفکره شخص په ډېرې لږې مودې کې د لويديځ افکار په سيي مانا وڅېړل او زيات څه يې ترې زده کړل.

ده چې د سرسيد احمد خان په تصحيح شوي[اکبري قانون] باندې کوم تقريظ وليکه، له مطالعې وروسته به د هغه له فکر سره سم سيي آشنا شئ او هيڅ کوم ډل شک به مو په زړه کې پاتې نه شي. دغه د ۱۸۵۵ ميلادي پيښه وه. تر دغه وخته پورې سرسيد په کمپنی کې شپاړلس کاله وظيفه تر سره کړې وه، خو فکر يې لا ډېر پخوانی وو. د تقريظ په برخه کې غالب د سرسيد په اړه ليکي، چې [يو بينا شخص] په خپل خريلي سر بږمنځ تير کړه، خو د [اکبری قانون] تصحيح د [غالب لپاره ډېره د وياړ خبره وه]. دوی له دغه کاره کيدای شي، ډېر خوشحال وي، خو زه د[ريا قانون] ډېر سخت مخالف يم. زه د ده کار ته کوم ښه کار نه وايم، يانې د افرين ورکولو حق نه لري. ځکه زه د نوي پنځوني منونکی يم او اوس زه له[قانون] څخه ليري يوه خبره کوم او هغه داسې چې دی راوينښ شي او له [پخواني فکر] سره مخه ښه وکړي، هغه ليکي:

صاحبان انگلستان رانگر
شيوه و انداز انيان رانگر
تاچه آئين ها پديد آور ده اند
آنچه هرگز کس نه ديد، آورده اند
زين هنرمندان هنر بيشی گرفت
سعی بر پيشيناں پيشی گرفت
حق اين قوم است [آئين] داشتن
کس نيارد ملک به زين داشتن

داد و دانش را بهم پیوسته اند
هند را صد گو نه آئین بسته اند
آتشی کز سنگ بیرون آوردند
ای هنر مندان زخس چو آورند
تا چی افسوس خوانده اند انیان بر آب
دور کشتی راهمه راند در آب
گه دخان، کشتی به جیو می برد
گه دخان، گردو به هامو میبرد
از دخان، زورق به رفتار آمده
و موج ها هر دو بی کار آمده
نغمه بی زخمه ازساز آورند
حرف چو طائر به پرواز آوردند
است،نمی بینی که این دانا گروه
در د دم آرند از صد گروه
می زند آتش به باد اندر همی
رو به لندن کا ندرا رخشنده
شهر روشن گشته درشب بی چراغ
کاروبار مردم هوشیار را ببین
در هر آئین صد نو آئین کار ببین
پیش ای آئین که دارد روزگار
گشته آئین دیگر تقویم پار
است، ای فرزانه بیدار مغز؟
درکتاب این گونه آئین های نغر
چو چنین گنج گهر بیند کسی
خوشه زا خرمن چرا چیند کسی

مبدا فیاض را مشمر نجیل
نورمی ریزرد طب هازان نخیل
مرده پروردن مبارک کار نیست
خود بگو، کان نیز جز گفتار نیست

په دغه نظم کې مرزا غالب اشارتاً هم سرسید احمد خان ته نه وايي، چې د لویدیځ فرهنګ دې خپل کړي. دی د انګرېزانو له پوښاک او خواړو سره کومه مینه نه لري، یعنې دا یې نه خوښېږي. دی داسې هم نه وايي، چې خپله مورنۍ ژبه هیره کړئ او انګلیسي ژبه زده کړئ. ځکه غالب له ختیځ فرهنګ سره ځانګړې مینه لري او د عمر تر پایه یې دغه فرهنګ ساتلی وو، خو هغه غوښتل چې زموږ د افکارو انداز بدل کړي. هغه د مړو پالني ډېر سخت خلاف وو. خپل مشهور غزل کې د کلکتې ښار کې د مېشت کېدو پر مهال ۱۸۳۰ میلادي کې لیکي:

رفتم، که کهنگی زتماشا بر افگنم
دربزم رنگ وبو نمطی دیگر افگنم
دورجد اهل صومعه ذوق نظاره نیست
ناهید رابه زمزمه از منظر افگنم

پخوانی فکر څه، هغه خو غوښتل چې د[آسمان قوانین] هم بدل کړي( بیا که قاعده آسمان به گردانیم)، د فیوډالیزم له نوي اصطلاح سره که څه هم دی اشنا نه وو، خو په شهر کې د [کهنگی] څخه موخه یې د فیوډالیزم ناوړه نظام وو. هغه له لویدیځ تمدن سره همغږی وو او په لویدیځ کې چې کوم نوي صنعتونه کشف شوي ول، ده غوښتل سرسید احمد خان پرې پوه کړي. د ډېرو په سکرو او برېښنا چلیدونکې ماشینونه، بریښنایي کیبلونه، ګاز.... او همداسې نور خو د غالب له نظره له دغو شیانو څخه هم ډېر اړین، د لویدیځ قانون دی یعنې د حکومتي نظام چې د عدل او انصاف پر اصولو جوړ دی. په اتلسمې پیړۍ کې د مغولو د سلطنت له زوال وروسته هیواد کې چې ملک الطوایفي، بې قانوني او فساد ته مخه وکړه؛ نو هغه وخت د برتانیې د قانون نافذولو لپاره چې مرزا غالب څومره هڅې کړي، نو ویلای شو چې هغه په حق وو. د دغه نوي قانون له مخه اکبري قانون سل په سله د جنترۍ حیثیت درلود.

سرسید احمد خان د غالب دغه ډول تقریظ خوښ نه کړ، نو کتاب کې یي ځای ورنه کړ. هغه د انګرېزانو ملګری وو، خو د ده نظریاتو ته که وکتل شي، نو سل په سله پخواني ول او څومره کتابونه، چې ده په هغه دورې کې لیکلي، نو ټول یا په پخواني فکر لیکل شوي یا د مذهبي موضوع ګانو په اړه (نظامي, سید احمد خان، ۲۵ مخ) .د سرسید احمد خان دغه ډول فکر حتی تر ۱۸۶۲ میلادي پورې پاتې شو.

سرسید احمد خان(۱۸۱۷ میلادي- ۱۸۹۸ میلادي) د ډیلي په یوې اشرافي کورنۍ کې زېږیدلی وو. پلار یې سید متقي(مړینه ۱۸۳۸ میلادي) د باچا له ځانګړو اشخاصو څخه وو. نیکه یې خواجه فریدالدین( مړینه ۱۸۲۸ میلادي) یو ډېر ستر عالم وو. د کلکتې په مدرسې کې په ۷۰۰ روپو معاش د کمپنۍ له خوا ناظم ټاکل شوی وو. انګلیسان د ده له پوهې دومره اغېزمن ول، چې دوه ځله یې د سفیر په توګه واستوه، لومړی ایران ته او بیا برما ته. په ۱۸۱۵ میلادي کې، دویم اکبر شاه د مالیې وزیر وټاکه، خو د دربار له فساد ډېر په تنګ راغی او استعفی یې ورکړه. سرسید احمد خان په داسې یوې روښانفکره کورنۍ کې ستر شوی وو. د ده، د سوانح لیکونکي له قوله سرسید احمد خان به دربار ته ډېر تګ او راتګ کاوه او هغلته له[راجا رام موهن راۓ سره اشنا شو].... سرسید احمد خان د خپل نیکه له قوله لیکي [راجا رام موهن راۓ یو ډېر ستر شخص وو. هغه ډیلي ته راغی او د باچا خدمت یې کوه، ځکه خو باچا ورته د راجا خطاب ورکړ او په پای کې د باچا د وکیل په حیث لندن ته ولېږدول شو. راقم به هر کله دربار کې ورسره لیدل کول (هغه وخت د سرسید احمد خان ۱۳ کلن وو) او د ډیلي د خلکو باور وو، چې ده د اسلام خواته زیاته علاقه لرله]. (د سرسید مقالې، ۱٦ ټوک، ٦٦۳ - ٦۴ مخونه, ۱۹٦۵) کله چې دویم اکبر شاه د ده دغه صفتونه واوریدل، نو راجا موهن راۓ یې ډیلي ته راوباله او لندن ته یې دخپل سفیر په توګه ولېږئ، چې د باچا تقاعد زیاتولو لپاره لابي وکړي. راجا رام موهن راۓ په دغه کار کې بریالی شو او د باچا په تقاعد کې یې دري سوه زره زیاتې کړې، خو هېواد ته پر لار برسټل کې له ناروغۍ وروسته ومړ. جسد یې هغلته د سیند څنډې ته وسوځل شو. د افسوس خبره ده، چې زموږ نوی نسل د عربي او فارسي دغه ستر عالم، د بت پرستۍ دښمن او د مغولو د سلطنت وفادار له نامه سره اشنا نه دي، که وکتل شي زموږ د ماشومانو په کتابونو کې زموږ اتل څوک دی؟ احمدشاه ابدالي؛ هغه چې د سرحد، پنجاب او سندھ مسلمانان یې په کراتو ولوټل او ووژل.

په ۱۸۳۸ میلادي کې سرسید احمد خان، د ډیلي د والي د دفتر رییس وټاکل شو. له لنډې مودې وروسته د آګر د ولسوال په دفتر کې، د رییس مرستیال وټاکل شو. له دریو کلونو وروسته هغه په مین پوري کې وټاکل شو، بیا په فتح پور سیکر، ډیلي، بجنور، مراد آباد، غازی پور، علی ګړ او بنارس کې په بیلابېلو څوکیو یې ماموریت ترسره کړ. د غدر په زمانه کې یې بجنور کې د انګرېزانو لپاره زیات خطرونه ومنل. په مراد آباد کې یي د بیوزلو لپاره زیات خدمات ترسره کړل. په ۱۸۶۳ میلادي کال یې غازي پور کې یوه ساینسي ټولنه جوړه کړه، تر څو د لویدیځ علوم کتابونه له انګلیسي ژبې اردو ته وژباړل شي. په غازي پور کې یې یو مکتب جوړ کړ، چې د انګلیسي ژبې کتابونه به هم پکښې تدریس کیدل. په ۱۸۶۹ میلادي کې لندن ته ولاړ او دهغه ځای د زده کړي سیسټم په ځانګړې توګه د آکسفورډ او کیمبرج پوهنتونونو د ښوونیز نصاب یې په ښه توګه مطالعه کړل. په لندن کې یې د خپلو د نظریاتو خپرولو لپاره د یوې رسالې شروع کولو پرېکړه هم وکړه او کله چې په ۱۸۷۰ میلادي کې له لندن راستون شو، نو د فرهنګ اخلاق په نامه یې یوه رساله هم خپره کړه. د مسلمانانو د لوړو زده کړو لپاره یې په ۱۸۷۳ میلادي کې یو کالج هم جوړ کړ او په ۱۸۷۵ میلادي کې یې ایم اې او علي ګړ کالج جوړ کړ. کال وروسته یې تقاعد واخیست، بیا علی ګړ ته ولاړ او ۱۸۹۸ میلادي کې ومړ.

سرسید ته د« لویدیځ د سپي» طعنې ورکول، نن زموږ د هر ادبي لیکوال شعار ګرځېدلی. دوی، د سرسید د افکارو یادونه په داسې سختو الفاظو کوي، یعنې دوی داسې انګېري چې موږ ټول ژوند د لویدیځ فرهنګ او لویدیځ نظریاتو خلاف هځې کړي او د لویدیځ له فرهنګ سره بیخي اشنا نه یو، خو که وکتل شي د لویدیځ فرهنګ پیل دغو خلکو کړی. سرسید خو یواځې د لویدیځ د روښانفکرو سره اړیکې جوړه کړې وي، خو زموږ دغه ښاغلي د لویدیځ هر ډول عمل ښه ګڼي او هر یو مظلوم په دار کوي.

سرسید، د مسلمانانو د اصلاح او پرمختګ لپاره هغه مهال پاڅون وکړ، چې د هندوستان ځمکه په مسلمانانو را تنګه شوه او انګلیسان د دوی د وینو تږي ول. دوی به په توپونو وویشتل شول، په دار به شول، د دوی ځمکې به ضبط کړل شوې، دوی ته دندې نه ورکول کیدې او د روزګار ټولې لارې پرې بندې شوې.

سرسید خپل منصب یواځې د کتابونو په لیکلو نه وو جوړ کړئ، بلکې تر شا یې د دیرشو کلونو تجربه وه او د هندوستان د ټولنیز ژوند ژوره کتنه او مطالعه وه. هغه ویل که د خلکو ژر تر ژره اصلاح

ونشي، نو مسلمان به[د اجیر، بزگر، ملازم او کارگر پرته بل کار ونه لري]. سرسید ویل که د لوړې او ټیټې طبقې مسلمانان تر څو د خپلو نیکه ګانو لار پرې نږدي، غیر اسلامي دودونو ته شا نه کړي، یواځې وهمپالنه/په پټو سترګو د شي منلو ته اسلام وواييي او د ملايانو په خبرو عمل وکړي، د انګلیسي ژبې او د لویدیځ له علومو سره کرکه ولري، نو تر دغه وخته به دوی ذلیل او رسوا وي. ده، باور درلود چې د مسلمانانو د دغه ډول فکر او ټولنیز ژوند ناروغۍ درملنه یواځې په انګلیسي ژبې او لویدیځو علومو کېږي. د دغې موخې لپاره هغه ټول ژوند هڅې وکړې.

سرسید دغې موخې ته د رسیدو لپاره دوه لارې غوره کړې وې. یوه حزبي لاره، بل د ابلاغ او تبلیغ لاره. د حزبي هڅو پایله ایم-اې کالج وو چې له مودې وروسته بیا د مسلم پوهنتون په نوم مشهور شو، د دغه پوهنتون برکت وو، چې زیاترو مسلمانانو انګلیسي ژبه زده کړه او د لویدیځ له علومو سره اشنا شول او لا تراوسه زیاتره خلک ترې ګټې پورته کوي. ده، د خپلو د نظریاتو خپرولو او د مسلمانانو فکري خوځښت لپاره یې[فرهنګ اخلاق] خپور کړ، چې د هغه وخت ترټولو اغېزمن رساله وه. ده د خپلو دغه ډول فعالیتونو په پایله کې نه یواځې د زیاترو خلکو ملاتړ ترلاسه کړ؛ بلکې په نولسمه پیړۍ کې یې د زیاتر ځانګړو لیکوالانو او پوهانو علمي ملاتړ هم ترلاسه کړ. د نواب حسن الملک، مولانا شبلي نعماني، ډپټي نذیر احمد او مولانا حالي په څیر د اردو ژبې پیاوړې لیکوالان د سرسید د ټولنې ځلانده څېرې دي.

سرسید، چې په کومې جذبې د انګلیسي ژبې او لویدیځ علومو ملاتړ وکړ، په همدغه جذبې یې د عربي مدارسو او مذهبي زده کړو مخالفت وکړ او داسې یې څرګنده کړل، چې په دغه وخت کې مذهبي زده کړې د مسلمانانو لپاره بې ګټې دي. د مذهبي زده کړو په ټینګار سره هغه لیکي:

«اوس زه په ډېر احترام دغه پوښتنه کوم، لا تر اوسه چې کوم دیني کتابونه پاتې دي او تر موږ را رسیدلي دي او موږ یې لولو، په دغو کتابونو کې کوم کتاب داسې دی، چې د لویدیځې فلسفې او د معاصر علومو پر مسایلو یې له مذهبي نظره ټینګار کړی وي. د اوو آسمانونو پر شتون، چې کوم دلیلونه وړاندې شوي، د دغې په مقابل کې کوم مذهبي کتاب ځواب وړاندې کړی دی. د ځمکې د حرکت په اړه چې کوم دلیلونه وړاندې شوي، د دغو دلیلونو ځواب له چا وپوښتل شي؟ د څلورو عنصرنو په اړه، چې کوم غلط اثبات شوی دی نو اصلي ځواب یې له چا وپوښتو؟.... بس په دغه حالاتو کې، د دیني کتابونو نه لوستل ترلوستلو لوړه درجه لري. که ریښتیا هم مسلمان، مسلمان وي او خپل مذهب

ریښتینی ګڼي، نو میدان ته دې راښکته شي، د دوی علماوو چې له یوناني فلسفې سره کوم ناوړه چلند کړئ، دغه ډول چلند دې د لویدیځ له فلسفې سره هم وکړي. بیا به د دغو کتابونو لوستل ګټور وي».
(ایضا، لومړی ټوک، ۹۷ ـ۹۸ مخونه, ۱۹٦۲)

خو دیني علماوو کې داسې څوک نه وو، چې دغه چیلنج قبول کړي، ځکه [ملا، اهل حدیث ټول د تقلید په زنځیرونو کې راګیر دي او دوی د اجتهاد لاره پرېښودلي ده. بس هر یو په تیرو باور لري او هیڅ ډول هڅه نه کوي، چې نوي څه کشف/ زده کړي ].( ۲۷۳ مخ, ایضا)

د سرسید موخه دا وه، چې د منقولاتو په پټو سترګو د منلو پرځای..... چې د ملایانو اساس ګرځېدلي. موږ ته پکار ده، چې پرخپلو عقایدو او افکارو غور وکړو او له عقل څخه کار واخلو ځکه[عقل داسې یوه وسیله ده، چې د ټولو خبرو اصلیت/ حقیقت څرګندوي او انسان واقعیت ته رسوي]. (ایضا، ۵ ټوک، ۲۵۱ مخ, ۱۹٦۲) خو عقل باید څه ډول علم ته ورسوو؟ سرسید ځواب ورکوي، چې:

«پخواني دیني کتابونه او مدرسې که څه هم دغه وړتیا نه لري، خو په معاصرو ساینسي علومو کولای شو خپل عقل ته سالمه غذا ورکړو، ځکه ساینسي فکر سل په سله د عقل مطابق دی او د طبیعت د قوانینو او پېښو حقیقي سپړنه کوي. ساینسي کشفیاتو او نظریاتو، موږ ته د هستۍ اصلي حقیقت راڅرګند کړی. نو موږ ته پکار ده، چې خپل عقاید او افکار له لویدیځو علومو سره پرتله کړو. دوی له ساینسي علومو داسې پایله اخیستي، چې د طبیعت قوانینو ته کوم بهرنۍ طاقت بدلونه شي ورکولای او نه هم کومه مداخله کوي، بلکې په نړۍ کې چې څه پېښیږي که څه هم اړیکه یې له مادي شیانو سره وي، یا انساني ټولنې سره، ټول دنیاوي اسباب دي. نو د مسلمانانو دنیاوي مسئلې په دعاوو، تعویذونو، نذرونو او قربانیو نه حل کېږي، بلکې د خلاصون یواځینۍ لاره یې دا ده، چې دغه ډول باورونه له مینځه ولاړ شي. که موږ د لویدیځ علوم، افکار، فرهنګ او تمدن خپل کړو، نو د نورو قومونو په څېر به پرمختګ وکړو.»

د مسلمانانو د عقیدې اساس، قرآن او حدیث دی، خو د سرسید په خبرو کې حدیث ډېر کم لیدل کېږي. د ده له نظره، د احادیثو له نقلولو څخه په مسلمانانو کې تفرقې زېږي او د کرکې تخم شیندي. هغه د خپلو د خبرو په ټینګار کې د حضرت عمر او حضرت ابوبکر صدیق د پریکړو حواله ورکوي او لیکي:

«حضرت ابوبکر خلک راټول کړل او ورته یې وویل، تاسو د خدای د رسول زیاتره حدیثونه نقلوئ، په دې کې اختلاف کوئ، ځکه به له تاسو وروسته خلک تر دې هم ډېر اختلاف پکښې کوي، نو تاسو ته پکار ده چې د خدای د رسول حدیثونه مه نقلوئ. که څوک له تاسو وپوښتي نو ځواب ورکړئ، چې ستاسو او زموږ مينځ کې د خدای کتاب یعنې قرآن دی.... ویل کیږي، پخپله حضرت ابوبکر چې زیاتره حدیثونه یې راټول کړي ول، ویې وسوځول».

«حضرت عمر هم زیاتره وخت خلکو ته ویل، چې د نبي کریم ص حدیثونه مه نقلوئ او ویل به یې حسبنا کتاب الله، حتی یو ځل یې درې عالمان او فقها یعنې ابن مسعود، ابودردا او ابو مسعود انصاري، چې د نبي کریم ص زیاتره حدیثونه یي نقلول، زنداني کړل»./ (ایضا، لومړی ټوک، ۱۹۱ مخ) دی زیاتوي:

«له دې وروسته زاهدین او شایقین را پیدا سول، دوی به هم خلک زهد، ریاضیت او عبادت ته رابلل او د دوزخ د عذاب د وېرې په اړه به یې خلکو ته ضعیف حدیثونه وړاندې کول او په وړوکو وړوکو اعمالو به یې خلکو ته د جنت وعدې ورکولې او په وړو ګناهونو به یې خلکو ته دوزخ ته د تلو وعظ او تقریرونه کول. دغه ټولې خبرې د کتابونو په بڼه را ټولې کړل شوې».

سرسید د قرآني آیتونو تفسیر په عقلي او ساینسي بنسټونو ودروئ. ده به ویل: [د خدای قول او فعل باید یوشان وي]. (ایضا، لومړی ټوک، ۹۸ مخ) د ده له نظره[د خدای قول/خبرې یعنې مذهب او د خدای فعل یعنې فطرت، ژوندي موجودات دواړه یو دي]. ( ۲۸۸ مخ, ایضا) په دواړو کې تضاد نه شي کیدلای. پخوانیو به هم د دغو اصولو پابندي کوله او د ژوندیو موجوداتو په اړه، چې دوی فکر کاوه او کوم څه چې به حقیقت درلودل، نو د هغو له مخې به یي د قرآن تفسیر لیکه. د هستۍ حقیقت، چې په قرآن کې ذکر شوی، په همدغه ډول تورات او انجیل کې هم ذکر شوی او د عربو عقیده هم دغسې وه، نو دغو مفسرینو د قرآني آیتونو د باطني مانا او مفهوم پرځای د دغو آیتونو ظاهري معناوې او مفهوم ذکر کاوه. د سرسید موخه دا وه، چې دنیاوي علم خو اوس ډېر پرمختګ کړی او تر ډېره پخوانۍ خبرې ناسمي ثابتي شوي، نو موږ ته پکار ده چې د قرآني آیتونو تفسیر د نویو مالوماتو له مخې وکړو. برعکس، دیني علماء بیا وایي، دغه نوي ساینس پوهان چې د هستي په اړه کوم مالومات راټول کړي دا له قرآن سره ټکر لري. د خدای اقوال/خبرې خو هیڅکله هم غلط کیدلای نه شي؛ نو د ساینس نظریات ټول غلط دي. سرسید د دغه منطق خلاف دی او نه یې قبلوي. هغه به ویل، د هستۍ

په اړه، د ساینس خبرې ریښتیني دي او ټول ثبوت شوي. نو موږ ته پکار ده، د خدای د خبرو مانا او مفهوم د ساینس له مخې تشریح کړو.ځکه هغه د هستی پنځونه، آدم، حوا، آسمان، انبیا، د وحیې او الهام حقیقت، فرښتې، جن او شیطان، لوح او قلم، د تقدیر لیک، جبر او اختیار، د معراج معجزه او کرامات، لمونځ او دعا،،، او همداسې نورو عقلي شرحې یې کړې. د حضرت موسی، حضرت عیسی، حضرت نوح او نورو انبیاوو کیسې، چې د طبیعیت د قانون خلاف مالومیږي، لکه ید بیضا، له امسا، ښامار جوړېدل، د فرعون د لښکر غرقېدل، د موسی له خدای سره خبرې کول، د من اوسلوا نازل کیدل یا دعیسی په ورکتوب کې خبرې کول، د مړو ژوندي کول او د ړاندو بینا کیدل، د دغو خبرو تفصیل هم سرسید په یو بل ډول کړی. په قرآن کې ویل شوي، چې د غل باید لاس غوڅ شي خو سرسید به ویل دغه جزا لازمي نه ده [ځکه که لازمي وه، نو فقهاوو به دیت نه رامنځته کاوه او نه به هم د صحابه کرامو په وخت کې زیاتره غله زنداني کیدل]. مولانا حالي په حیات جاوید ۵۱ مخ کې هغو کړنو ته اشاره کړې، چې له وجې یې سرسید د دودیزو اسلامي عقایدو مخالفت کړئ او د دغو په اړه یې ساینسي او عقلي شرحي کړي.

«د سرسید فکر سیکولر وو. هغه دیني چارې له دنیاوي چارو څخه جلا کول. ده په دغې موضوع له مرگ څخه مخکې یو مضمون هم لیکلی. د بحث پیل یې د موسی له تورات څخه کړی، چې دنیاوي احکام زیاتره پکښې موندل کیږي او داسې پایله اخلي، چې [د حضرت موسی ټول دنیاوي احکام د یو انسان په څېر دي، چې د ځینو پوهانو له نظره مناسب وخت، حالات او د قوم مال وي،] خو بني اسرائیلو ټول دنیاوي احکام، چې په حقیقت کې یې له دین سره کوم ډول تړاو نه درلود، له دین سره گډ کړل او بیا یې ورته اهداف پرېښودل، یوازې په خوله به یې پیرو ول، خو په عمل کې یې هیڅ هم نه کول، په همدې توگه ترې د یهودیت دین جوړ شو.» (د سرسید مقالې، ۵ ټوک، ۱، ۳ مخونه)

د اسلامي فقهاوو دا هم لویه تیروتنه ده، چې دنیاوي او دیني چارې یې سره یوځای کړي. په اړه یې سرسید لیکي:

«د ټولو عربو قبیلو دا عادت وو، چې کوم سړی به یې شیخ یا د قوم ملک ټاکه، نو په ټولو دنیاوي چارو کې به یې د هغه اطاعت کاوه او د ده په حکم به مخ ته تلل. دا خو یوه طبیعي خبره ده، چې د ټول عرب قوم مشر/ملک نبي کریم ص هم د دوی په دنیاوي چارو کې ښکېل وو او نبي کریم

ص اړ وو، چې دغه دنیاوي مشري هم ومني، خو لکه څنګه چې په موسی کې دوه منصبونه جلا - جلا ول، دغه ډول په نبي کریم ص کې هم دوه منصبه جلا - جلا ول.»

د دنیاوي مشرۍ له نظره نبي کریم هم د حضرت موسی غوندې له خپلو صحابه کرامو سره مشورې کولې. د وخت او د حالاتو مطابق به یې حکم صادروئ او یا خو د یهودیانو له پیروي څخه یا د داسې اړینې پایلې له نظره چې پورته ذکر شول، نبي کریم ص هم که هر څه دنیاوي چارو په اړه ویلي یا کړي، د الهي احکام ومنل شول او خلکو هم د'' وانتم اعلم بامورو نیاکم له مخې تسلیم کړل.

مسلمانو علماوو کټ - مټ د یهودو پیروي کړې او ټول دنیاوي احکام، چې له دین سره نه ول تړلي یې په دین کې شامل کړل او بیا د یهودیانو له تقلید څخه، د دغو احکامو اصلي موخې یې پرېښودې او د هر آیت لفظي مانا ته یې د اسلام نوم ورکړ. ( ۳ -۴ مخونه, ایضا )

له دې وروسته، سرسید د علماوو په اړه بحث کوي، چې په مذهب کې یې د پایڅو له پورته کولو سره جنت ورکول کېږي او د پایڅو له ښکته کولو سره دوږخ. «د انسانانو د ټولو بدبختیو اساس دغه دی چې دنیاوي چارې له دیني مسئلو سره یوځای کوي». هغه په خپل سیکولر فکر دومره ولاړ وو، چې ویل یې: «دنیاوي معاملات له دیني معاملاتو سره یوځای کول ستر لیونتوب دی، ځکه د دیني احکامو قانون له دنیاوي احکامو سره خورا توپیر لري...... د ټولنې تمدن چې ورځ تر بلې تغیر مومي، نو هغه په دیني احکامو کېنه شي داخلېدلی». ( ٦ مخ, ایضا )

او د مضمون پای په دغو خبرو کوي، چې د قرآن هره یوه کلمه له دیني احکامو سره هیڅ ډول سمون نه خوري. که زه د خپل هم نام ملا احمد جونپوري تفسیر قبول کړم، نو یواځې پنځه سوه احکام پکښې دي او په حقیقت کې دومره هم نه دي. نو دنیاوي چارې په قرآن کې ذکر کیدل د دغې خبرې دلیل نه شي کېدلای، چې دنیاوي معاملات دې هم مذهب ته ور داخل کړل شي.

د سرسید د مقالو خپریدل په [فرهنګ الاخلاق] کې پیل شول نو په زړې پالي طبقې کې غوغا جوړه شول او «اسلام په خطر کې دی» خبرې یه یې کولې. په سر سید پسې یې پروپاګندې پیل کړې. چا به ویل سرسید عیسوي شو، چا به ویل ملحد شو، کافر او دجال شو، نو د ده وژلو فتواء یې ورکړل. د ده د کالج لپاره چنده ورکول او هلته زده کړې کول یې د ځوانانو لپاره ناروا وبلل. د فرهنګ الاخلاق په مقابل کې زیاتې ورځپاڼې پرانیستل شوي، دوی به ویل له سرسید سره دې څوک نه ویني، نه دې له ده سره خواړه خوري او که هر سرغړونه وکړه، نو هغه هم د اسلام له دایرې څخه وتلی. ملایان خو لا

هم پسې ور ډېر شول، بلکې مولوی امداد العلي خو د هيواد له سترو سترو علماو څخه فتوي را ټولي کړي او يوه رساله [امداد الافاق برجم اهل منافق به جواب پرچه فرهنگ الاخلاق] يې چاپ کړه او په ټوله هندوستان کې يې وړيا وويشل. مولوی عبدالحی فرنگي محل په خپل فتواء کې ليکي:

«د شيطان او جن وجود شته دی او دا يوه قطعي خبره ده او څوک چې له دغې خبرې انکار کوي، نو خپله شيطان دی او له شيطان څخه بدتر..... د آسمان وجود هم قطعي خبره ده، څوک چې يې نه مني، نو شيطاني وسوسو کې غرق دي. دين، طبيعت به خدای خبر څه وي. هر يو مسلمان ته پکار ده چې دغه تسليم نه کړي...... هر يو مسلمان ته پکار ده چې پر حقه ودرېږي او د محمدي شريعت تابعدار دي وي او د دين و طبيعت او دغه ډولو فکرونو څخه دې ځان وژغوري. کوم شخص چې د دين خلاف وي، هغه د ابليس په مرستې غواړي په مسلمانانو کې تفرقه رامينځته کړي او په نوي نوم د مفسدينو ټولگی پرانيزي، کوم شيان، چې د سرسيد له مخې فرهنگ دی د اهل سنت له قوله د تخريب سبب گرځېدلای شي». (حالي م. ا.، منقول، له حيات جاويده کتاب څخه، ۶۲۹ مخ)

که څه هم د ډيلي، رام پور، امروهه، مراد آباد، بريلي، لکهنو، بهوپال او همداسې نورو ۶۰ علماو، ملايانو او فقهاوو د کفر په فتواء امضاوې وکړې، خو يواځې د خدای له خوا يې تصديق او تصويب پاتې وو، نو مولوی علی بخش خان دغه نيمگړتيا هم پوره کړه. هغه حجاز ته ولاړ او د مکې څلورو فقهاوو او مفتيانو څخه يې د سرسيد خلاف فتواوې واخيستلې، چې په دغه کې مفتيانو د سرسيد لپاره[ضرب او حبس] جزا ټاکلې وه. د مدينې منورې مفتي احناف شيخ محمد امين بابي خو په خپل فتوا کې د سرسيد جزا نوره هم زياته کړه او هغه يې واجب القتل وباله، خو د بخت خبره دا وه چې سرسيد په هندوستان کې وو. که د عثماني سلطنت په قلمرو کې اوسيده، نو کيدای شوای وژلی يې وای. مولانا حالي په حيات جاويد کې ليکي، چې د ملايانو په خبرو ځينو سرښندونکو د سرسيد د وژلو پلان هم جوړ کړی وو، خو بريالي نه شول، مگر د کنځلو او گوتڅنډونو ليک به هر کله سرسيد ته استول کيدل.

د سرسيد سيکولر نظرياتو دومره پرمختگ ونه کړ، د کومو چې هغه هيله درلودل. تر ټولو غټه وجه يې ناوړه حالات ول. سيکولر نظام په صنعتي ټولنه کې پرمختگ کوي، نه په فيوډالي ټولنه کې؛ له همدې امله سيکولر نظرياتو او ځانگو په کلکتې، ممبيي او مدارس کې د پام وړ پرمختگ وکړ. ځکه سرسيد په هغه سيمو کې سيکولر تبليغ کاوه، چې سل په سله فيوډال ول، دا هغه ټولنې وې، چې

د مسلمانانو فکري او فرهنگي تگ لارې یې هم فیوډال ول. بله وجه دا وه، چې د سیکولریزم پیل له دغه هیواد څخه څکه وشو، چې له لریو هیوادونو څخه دلته راوړل شوی وو او چاچې دلته خپور کړ هغه هم غیرملکي باداران ول، د دوی ښې خبرې به هم په خلکو بدې لگیدلي او هرکله به یې دا ویل چې:

ساقی نے کچھ ملا نہ دیا ہو شراب میں

په پوهنتونونو او ښوونځیو کې به اړ ول، چې انگلیسي ژبه زده کړي څکه له دې پرته دولتي دندې نه ورکول کیدل، کاروبار کم وو، خو بیا هم خلک اړ نه ول، چې د لویدیځ نظریات قبول کړي.

د سرسید د ښوونو پالیسي ډېره نیمگړې وه، د ده له نظره آکسفورډ او کیمبرج ښه پوهنتونونه ول. چیرته چې به د لوړې طبقې ځوانانو لوړې زده کړې ترلاسه کولې او بیا به د پارلمان غړي، وزیر، سفیر یا د دولتي څوکیو په لوړو مقامونو ټاکل کېدل. سرسید هم غوښتل چې د ایم اې کالج طریقه همداسې وي او مسلمان زده کړیالان، چې کله ترې فارغ شي څارنوال، قاضي او جنرال به وي. د انجینیري، طب او همداسې نورو څانگو خوا ته یې هیڅ پام هم ونه کړ؛ حتی ده د استادانو لپاره تربیتي کالج هم جوړ نه کړ. د دغې مسئلې ستونزه به د اوزارو د کمښت وجه وه، خو موږ د ده په کتابونو کې هم د صنعتي نظام او تگ لارو په اړه څه نه شوموندلای. نه هغه خلکو ته ویل چې فابریکې او کارخانې دې جوړې کړي، نه هم دوی ته د سوداگرۍ یا تخنیکي علومو او فنونو په اړه مشوري ورکوي. که ریښتیا ووایو، سرسید یواځې د لویدیځ فرهنگ د هغه ځای تمدن گاڼه. ده، داسې انگیرل که چیرته مسلمانان انگلیسي ژبه زده کړي او د لویدیځ فرهنگ خپل کړي؛ نو د دوی اقتصادي او سیاسي مسئلې به پخپله حل شي (د مسلمانانو څخه د ده موخه د لوړې او منځنۍ طبقې خلک ول) دغه وجه وه، چې هغه د مرزا غالب فکري وړتیا ته هیڅکله هم ونه رسیده، چا چې ده ته د لویدیځ تمدن خپلولو مشوره وکړې وه او د صنعتي نظام ځانگړتیاوې یې ورته ښودلې وې، د انگرېزانو د خوراک او پوښاک په اړه نه وو غږېدلی.

د برتانوي هند غیر مشروطه اطاعت د سرسید مسلک گرځېدلي وو. هغه به تل دغه هڅې کولې، چې مسلمان دې له ملکي سیاست څخه لیري وي او هیڅکله دې هم داسې کړنه ترسره نه کړي، تر څو انگلیسان خوابدی شي. هغه به د کالج زده کړیالان هم له سیاسي بحثونو لیري ساتل. دا نو ډېره جالبه خبره وه، چې د [فرهنگ الاخلاق] نسخې هم په کالج کې منع وې. هغه یو مسټر بوک انگلیس

د کالج مدير وټاکئ، چې په واقعيت کې يو ډېر زوړپالونکی شخص وو. هغه به د سرسيد سياسي پاليسي په ښه زړه وضع کول. د ده په مشورې سرسيد مسلمانان د هيواد له سياسي چارو او تمدن څخه ليري ساتلي ول او د سيکولريزم نوي ځانګې، چې په نوې چاپيريال کې يې پرمختګ کړی وو؛ له دغو يي ليري وساتل. پايله داسې وه، چې له علي ګړ څخه زياتره انګليسي پوهان ووتل، خو روښانفکران د ګوتو په شمار ول. اکثريت پکښې هغه خلک ول، چې فکرونه يې غلام ول او له غلامانه فکر څخه زوړپالني ته نوره هم لاره هوارېدل، نه سيکولريزم ته!

د علی ګړ خوځښت د دغو نيمګړتياوو سربېره د هندوستان تعليم يافته مسلمانان له سيکولر فکر څخه اغېزمن شول. دوی له سياسي علومو سره په لومړي ځل وپېژندل. جمهوريت څه دی، ټولواکی څخه موخه څه ده، د ويش له نظره د حکومت دري عنصرونه کوم کوم دي، د سنا حقوق او فرائض څه دي او دوی څه ټاکنې لري، د رايه ورکولو حق څه شی دی، د حکومت استازي څنګه ټاکل کېږي، د قومي حق موخې څه دي، د فيډرالي او نيمه فيډرالي حکومتونو تر مينځ توپير څه دی، د ولايتونو د خپلواکی موخه څه ده، بنسټيز حقوق څه دي او په څه ډول ترلاسه کېدلای شي، سياسي ګوندونه ولي او څه ډول جوړېږي؟ دغه پوښتنې له سيکولر علومو سره له پېژندني وروسته د خلکو په ماغزو کې ځای ونيوه. نه ويد او پران د دوی مشري کوله، نه تورات او انجيل او نه هم امام غزالي او امام فخرالدين رازي. زموږ نني سياسيون دغه فکر نه کوي، چې د دوی هره خبره د سيکولريزم ترجماني کوي.

که وکتل شي؛ دا هغه ډلې دي چې تر پرونه يې په ډېر وياړ سره ويل، د دغو افکارو منبع اسلام دی او مسلمانانو دغه خبرې اروپايانو ته ورښودلي وې، نن په ډېري بې شرمی له خپلو خبرو منکرېږي او وايي چې دغه خبرې ټولې غير اسلامي دي، د اسلام پخپله ځانګړی سياسي نظام دی، چې اساس يي د ولسمشر اطاعت دی که څه هم ولسمشر د تورې په زور واک ترلاسه کړی وي او د مجلس شورا ولري، که څه هم د مجلس شورا د يوه ځانګړي شخص ټاکل وي. که وګورو موږ يوه پيړی شاته تګ کړی، کله چې به وايسرای له خپله نسل څخه څوک ټاکئ، سرسيد به مسلمانانو ته د برتانوي حکومت د اطاعت درسونه ورکول.

د جمهوري افکارو په اړه، چې مو تراوسه کومې خبرې کړي هغه ټول تاريخي حقيقتونه لري، نو ځکه ښاغلی الطاف ګوهر چې که څه هم د سيکولريزم سخت مخالف دی اعتراف کوي:

«د سیکولر ټولنې ځانګړې ادارې، ۱- مقننه قوه ده؛ چې د آزاد ټاکنو پر ترڅ کې نوماندان ټاکي، ۲- قضایه قوه ده؛ چې یو مرکزي حکومت شمیرل کیږي، ۳- اجرائیه قوه ده؛ چې د عدلي او قضایي ارګانونو پریکړې او قانون تطبیق کوي، ۴- مطبوعات دي؛ چې د عامو خلکو د افکارو څرګندوی دي.» (Translation from Quran, P.21, 1975)

د ده له نظره دغه ادارې د سیکولریزم عالي منصب ګڼل کیږي....... [د دغو ادارو لپاره سیکولریستي ټولنې خپل ټول وخت لګولی وي]. خو دی د لویدیځ له سیکولریستي ټولنو څخه شکآیت کوي، چې دوی له خپلو دغو اصولو سره جفا کړې، په ځانګړې توګه ختیځ کې، چې نړیوالو طاقتونو په سیکولرو اصولو عمل نه دی کړئ. د اغیارو ګیلې پرځای دي، خو کله چې پاکستان آزاد شو نو خپلو چې د دغو اصولو سره جفا وکړه؛ د دوی ګیله له چا څخه وکړو؟ الطاف ګوهر صاحب یو وخت د پاکستان د مطبوعاتو وياند او د مارشال ایوب خان د شعبې ځانګړی شخص وو. د ده په [روښانفکري لسیزه] کې د [سیکولر ټولنې ځانګړې ادارې] چې په کومې بې رحمۍ سره له منځه ولاړې او نیست و نابود کړای شوې، له دغې به د ښاغلي الطاف پرته څوک ډېر خبر وي. د اساسي قانون ردول، د پوځي قانون وضع کیدل، د ولسي جرګې او وزارتونو له مینځه وړل، ښاري حقوق تر پښو لاندې کول، په ورځپاڼو سخت سانسور، د لیکوالانو نیول یا زنداني کول، د پوهانو او ژورنالیستانو د ضمیرونو پیر وپلورل:

مجھے یاد ہے وہ ذرا ذرا تمھیں یاد ہو کہ یاد نہ ہو

ښاغلي الطاف ګوهر په خپلې یوې مقالې کې د لویدیځ اخلاقي او روحاني فکر په اړه تبصره کړې. د ده له نظره[سیکولر ټولنې او سیکولر ادارې له ماتې سره مخ دي]. (Gauhar(ed), 1978) د پانګوالي نظام له داخلي تضاد څخه، د لویدیځ په ټولنې کې، چې کومې خرابیانې رامینځته شوې، الطاف ګوهر صاحب د دغو ټوله پړه پر سیکولریزم اچوي. که څوک له ده وپوښتي، چې ښاغلیه! د سیکولریزم له کومو اصولو سره چې ته پخپله موافق یې، که پانګوال له دغو سره جفا کوي؛ نو په دې کښې د سیکولریزم څه ګناه ده. که رښتیا ووایو د لویدیځ د اخلاقي او روحاني فکر بنسټیز وجه دا ده، چې د هغه ځای پانګوالي نظام له سیکولریزم سره جفا کوي. که د لویدیځ د زوال وجه سیکولر نظریات وي؛ نو هغه اخلاقي او روحاني خرافات چې لویدیځ پکښې ښکېل دی؛ نو په سوسیالیستي او جمهوري حکومتونو کې هم به لیدل شوي ول؛ ځکه دغه ټولنې خو تر ډېره سیکولر دي، خو تراسه چا

اوریدلي دي، چې شوروي اتحاد، چین، ویتنام، کیوبا یا هنګري او همداسې نورو هیوادونو کې هم د لویدیځ په څېر، د شپې کلبونه (نایټ کلب) او قمار خانې خلاصې دي یا فحشا خانې او همداسې نور،آیاتراوسه چا اوریدلي، چې په سوسیالیستي هیوادنو کې جنآیتونه ترسره کېږي او پولیس ورسره شریک دي.آیاپه سوسیالیست هیوادنو کې هم زرګونه ځوانان په ذهني او اعصابي ناروغیو مبتلا دي، یا د بیو د لوړېدو له وجې، د کچالو، قهوې او همداسې نورو ذیرمې ضایع شي.آیاهلته هم په زرګونه خلک بېکاره دي او پوځي خدمتونه ترسره کوي.آیاپه دغه هیوادونو کې هم له هر پنځه کلونو وروسته اقتصادي ناورین رامینځته کېږي او د نرخونو لوړوالي د خلکو ژوند تریخ کړی.

که د دغو پوښتنو ځواب نه وي، زه سل په سله باوري یم چې نه به وي. نو موږ دغې پایلې ته رسیږو، چې الطاف ګوهر صاحب د ختیځ او لویدیځ دپانګوالي ډلې سره د ښو اړیکو درلودلو له وجې د اصلي جنآیت کار پرځای یانې پانګوالي نظام ټوله پړه پر سیکولریزم اچولې ده.

ښاغلی الطاف ګوهر وایي، چې:

« ۱- په سیکولریزم او اسلام کې هیڅ کوم شی مشترک ندی، ۲- سیکولریزم سل په سله د اسلام ضد دی، ځکه سیکولریزم په خدای، الهام او د محشر په ورځې ایمان نه لري،۳- د سیکولریزم بنسټیزه نظریه دا ده چې په نړۍ کې مادي خوشحالي د انساني خوشحالي لپاره تر ټولو اړینه وي.» (ایضا، ۲۹۹ -۳۰۰ مخونه)

موږ له ستر لیکوال څخه دا پوښتنه کوو، ښاغلیه چې ته وایي په اسلام او سیکولریزم کې هیڅ کوم شی هم ګډ نه دي، نوآیاته دا ویل غواړې چې اسلام د ټاکل شوې مقننې خلاف دی، یا اسلام د خپلواکي قضایې خلاف دی، یا اسلام د ټاکل شوې اجرائیه قوې خلاف دی یا اسلام د مطبوعاتو د آزادۍ خلاف دی، یا اسلام د ښاري حقوقو او جمهوریت خلاف دی؟ ځکه ستاسو له نظره د سیکولریزم بنسټیز اصول خو همدغه دي. که چیرته ستاسو ځواب ریښتینی وي؛ نو ریښتیا هم ستا په اسلام او سیکولریزم کې هیڅ کوم شی مشترک نه دي، خو د کوم اسلام خبرې چې ته کوې، هغه د تېلو د حاکمانو او د دوی د لاس لاندې خلکو اسلام کیدلای شي؛ ځکه دا اسلام هیڅکله هم د وګړو اسلام نه دی.

ترکومه ځایه، چې د خدای، الهام او د اخرت په ورځې د ایمان خبره ده، نو داسې به درته ووایم:

«د سیکولریزم د فکر او مذهبي اعمالو دایره له یو بل څخه جلا دي. سیکولریزم د یو شخص، ډلې یا د ټولنې له مذهبي عقایدو سره هیڅ ډول کار نه لري. د سیکولریزم مسلک هغه دی، چې د سرسید وو، یانې د دیني او دنیاوي چارو غوښتنې او د هر کار دایره جلا جلا وي، نو حکومت ته پکار نه ده، چې د خپلو وګړو له مذهبي عقایدو سره کار ولري او نه هم مذهب ته اجازه ورکړل شي تر څو د حکومت په چارو کې لاسوهنې وکړي.

سیکولر حکومت ته پکار ده، چې یوه شخص یا ټولنې ته پوره پوره دیني آزادي ورکړي او دغې خبرې ته یې پام وي، چې هیڅ یوه ډله یا طبقه د بلې ډلې یا طبقې دیني آزادي غصبولای نه شي. په سیکولر حکومت کې هر یو شخص د مذهب پرته له هر ډول ښاري حقوقو څخه برخمن وي. سیکولر حکومت د کوم ښاري په مذهبي چارو کې لاسوهنې نه کوي. سیکولر حکومت د قانون له نظره له یو مذهب سره هم نه وې تړلی او نه هم د کومې طبقې عقایدو ته کار کوي. د دغې فکر له نظره د شخص، حکومت او دین ترمنځ درې ډوله اړیکې جوړیږي.» (Smith, 1963)

۱- شخص او دین

۲- شخص او حکومت

۳- دین او حکومت

۱ - لومړی به په شخص او دین باندې رڼا واچوو او هغه دوه نورې اړیکې به له ذهن څخه وباسو. دغې اړیکې د حکومت د رامینځته کیدلو زرګونه کلونه مخکې وې او نن هم د نړۍ په ځینو سیمو کې داسې قبیلې شته، چې هغوی دین ته اړ نه دي خو د دوی په ژوند کې د حکومت هیڅ ډوله مداخله هم نشته. دوی د حکومت د شتون هیڅ ډول تشویش هم نه لري او نه هم دوی د حکومتي قوانینو تابع دي. یهودیت، عیسویت او د اسلام تاریخ شاهد دی، چې د شخص او دین اړیکه حکومت ته هیڅ ډول اړتیا نه لري. موسوي شریعت هله را نازل شو، کله چې بني اسرائیلو د سینا په صحرا کې د کوچیانو په څیر ژوند کول او د اسرائیلي حکومتونو څرک هم نه وو. ګوتم بد له میلاد څخه مخکې په شپږمه پیړۍ کې د بدمت کار پیل کړ، خو لومړی بد حکومت درې پیړۍ وروسته ستر اشوک جوړ کړ. د عیسویت تاریخ هم همدغه دی. نو لومړی عیسوي حکومت له حضرت مسیح څخه درې سوه کاله وروسته له فلسطین زرګونه میله لیري، په قسطنطنیې کې جوړ شو. خپله د اسلام

ظهور هم د کوم حکومت له مخې نه دی راغلی، بلکې په مکې کې چې نبي کریم ص د اسلام اعلان وکړ، هلته د اسلام د دښمنانو نفوس زیات وو. مسلمانانو په هندوستان باندې ۷ سوه کاله حکومت وکړ، خو ډیلي، یوپي او بهار کې د مسلمانانو شمېر له ۱۴ سلنې څخه هیڅکله زیات هم نه شو. که د اسلام محور د حکومت په طاقت سره زور نیوه؛ نو تر ډېره به په شمالي هند کې د هندو دین څرک هم موندل شوی نه وو. په اندونیزیا، ملایا، سریلانکا، برما، تایلینډ او فلپپین کې په میلیونونه مسلمانان میشت دي، خو هغوی د حکومت په زور مسلمان شوي نه دي. انګرېزانو یوه نیمه پیړۍ په هندوستان باندې حکومت وکړ، خو هیڅوک هم عیسویان نشول. نو څرګند شو، چې دین هیڅ ډول کار هم له حکومت سره نه لري. که مودودي صاحب د اسلام د طاقت لپاره حکومت ډېر ضرور ګڼي؛ نو هغه د دین او حکومت د دواړو له تاریخ څخه بې خبره دی.

که موږ د دین او حکومت له اړیکو څخه سترګې پټې کړو؛ نو د یو شخص د دیني آزادي خبره را څرګندیږي. حکومت له دغې اړیکې څخه هم بې برخه کیږي. د حکومت هر یو وګړی خپلواک وي، کوم دین یې چې خوښ وي، منلی یې شي او کوم یې چې خوښ نه وي ردولای یې شي. که کوم شخص په خدای، الهام او د اخرت په ورځې باور لري؛ نو باور دې نور هم زیات شي. حکومت باید له چا پوښتنه ونه کړي. حکومت د کوم ځانګړي دود یا دیني فریضې له مخې کوم قانون نه جوړوي، خو دا حق لري چې د امنیت لپاره د دیني دودونو د ادایني په موخې هر ډول امنیتي تدابیر نیول کیږي او ځانګړي اصول او قوانین دې ورته وټاکل شي، د بیلګې په توګه د حج د سفر قوانین او د دیني لاریونونو امنیت ټینګول. حکومتنه شي کولای، د کوم مذهب اړوند ورځپاڼو او یا همداسې نورې خپرونو باندې بندیزونه ولګوي.

د شخص او حکومت د اړیکې په وخت کې دریم عنصر یعنې له مذهبه باید سترګې پټې کړو. په حکومت کې یو شخص د ښاري په حیث وي او د ده ښاري حقوق د مذهب له نظره نه ټاکل کیږي. حکومتنه شي کولای، یو ښاري د هغه د مذهب له نظره له بل ښاري لوړ وګڼي او نه هم داسې قانون وضع کولای شي، چې یو مذهب ته ګټور وي او بل ته نه. حکومتنه شي کولای له یو مذهب سره امتیازي چلند وکړي، نه هم داسې نصاب جوړولای شي، چې په هغه کې یواځې د یو مذهب خبرې اخیستل شوې وي.

د شخص، حکومت او مذهب د اړیکو بڼه یو مثلث ته ورته وي، چې پورتنۍ ضلع یې د اشخاصو استازیتوب کوي او قاعدې یې د حکومت او مذهب استازیتوب کوي.




د مذهب د آزادي اړیکه له شخص سره وي؛ نو د حکومت اړخ ترې لیري کوو. د اشخاصو د ښاري حقوقو اړیکه له حکومت سره وي، نو دین ترې لیري کوو، خو دا هغه وخت شونې ده، کله چې دین له حکومت څخه جلا وي. د حکومت او دین ترمینځ چې څومره نږدې والی وي؛ د شخص دیني او ښاري آزادي به له هر ډول کار څخه اغیزمنه وي. برعکس، دین چې له حکومت څخه څومره هم لیري وي، دین او حکومت دواړو ته به د آزادي او پرمختګ لاري هوارې وي.

د ښاغلي الطاف ګوهر د دغه تهمت په مقابل کې، چې د سیکولریزم له نظره دنیاوي خوشحالي د انسان د خوشحالۍ اصلي لامل دی، موږ په خپله خوښه دغه جرم منو، خو د جنآیتکارانو په لیکه کې به موږ یواځې نه یو، بلکې میلیونونه زیار ایستونکي مسلمانان به له موږ سره ولاړ وي. هغه ټول خلک، چې له زړه هیله لري چې په نړۍ کې ارام او د عزت ژوند تیر کړي، خو د کومو خلکو چې د ژوند شپې او ورځې یې د روزګار په لټولو کې تیریږي، زامن یې له زده کړو بې برخې پاتې وي. نو له چاسره، چې د شپې تیرولو ځای نه وي او نه هم د درمل اخیستلو پیسې. زموږ په لیکه کې به هغه ستر شخصیتونه هم وي، چې خپل ټول عمر یې د مسلمانانو دنیاوي ژوند د سمون په چوپړ کې تیر کړی وي. له موږ سره به سرسید، علامه اقبال او ښاغلی محمد علي جناح هم وي.

د شکر ځای دی، چې د ناخپلواکو مسلمانانو فکر د ښاغلي الطاف گوهر په څېر مابعدالطبیعي نه وو، ځکه الجزائر، لیبیا، شام، یمن، ایران او اندونیزیا به هیڅکله هم خپلواکي ترلاسه کړې نه ول، نه به پاکستان جوړ شوی وو. ځکه په دغو هیوادونو کې د آزادۍ لپاره جگړې یواځې د مسلمانانو دنیاوي ژوند د جوړولو او د خوشحالي او پرمختگ لارې هوارولو لپاره ترسره شوي ول؛ نه د هغې بلې دنیا جوړولو لپاره. که د دنیاوي ژوند موخه خوشاله تیرول نه ول، نو آزادي ته به هیڅکله هم اړتیا پیښه شوې نه وه. موږ د انگرېزانو غلامان وو، خو دوی هیڅکله هم موږ له شرعي احکامو څخه منع نه کړو او نه هم د اسلام په تبلیغ بندیزونه لگېدلي ول. دوی موږ له خدایه، الهام او د محشر په ورځې له باور کولو څخه منع نه کړو او هیڅکله یې هم ونه ویل، چې لمونځ، روژې او حج کول پرېږدئ. بیا مسلمانانو په تحریک پاکستان کې ولې گډون وکړ؟ پاکستان ولې جوړ شو؟

ویل کېږي پاکستان د اسلام په نوم جوړ شوی. دغه خبرې به جماعت اسلامي کولې، چې د تحریک ډېر سخت خلاف ول او پاکستان ته به یې«ناپاکستان» ویل. نو قاضي محمد منیر مرحوم په خپل کتاب « له جناح تر ضیاء» کې د جماعت اسلامي په اړه هر څه روښانه کړي او ویلي یې دي، چې جماعت اسلامي د خپلو تېرو کړنو پټولو لپاره او د نوي نسل (چې د تحریک پاکستان له تجربې خبر ندي) د گمراه کولو لپاره په ۱۹۵۳ میلادي کې دغه نعره اوچته کړه، خو د مسلم لیگ نسخې، د جناح او د تحریک پاکستان د نورو ځانگړو مشرانو خبرې شاهدي ورکوي، چې تحریک پاکستان یو سیاسي خوځښت وو، د ولسونو حقونو د غوښتلو په پار جوړ شوی وو او د دوی غوښتنه وه چې د مسلمانانو په زیاتره نفوسو سیمو کې دي د مسلمانانو خپل حکومت جوړ شي، خو د قومي حق غوښتلو نظریه د لویدیځ ځانگړې سیکولر نظریه ده، چې هلته په اتلسمې پیړۍ کې د قومي حکومتونو د وجود لپاره وضع شوې ول. د دغې نظریې له مخې په ایټالیا، یونان، جرمني، فرانسې، هالینډ، بلجیم او امریکا سربېره زیاتره نور لویدیځ حکومتونه مینځ ته راغلل. د دغې نظریې له مخې، د لومړۍ نړیوالې جگړې وروسته په اروپا، هنگري، چکسلواکیا، رومانیه، بلغاریه او یوگوسلاویا کې نوي حکومتونه مینځ ته راغلل او د دویمې نړیوالې جگړې وروسته اسیا او افریقا کې په لسگونو نوي حکومتونه جوړ شول. د ولسونو د خپلواکي غوښتلو نظریه نه عیسویت وړاندې کوي او نه اسلام. اسلام خو د یوموټي امت غوښتنه کوي، چې د قوم، نسل، رنگ، ژبې او جغرافیې پولې نفې کوي.

د پاکستان د مینځته راوړلو فکر که څه هم د سرسید وي، که د اعلامه اقبال یا د ښاغلي محمد علي جناح، په دوی کې د هر یو موخه د هند د لویې وچې د مسلمانانو سیاسي او ثقافتي/فرهنګي خپلواکي وه. دوی د مسلمانانو د دنیاوي ژوند د جوړولو له نظره د پاکستان جوړولو خوبونه لیدلي ول. له دغه نظره موږ تحریک پاکستان ته یو سیکولر خوځښت وایو. د علامه اقبال لقب [د پاکستان مفکر] دی. هغه پخپل خطبه صدارات کې، چې د ال انډیا مسلم لیګ په کلنۍ کانګرې، په ۱۹۳۰ میلادي کې اله آباد ته وړاندې کړ، وایي:

«تر کومه ځایه چې ما د مسلمانانو فکر څېړلی، نو په دغه ویلو سره زه هیڅکله هم وېره نه لرم، چې د هندوستاني مسلمان له نظر دوی دغه حق لري، چې د خپل فرهنګ او فرهنګ له نظره ځانته خپلواک هیواد او حکومت ولري، نو د دغه آزادۍ لپاره به دا مسلمانان خپل هر څه قربان کړي....... زه غواړم د پنجاب، سرحد، سند او بلوچستان ولایتونه دې یو خپلواک حکومت جوړ کړي، که څه هم دبرتانیې د سلطنت لاندې یا له دوی څخه بهر. زما له نظره څه نا څه د شمال لویدیځ د هندوستان د مسلمانانو راتلونکی دغه دی. هندوان باید د دې خبرې وېره ونه لري، چې د دغه خپلواک اسلامي حکومت مانا به دا چې هلته به د بل دین خلک نه اوسي.»

د دغې موخې په اړه مفکر پاکستان د ۱۹۳۷ میلادي په ۲۱ جون کې ښاغلي جناح ته لیکي:

«د شمال لویدیځ هندوستان او بنګال د مسلمانانو د خپلواکي حق به ولې د یو قوم حق نه ګڼل کېږي، څکه په هندوستان او له هندوستان څخه بهر هم د نورو قومونو دغه حال دی». د پاکستان تړون، د دغه فکر د پای انځور وو. نو د مسلم لیګ په تاریخي جلسې کې چې د ۱۹۴۰ میلادي په ۲۳ دې مارچ کې د ولسونو د خپلواکي د حق غوښتنه پکښې شوي وه:

« د جغرافیې له نظره د ملحق وحدتونو ویش باید داسې وکړل شي، په کومو سیمو کې چې، مسلمانان زیات دي لکه د هندوستان په شمال لویدیځ او ختیځو سیمو کې، دوی باید یوځای کړل شي او یو خپلواک حکومت دې جوړ شي، په دغه کې اوسیدونکي قومونه خپلواک او د لوړ اقتدار خاوندان دي.»

ښاغلي جناح په خپلو تقریرونو او د ورځپاڼې په مقالو کې، د مسلمانانو د قومي انفرادیت یادونه هر ځل کړې، نو څکه هغه لیکي:

« موږ یو قوم یو، موږ ځانګړی فرهنګ، ژبه، ادب او هنر لرو، قانون او اخلاق لرو، رواج او جنتري لرو، تاریخ او روایات لرو او یو ډول هیلې. لنډه دا چې د ژوند په اړه موږ یوه ځانګړي نظریه لرو. نو د قوم د قانون له نظره موږ یو قوم یو ».(Asian Drama, Vol.1, P.233, 1968 ,Mydral)

په پاکستان کې، د سیکولر نظام په اړه د جناح هغه تقریر  چې د ۱۹۴۷ میلادي د اګست په یولسمه کې یې  د قانون جوړونې اسمبلی د ښه راغلاست په ناسته کې وړاندې کړ؛ ډېر اغیزمن وو. په دغه تقریر کې یې له شته اشخاصو څخه وغوښتل، چې دوی خپل پخواني مخالفتونه هیر کړي او د[رنګ، قوم او عقیدې] په توپیر له سترګو پټولو وروسته، اول او اخر د پاکستان د اوسیدونکي په حیث یو ځای کارپیل کړي.

«موږ ته پکار ده، د دغې جذبې له نظره یوځای کار وکړو. له وخت سره به هر ډول ستونزه ختمه شي. څکه په مسلمانانو کې د پټان، پنجابي، شیعه، سني او په هندوانو کې د برهمن، وشنو او کترې  او بیا بنګالي او مدراسي قبیلې شتون لري. که تاسو له ما پوښتنه وکړئ، نو زه به ووایم د هندوستان د آزادي اخیستلو په بار تر ټولو ستر خنډ دغه د قبیلو توپیر وو. که دغه توپیر نه وو، موږ به  له وخته آزاد وو، نو موږ ته پکار ده چې له دغه درس واخلو. تاسو په ازاده توګه مندر ته تللی شئ، مسجد ته تللی شئ........ تاسو که د هر مذهب، عقیدې او قوم یاست، حکومت ستاسي سره هیڅ ډول کار نه لري. لکه څنګه چې تاسو پوهېږئ، مودې مخکې د انګلستان حالات له هندوستان څخه ډېر خراب وو. کتولیک رومیانو او پروټسنټانټ به له یو بل سره جګړې کولې. نن داسې هیوادنه شته، چې له ځینو طبقو سره امتیازي چلند کېږي او ډول ډول بندیزونه پرې لګوي. د خدای په فضل سره موږ په داسې وخت کې خپل کار نه پیلوو. موږ په داسې وخت کې کار پیلوو، چې د یوې فرقې او د بلې فرقې ترمینځ هیڅ ډول توپیر نه وي، کوم امتیازي چلند نشته. موږ د همدغې بنسټیز اصولو له مخې کار پیلوو، چې موږ ټول ښاریان یو او د یو خپلواک حکومت مساوي ښاریان یو. د انګلستان د خلکو له ژوند سره حقیقتونه وپلټل او حکومت چې پر دوی کوم ډول مسؤلیتونه ټاکلي دا یې باید بشپړ کړې ول. نن تاسو داسې ویلای شئ، چې هلته اوس د رومن کتولیک او پروټستانټ وجود نشته. څه چې پاتې دي، هغه دغه حقیقت دی چې هر یو ښاري دی او د لویې برتانیې مساوي ښاریان دي او ټول د خپل قوم غړي دي».

«زما له انده موږ باید دغه نصب العین خپل مخې ته کېږدو، تاسو شاهدان اوسئ، چې د وخت په تېرېدو به هندو، هندو پاتېنه شي او مسلمان، مسلمان. البته د دین له له نظره نه؛ بلکې هغه د هر یو وګړي خپله شخصي عقیده ده، بلکې له سیاسي نظره به د حکومت د رعیت په توګه وي».

جناح داسې وایي، چې په حکومتي چارو کې دې مذهب دخیل نه وي، نو څرګنده ده چې هغه د سیکولر حکومت مفهوم وړاندې کوي. ده چې هر ځل د انګلستان یادونه کړې، نو هغه غوښتل چې د پاکستانیانو سر ورخلاص کړي، لکه څنګه چې په انګلیستان کې د بیلابېلو فرقو خلک میشت دي او د خپلو عقیدې پیروي کوي، خو دین د حکومت په چارو کې دخیل نه وي؛ دغه ډول دلته دې هم باید دین په حکومتي چارو کې دخیل نه شي او نه دې هم د حکومتي چارو پرېکړه د دین له نظره وکړل شي.

د جناح د فکر انداز سیکولر وو. د ده پلار سوداګر وو. ده د کراچۍ، ممبیي او لندن په سوداګریزو ښارونو کې زده کړې ترسره کړې وې. ده له فیوډالیزم او ملائیت سره هیڅ ډول اړیکې نه درلودې او نه یې هم له دوی سره شخصي ګټې نغښتې وې، بلکې د برتانیې لیبرال سیاست د ده مزاج ګرځېدلی وو، نو ځکه د تحریک پاکستان په وخت کې هغه په دغه خبرې ډېر ټینګار کوه، چې پاکستان کې به تیوکراسي نه وي، بلکې یو معاصر جمهوري حکومت به وي. که دی یو څه موده ژوندی وو، نو سیکولر سمونونه به یې عملي کړي وای، خو مرګ ورته وخت ورنه کړ.

له جناح وروسته چې کوم خلک واکمن شول، نو هغوی به یا له فیوډالیزم سره ډېري ژورې اړیکې درلودې، یا به دوی خپله نواب او اشراف ول. دوی جمهوریت ته، د پرمختګ اجازه نه ورکول او نه یې عقل پر کار اچوه، بلکې د دین په مرستې یې ناوړه دودونه او وهمپالونکي نظریات دود کړل. دوی له ملایانو، پیرانو او شیخانو سره اړیکې جوړې کړې. په دغه برخه کې دوی ډېر مخته ولاړل، لکه دوی به د میلاد شریف جلسې او د قوالي مجلسونه جوړول. د قبرونو عبادت عام شو او د زیارتونو په جوړولو به یې میلیونونه پیسې لګولې. په هیواد کې د ښارویو قحطي وه، خو دوی به بې دریغه ذبح کړل او هیڅ ډول بندیز پرې ونه لګېده. ورځپاڼې، رادیو او ټلویزون به یواځې د دې لپاره خپرونې کولې، تر څو له نورو مخکې شي. کرنیز محصولات به ورځ تر بلې کمېدل، خو د فیوډالیزم له مینځه وړلو لپاره دوی هیڅکله هم ځمکې په کروندګرو ونه ویشلې. په لومړیو کې خو د جمهوري قانون او

بنسټيزو حقوقو خبرې يواځې په ژبو تکراريدې، خو له مودې وروسته دغه خبرې هم له مينځه ولاړې او په هيواد کې پوځي قانون وضع شو.

ځينې ډلي خو داسې انګيري چې سيکولريزم، د سوسياليزم دويم نوم دی او سوسياليستان غواړي د سيکولريزم له لارې سوسياليستي نظريې خلکو ته ورسوي. له دغه حقيقت څخه به څوک منکر شي، چې سيکولريزم او علمي سوسياليزم دواړه د صنعتي نظام له بطن څخه راوتلي او په دواړو کې زياتره شيان مشترک دي، د بيلګې په توګه په ساينسي فکر او ساينسي زده کړو باندې ټينګار، د پانګوالي نظام مخالفت او د صنعتي نظام سره همغږي، د جمهوري او ښاري حقوقو درناوی، د فکر آزادي، حکومت او د مذهب خپلواکي او همداسې نور. خو د دغو مشترکه عنصرونو سربېره د دواړو په اقتصادي نظرياتو کې، د ځمکي او آسمان توپير دی. که څه هم يو سيکولر حکومت کولای شي، د سوسياليزم اقتصادي اصول خپل کړي، په دې کښې هيڅ ډول بنديز نشته، خو که وګورو، د سيکولريزم پام هرکله د پانګوالي نظام لور ته دی، ځکه ويل کيږي چې سيکولريزم په اصل کې د بورژزوا جمهوريتونو سياسي نظريه ده. که بانک، فابريکې، هټۍ، کانونه، ځمکي، صنعت او سوداګري د ځينو اشخاصو خصوصې ملکيت وي او زيارکښان دې تل د پانګوالو تر استثمار لاندې وي؛ نو بيا به هم سيکولريزم کومه ګيله نه کوي. سيکولريزم خو نه دزيارکښو له هڅو سره کوم ډول کار لري او نه هم دا موخه لري، چې دوی ته اقتدار ورپه برخې کړي. برعکس سوسياليزم غواړي د حکومت ټول عنصرونه دې د زيارکښې طبقې په ولکې کې وي، تر څو د ټولنې نظم په دغه اصولو ودرول شي، چې [څوک کار کوي، هغه به خواړه ترلاسه کوي] يعنې په سوسياليستي ټولنه کې د ماشومانو، سپينږيرو او ناروغانو پرته هيڅوک هم مفته ډوډۍ نخوري. دغه يو بنسټيز توپير دی، چې د زياترو سيکولرو حکومتونو اقتصادي نظام د پانګوالي نظام پاتې شوی، بلکې د ځينو حکومتونو حاکمې طبقې د سوسياليزم ډېر مخالفت کوي. د بيلګې په توګه امريکا، برتانيه، سويلي افريقا، اندونيزيا، ترکيه او همداسې نورو هيوادونو حکومتونه.

سوسياليزم هيڅکله هم سيکولريزم ته اړ نه دی. د سوسياليزم نظريه دومره پياوړې ده، چې د تاريخ په خپلې يوې نيمې پيړۍ کې يې هيڅکله هم د سيکولريزم په مرستې خپلې نظريې ترخلکو نه دي رسولي. نن، په نيمه نړۍ کې که د ټولنې او حکومت تعمير د سوسياليستي نظريو له مخې کيږي، نو دا به د سيکولريزم مهرباني نه وي، بلکې دا د زيارکښانو هڅې دي. د سوسياليزم د پرمختګ اندازه

له دغې خبرې هم کولای شو، زیاتره هیوادونه چې لاتراوسه سوسیالیست نه دي، هغوي هم ځانته سوسیالیست خطاب کوي. د بیلګې په توګه یونان، فرانسه، سویډن، ډنمارک، ناروې، سوریه، عراق، چین، هندوستان، برما، سریلانکا او حتی مصر هم. که وګورو د هټلر د فاشستې ګوند نوم هم نیشنل **سوسیالیست** ګوند وو.

پاکستان له تیرو دیرشو - دوه دیرشو کلونو راهیسې، له سیاسي او اقتصادي ناورین سره مخ دی. بنسټیزه وجه یې دا ده چې دلته د ژوند په هره څانګه کې د فیوډالو عنصرونو غلبې دي. فیوډالیزم له ډېره وخت ورک شوی او اوس د نني ژوند غوښتنې نه شي پوره کولای. هغه یوه ډېره پخوانۍ نظریه ده که یې هیر نه کړو، نو پرمختګ نه شوکولای. دا به هلته شونې وي، کله چې جمهوري قوانینو ته کار وشي او ټولنه باید له سره په سیکولر اصولو ودرول شي. دغه تاریخي بدلون ته به د هیواد عام وګړي په ګډه کار کوي.

# څلورم څپرکی

# د سند سوسیالیست صوفي

منصور ھو یا سرمد ھو صنم، یا شمس الحق تبریزی ھو
اس تیری گلی میں اے دلبر ہر ایک کا سر قربان ہوا
سچل سرمست

د سِند دریاب زموږ د تېرو ښو وختونو یاد او د راتلونکي زېری دی. د هند د لویې وچې لومړی فرهنګي ټاټوبی دی، چې د تیرو څلورو زرو کلونو د تاریخ په ترڅ کې زیاتې ننداري پکښې شوي او د بې شمیرو قومونو او مذهبونو (ادیانو) ټاټوبی پاتې شوی. د وید دین پیروان آریایان، د حکیم زردشت منونکي ایرانیان، د زیوس او اپالو پیرو یونانیان، د بدمت پیروان، کشن او د اسلام منونکي عربان. ایرانیان، ترکان او افغانانو د یو بل وروسته خپل فرهنګونه دلته پرې ښودل. د سند فرهنګ په حقیقت کې د دغو ټولو فرهنګونو ټولګه ده.

خو داسې یو وخت هم راغی چې ټولنه د تېر په دلدل کې راګیر شوه او د پرمختګ ټولې لارې پرې بندې شوې. بیا تر دریو پیړیو وروسته یو مجاهد شخص د ټولنې د مخته وړلو لپاره یوه نظریه وړاندې کړه. هغه په دغه خزان وهلې سیمه کې د « د پرمختګ» خوبونه ولیدل، خو خوب یې نیمګړی پاتې شو او همدغلته شهید شو. د دغه نیک شخص نوم شاه عنایت الله وو. د جوک په کلې کې یې، چې د ټټې ښار په ۲۵ میله واټن کې پروت دی، زیارت هم شته، چې زیاتره خلک یې د زیارت لپاره راځي او د عقیدت ګلونه پرې بږدي، خو د شاه عنایت الله د شهادت له اصلي وجې زیاتره خلک بې خبره دي.

د شاه عنایت الله د زیږیدنې نیټه مالومه نه ده، خو دغه خبره حقیقت لري چې دی په اوولسمې میلادي پیړۍ کې د باچا اورنګ زیب عالمګیر په دوره کې د ټټې ښار په یوې ساده کورنۍ کې زیږیدلی. غور نیکه یې د بټوره ولسوالۍ اوسیدونکی وو. هغه له ایران څخه نه وو راغلی، بلکې د همدغې خاورې بچی وو او په قوم لنګا وو.

د شاه عنایت الله پلار مخدوم فضل الله [یو بې ریا پیر] وو. میر علی شاه قانع د شاه عنایت الله د لومړنیو زده کړو په اړه څه نه وایي، خو داسې لیکي، چې ریښتینی پیر، د شریعت بنسټ ایښودونکی، د مریدانو مرید، د وخت ولي، شاه عنایت الله صوفي د حقیقت په لټه کې ډېرو ښارونو ته ولاړ او له اوږدې مودې وروسته دکن ته ولاړ؛ شاه عبدالملک سره یې ولیدل. (ټټوي، میرعلي شاه)

له ده سره له لیدلو وروسته شاه عنایت الله د ډیلي پر خوا مخه کړه او هلته یې له شاه غلام محمد علوي سره ولیدل، خو استاد له خپل شاګرد څخه دومره اغیزمن شو چې له شاه عنایت الله سره ټټې ته ولاړ. شاه غلام محمد له شریعت څخه په طریقت ډېر خوښ وو، نو [د ټټې علماوو د دغې خبرې لپاره هغه شرعي محکمې ته وړاندې کړ،ځکه خو د خدای ریښتیني بنده ګانو هر کله له علماوو څخه زیات اذیتونه لیدلي]. شاه عنایت غلام محمد ته وویل، چې بیرته ډیلي ته ولاړ شه، نو ځکه هغه بیرته ډیلي ته ولاړ او شاه عنایت په جوک کې پاتې شو.

شاه عنایت چې پوهه ترلاسه کړه، نو د مغولو سلطنت مخ په زوال وو. که څه هم اورنګ زیب د ستر اکبر په څېر پنځوس کاله حکومت وکړ، خو د ده په پاچاهي کې د اکبر د دورې په څېر امنیت نه وو. باچا په لومړیو کې، په کورنیو جګړو کې بوخت وو. بیا د دکن جګړې پیل شوې. بلې خواته مرهټیانو، راجپوتانو او سکانو خوځښتونه پیل کړل او هر ځای کې بغاوتونه پیل شول. مرکزي حکومت

کمزوری شو، نو د فیوډالیزم نظام ناورینو ځای خپل کړ. نو په داسې حالت کې به د سِند په څیر لیري پرتې سیمې ته د چا پام کیده. د ولایت امنیت مخ په ړنګیدو وو. هره سیمه د فیوډالانو تر ولکې لاندې شوه او د چوروچپاول بازار ګرم شو.

په دغو ورځو کې سند په دوو برخو وویشل شو.

پاس سِند چې پلازمینه یې بکر (سکر) وو او د کښتني سِند پلازمینه بیا ټټه وه. د پاس سِند سیمه د ملتان ولآیت په قلمرو کې شامل وه او د هغه ځای حاکم د ملتان ولآیت د والي تابع وو. هلته له ۱۵۷۴ میلادي تر ۱۶۷۹ میلادي پورې پنځوس حاکمان وټاکل شول. دوی به له دوو کلونو وروسته بدلېدل. د اورنګ زیب په دورې کې د سلطنت د کمزوري کیدو او سیاسي ناورین اندازه له دغه خبرې هم کولای شو، چې په ۱۶۷۹ میلادي کې د پوځ له ناکامیدو وروسته د پاسني سند سیمه سردار یار محمد ته وسپارل شو او هلته بیا هیڅکله هم کوم مغول حاکم نشو. په کښتني سِند کې چې د مرزا جاني بیګ ترخان خپلواک حکومت وو، د اکبر په حکم ۱۵۹۹ میلادي کال کې فتح شو، خو باچا له مرزا جاني بیګ سره تړون وکړ او حکومت یې بېرته ورته وسپاره. د مرزا جاني له مړینې وروسته د هغه زوی مرزا عیسی خان د حکومت حاکم وټاکل شو، خو د ده له مړینې وروسته جهانګیر په  ۱۶۱۴ میلادي کې سِند یو جلا ولآیت کړ. په ټټه کې له ۱۶۱۴ میلادي تر ۱۷۳۲ میلادي پورې ٦٧ والیانو حکومت وکړ. د دوی د دندې نیټه به دوه نیم کاله وه. ځینې خو له ډیلي بیخي ټټې ته هم نه تلل، بلکې خپل استازي به یې لیږل. لاهري بندر چې د سند ولایت تر ټولو ستر بندر وو، شخصي ملکیت شو، نو د ولایت بودیجه له مینځه ولاړه او سیاسي اهمیت یې هم کم شو. نو د ټیټو رتبو مامورین به یې د ټټې ولآیت والیان وټاکل، بلکې ځینې وخت به یې یو پوځي قومندان د ټټې ولایت والي وټاکئ. په پای کې د ټټې ولآیت پایله هم همغسې شوه، لکه له بکر ولآیت سره چې شوې ول. په ۱۷۳۲ میلادي کې یې نواب امیر خان ته ټول ولآیت په اجاره وسپاره. ده دغه دولت یو شخص دلیر خان ته په اجاره(ټیکه) ورکړ او کله چې دلیر مړ شو نو صادق علی خان ته یې په دریمه برخه وسپاره.

## د کرنیز نظام تکامل :

د دغې سیمې د پخوانیو سیاسي نظریاتو له مخې د ځمکې کښت د ټولو مشترک ملکیت ګڼل کېده، نه د حکومت، خو کروند ګرو به د حاصلاتو یوه ځانګړې برخه حکومت ته ورکول. په دغه

برخه کې به ټولو کليوالو له يو بل سره مرستې کولې. د واجباتو ورکول او اخيستل به د کلي د ملک په غاړه ول. (Kautilya, Artshastara, Book 3, Ch.9.10)

د مسلمانانو په دوره کې(۷۱۲ ميلادي-۱۸۳۴ ميلادي) له يو بل څخه وروسته يوولسو کورنيو په سِند کې حکومت وکړ. په دوی کښې سومرا، سمه، کلوړا او تالپور ځانګړي سيميز قومونه ول، خو د نسلي امتياز له وجې زموږ لوستې طبقې هم نه غواړي، له دغې سيمې سره ځان وتړي يانې داسې وښايي، چې موږ د دغې سيمې يو. ځکه هر يو شخص هڅه کوي، چې خپل نسلي اړيکې له عرب، عراق، ايران، ترکستان سره وتړي او داسې ووايي، چې زموږ غور نيکه ګان له بهر څخه راغلي. يو يې هم نه مني چې ګواکې د دوی غور نيکونه په همدغه سيمې کې اوسيدل، چې مسلمانان ول. د افسوس خبره ده چې زموږ تاريخپوهان هم د همدغې ناروغۍ ښکار دي. د بيلګې په توګه، مولانا غلام رسول مهر [د سِند تاريخ د کلوړا په زمانه کښې'' کې ليکي چې کلوړا عباسيان دي]. (د سيند تاريخ، لومړی ټوک, ۱۹۵۸) دغه ډول مولانا اعجازالحق قدوسي په تاريخ معصومي او تاريخ طاهري، کې د مولانا سيد سليمان ندوي، داکتر نبي بخش بلوچ او د انګليس تاريخ پوهانو ټول دليلونه رد کړي او وايي[سومرا عرب ول، چې په هندوستان کښې ميشت شول]. (د سيند تاريخ، لومړي برخه، ۴۱۷ مخ, ۱۹۷۱) خو که وکتل شي د سومرا، سمه او کلوړا کورنيو د بنسټګرو نومونه او د دوی د قبيلوي رسم ورواج، له نظره دوی سل په سله سِنديان ول. د بيلګې په توګه بونګر، دودا، سانګړ، پاتو، ګنرا، چنيسر، کچن او همداسې نور....

په قبيلوي دوره کې که څه هم د حاکم او محکوم ترمينځ توپير شتون درلود، خو دغه توپير دومره هم پراخ نه وو لکه چې د بهرنيو حاکمانو له راتګ سره زيات شو. که سومرا وي يا سمه، د کلوړا او تالپور رسم رواج، فرهنګ او ژبه له عامو وګړو سره يو شانته وه، نو ځکه د عامو وګړو ترمينځ کوم ډول اختلاف هم شتون نه درلود. له دې پرته د دوی په دوره کې، د سِند مرکزي حکومت په سِند کې شتون درلود او عامو وګړو هم له دغه حکومت څخه ګټه تر لاسه کول. د خراج په بڼه به دمشق، بغداد، غزني يا ډيلي ته نه استول کيده. د بيلګې په توګه، هيروډوټ ليکي: «د ستر داريوش په زمانه کې سِند ولآيت ايران ته د سروزرو ۲۳۱ منه ګانې د خراج په توګه ورکول.» (Herodotus, 1959) دغه ډول د امويانو او عباسيانو په دوره کې سِند ولايت هر کال ۱۵ سوه زره درهم د خراج په توګه ورکول. دريمه خبرا ده، چې د ملکي حکومتونو په دوره کې دولتي دندې سيمه ايزو خلکو ته ورکول کيدل. والي

او د پوځ قومندان به له کومې بلې سیمې څخه راتلل، تر څو په دوی حکومت وکړي خو د پوځ سرلښکر او عسکر به له بهر څخه راتلل.

که څه هم قریش هباري، ارغون او ترخان له بهر څخه راغلي ول، خو دوی په سِند کې میشت شول او د تل لپاره همدلته پاتې شول. ودونه به یې هم په همدې کورنیو کې کول او پکښې ګډ شول. برعکس؛ د مغلو په دوره کې سِند ولایت د محکومې سیمې حیثیت درلود. د دولت په ټولو چارو کې به ترکانو او ایرانیانو برخې اخیستل، دوی به هر ډول امتیازات درلودل، خو د سِند اوسیدونکو په دولت کې هیڅ ډول ونډه نه درلودل.

د سِندي او غیري سِند کورنیو په دوره کې د دغه توپیر سربېره، د انګرېزانو(۱۸۳۴ میلادي) له راتګ څخه مخکې د زرګونو کلونو په ترڅ کې، په ټولنه کښې هیڅ ډول بنسټیز بدلون ونه لیدل شو. حکومتونه به بدل شول، خو د حکومت کړنلاره به همغسې وه. نه خو د قبیلویت نظام بدلون وکړ، نه هم تولیدي ځواکونو او نه هم تولیدي اړیکو بدلون وکړ. کوم اوزار چې د ګوتم بد په زمانې کې کارول کیدل، هغه د مغلو په دورې کې هم رواج ول. حکومتونه به د یوبل وروسته بدلیدل خو کرنیز نظام همغسې پخوانی پاتې شو. که وکتل شي، د سِند حکومت په دوره کې هم د دربار فضا له ایرانیانو څخه ډکه وه. په دربار کې به فارسي ژبه ویل کیده، د دولتي دفاترو ژبه هم فارسي وه، لیک او لوست به هم په فارسي ژبې کیده، شاعرانو به هم په فارسي ژبې شعرونه ویل، کتابونه به هم په فارسي ژبې لیکل کیدل او کومې کورنۍ، چې به له ایران، عراق، ترکستان او افغانستان څخه راغلې، نو له دوی سره به امتیازي چلند کیده. دوی به په ډېرې آسانۍ ځمکې او دندې ترلاسه کولې.

د اسلام له نظره د ځمکې ښتن خدای پاک دی، خو په سلف کې ځمکه د ده شخصي ملکیت ګڼل کېږي، چې کښت پرې کوي. د بزګرانو په واسطه د ځمکو د کښت کولو اجازه نه وه. نو داکتر ضیاالحق په خپل څېړنیز کتاب کې یو تفصیلې بحث پرې کړی او د حدیثونو په واسطه یې دغه خبره Landlord and present in Early Islam ثبوت کړې، چې نبي کریم ص ځمکه د مزارعت په توګه ورکولو ممانعت کړی. (د داکتر صاحب له نظره یواځې هغه حدیثونه معتبر دي، چې د مزارعت د ممانعت لپاره راغلي او په کومو حدیثونو کې چې د مزارعت جواز ورکړل شوی، نو هغه د عباسي دورې وضع کړل شوي حدیثونه دي)، امام یوسف هم په خپل کتاب الخراج کې د کروندوګرو د ملکیت حق منلی دی. (عبدالرشید, ۱۹۶۲)

په اسلامي حکومتونو کې، د ځمکوالۍ نظام تړېولو له مخه د امویانو په دوره کې رواج وموندل. دوي د بازنطيني او ساساني باچاهانو په څير زیاتره ځمکې په خپلو کورنیو کې وویشلې او زیاتره ځمکې یې خلکو ته د انعام یا دندو ترسره کولو لپاره ورکړې. (K, 1958)دغه ډول کړنې ته [اقطاع] ویل کیږي. په سِند کې هم هله [اقطاع] رواج وموند، کله چې د بنې امیې په زمانه کې عربان دلته راغلل او میشت شول. د عباسیانو خلیفه المتوکل په زمانه کې(۸۴۷ میلادي- ۸۶۱ میلادي) چې پوځ نوی کړل شو، نو پوځي قومندانانو ته د اقطاع په توګه دلته ځمکې ورکړل شوې. (Shaban, 1976) دا د اقطاع یوه بله بڼه وه ځکه تر دې له مخه ځمکې دولتي ملازمینو ته د انعام په توګه ورکول کیدل، خو له دې وروسته د پوځ قومندانانو ته دغه ځمکې د پوځ د لګښتونو د پوره کولو لپاره ورکول کیدل.

د ډیلي سلطنت په دوره کې د اقطاع پیل تړېولو له مخه سلطان التمش(۱۲۱۰ میلادي-۱۲۳۶ میلادي) وکړ. (برنی ضیاء الدین، د فیروز شاهي تاریخ، ۳ مخ) د ده ځای ناستي هم له هغه څخه تقلید وکړ، نو بلبن د ډیلي د ساتلو لپاره د سلطنت زیاتره ځمکې په دوه زرو پښتنو باغیانو باندي وویشل. (Rahim, 1961)خو سلطان علاؤالدین خلجي، چې له مخه د الا آباد حاکم پاتې شوی وو، په لښکرو یې د ځمکو ورکولو لارې بندې کړي او پر ځای یې د دندې په مقابل کې معاشونه ورکول، خو پیروز تغلق یو ځل بیا پخوانی فرهنګ دود کړ. هغه عین الملک ته د ملتان ولایت، ملک بیر خان افغان ته یې د بهار ولآیت او ملک افغان خان ته یې د هیلکنډو ولایت د اقطاع په توګه وسپارل. د لودیانو په دوره کې، دغه رواج نور هم زور ونیوه. د اقطاع په مقابل کې به مقطیعان اړ ول، چې د خپلې سیمې د امنیت ساتلو لپاره پوځ وساتي او د سلطان په امر خپل لښکر د هغه دربار ته حاضر کړي، نو له جمال خان لودهي سره، چې د جینپور ستر ځمکوال وو، ۲۰ زره پوځ ولاړ وو. د پنجاب له ستر ځمکوال تاتارخان سره ۱۵ زره پوځ وو د آلاآباد له ځمکوال اعظم همایون سره ۴۵ زره فوځ وو. (ایضا، ۴۵ مخ)

د اقطاع لړۍ دومره وغځېدله، چې ځمکوالو به یې د ساتنې لپاره ورته واړه واړه ځمکوال ټاکل. د بیلګې په توګه، اعظم همایون، سیف خان د شپږزرو، دولت خان یې دڅلورو زرو او فېروز خان یې د شپږو زرو جریبو ځمکوال وټاکل، خو اسلام شاه سوري(۱۵۴۵ میلادي- ۱۵۵۳ میلادي) د سترو ځمکوالو د طاقت له مینځه وړلو لپاره [جمع ولایت را خالصه ساخت] یعنې ټول هیواد یې د دربار تابع کړ او د نغدو پیسو رایجېدو لپاره یې زیاتې هڅې وکړې. د ده په دوره کې [منصب داري] پیل شوه. دا یواځې پوځي بستونه ول او له ۵۰ تر ۶۰ زرو د پوځ قومندان ته د دولت خزانې څخه نقدې

پیسې ورکول کیدل، نه ځمکې. (دغه هغه افغان ځمکوال وو، چې په لومړیو کې له بابر او همایون سره وجنګېده او بیا د اکبر په خلاف راپورته شوه؛ اکبر ماته ورکړه او له دې وروسته د افغانانو حکومت له مینځه ولاړ، د دوی پرځای ترکان، مغل او ایرانیان وټاکل شول.) د مغولو په دوره کې ورو - ورو د اقطاع قانون له مینځه ولاړ او پر ځای یې خاني او منصب داري رواج وموند. (Khan, 1980)

د منصب دارۍ سیستم، د ناورینو په اړه ما په خپل کتاب[په پاکستان کې د فرهنګ تکامل] کې هر څه په تفصیل سره ذکر کړي. ما لیکي ول، چې د هند د لویې وچې د اقتصادي او سیاسي نظام شاتګ تر ټولو ستر لامل دغه فیوډالیزم دی. د دغه نظام له وجې په هیواد کې داسې ټولنیز حالات پیدا نشول، چې د پانګوالي نظام ته لاره هواره کړي، نه خو د صنعت ګرو، کډوالو او سوداګرو طبقه دومره پیاوړې وه، چې په سیاسي چارو کې ګډون وکړي یا هم د جګړې په واسطه واک خپل کړي او نه مو هم صنعت دومره پرمختګ کړی وو، چې له اروپا سره سیالي وکړي. دغه پریکړه په خپل ځای سیي ده، ځکه د منځنیو پیړیو تاریخي حالاتو ته په کتو سره بل کوم بدلون شونی نه وو. آیا د ډیلي سلاطین که څه هم هغه پښتانه ول یا مغول؛ له دغه ډول تاریخي تشدد څخه یې ځانونه خلاصولی شول؟ زما له نظره هیڅ شونی نه وو. پوښتنه دلته ده، چې د شخصي حکومتونو په دوره کې نماینده ادارې له سره تړلي وي. د خپل تخت ساتل به هر یو حاکم خپله بنسټیزه فریضه ګڼل. واضح خبره ده له پیاوړي باچا هم په یواځې ځان، ځان ساتلی نه شي، بلکې هغه اړ وي، چې له یوې طبقې سره اړیکې وساتي؛ د اړیکو د ساتلو لپاره باید هغه طبقه له ځان سره شریک کړي. د ډیلي سلاطینو دغه ډول اړیکې او وفادارۍ د ځمکو او منصب په ورکولو سره ترلاسه کړي وې.

د بیلګې په توګه، د ولایتونو امنیت خوندیتوب وسنجوئ، خو دغه حقیقت له ځان سره وساتئ، چې په اوولسمې او اتلسمې پیړۍ کې دومره آسانتیاوې نه وې، چې د مرکز او ولایاتو ترمینځ اړیکې ټینګې کړي، لکه نن چې دي. هغه وخت نه ګاډي ول او نه اورګاډي، نه الوتکې وې، نه تلیفونونه او نه مخابرې؛ هغه وخت یواځې دا شونې ول، چې د دربار ژمن او معتبر اومراء د ولایتونو د ساتلو لپاره واستوي. پیسې نه وې، چې نغدي معاشونه ورکړل شي. د سکو رواج ډېر کم وو. ځکه په فیوډالیزم کې په ډېرې کمې اندازې بازار ته شیان چمتو کیدل، نو د سکو اړتیا نه وه. دولتي ملازمینو ته به معاشونه د ځمکو یا جنس په بڼه ورکول کیدل. هیڅ یو باچا هم ونه توانید، چې د فیوډالیزم له دغه نظام څخه

ځان وساتي او ځینو چې هڅې کړې وې، هغه هم ناکامه شول. د علاؤالدین خلجي، محمد بن تغلق او اسلام شاه سوري تجربې څکه هم ناکامې شوې.

په دولتي چارو کې، د شراکت یوه بله بڼه داسې هم کیدای شي، چې د ولایاتو د خپلواکي حق باید تسلیم شوی وو او ټولې چارې یې باید ټاکل شوو استازو ته سپارلي وای، لکه څنګه چې په امریکا کې کیږي، خو دا هغه وخت شونې وه، کله چې پخپله مرکز کې هم د حکومت یو حاکم ټاکل کیده، خو په منځنیو پیړیو کې چې د حکومت حاکم د خلکو له خوا نه ټاکل کیده، بلکې د یو شخص په خوښه دا کار ترسره کیده او د هیواد اوسیدونکو ښاري حقوق نه درلودل؛ نو په داسې حالاتو کې د یو بل ډول حکومت جوړولو شونتیا بیخي نه وه. په منځنۍ پیړۍ کې هندوستان، د یونان له ۵ ق.م پیړۍ څخه دوه زره کاله شاته وو.

د مغولو سلطنت هم د فیوډالیزم په نظام ولاړ وو. که څه هم ځمکې د حکومت ملکیت ګڼل کیدل او د حکومت حاکم پر ځمکو هر ډول اختیارات درلودل، خو د استعمار له مخې ځمکې په څلورو ډولونو ویشل شوي ول. ۱- دولتي ۲- اجاره، ۳- انعام،۴- زمیندار/ځمکوال.. دولتي ځمکې به د باچا شخصي ملکیت ګڼل کیدلې. د مغولو په دوره کې، پخ سِند کې ځمکې ډېري کمې وې. (ایضا، ۱۲۷ مخ) او په دوو برخو ویشل شوي ول. لومړی سلطاني، چې ټوله شتمني یې په خزانه عامره کې جمع کیدل. دویم هغه ځمکې چې د والیانو، پوځي قومندانانو او حاکمانو د خرڅ لپاره ټاکل شوې وه، خو دغو به پخپله ځمکې نه کښتول او خلکو ته به یې په اجاره ورکول. [دغه ډول به ټول اقتصاد له ناورین سره مخ شو]. (حبیب) دغه ګیله سمه ده، چې دولتي منصبدارو به له دندې سربیره ځمکې څنګه کښت کولې. دوی اړ ول چې ځمکي په اجارو ورکړي. دولتي ځمکې به په عامه توګه کرنیزي ځمکي وې. د دغو ځمکو ټوله مجموعه به د ۴/۱ او ۱۱/۱ ترمینځ وه؛ یانې کله به زیاته شوه او کله به کمه. د شاه جهان په دوره کې، د دولتي ځمکو عاید دري میلیونه او ۱۵ سوه زره وه. (خاني خان، ۲۷۸ مخ) له شاه جهان وروسته دولتي ځمکې هم په اجارې ورکړل شوې. نظام الملک آصف جاه محمد شاه (۱۷۱۹ میلادي- ۱۷۴۸ میلادي) ته داسې وړاندیز کړی وو، چې د دولتي ځمکې په اجاره ورکولو سره هیواد کې ناورین رامینځه شوی. نو دغه طریقه باید له مینځه یوړل شي. (میرک, ۱۹۶۲) خو وړاندیز یې ونه منل شو.

۲- .... ځمکواله طبقه به د حکومت ښې لاس ګڼل کیده او تقریبا ۴/۳ ځمکې د دوی وې. مغولو چې اجاره داري او منصب داري یوځای کړه او د پوځي حکومت کوم نظام یي جوړ کړ، نو ځمکواله طبقه د باچا تابع وګرځېدل. د شاهي کورني له غړو نیولې تر وزیرانو او د ولایتونو والیانو به هم پوځي رتبې درلودې، ځکه به یې منصب دار ورته ویل. د منصب داری د بستونو ټاکل په همدغه زمانې کې رواج شول او د همدغې له مخې به دوی ته د معاش پرځای ځمکې ورکول کیدلې. نو [دوی به پوځیان، خانان او د دولت غړي ول]. د منصب دارو له مړینې وروسته به، هغه ټولي ځمکې بیرته حکومت ته تسلیمېدلې، ځکه دولتي دندې به میراثي نه وې، نو ځمکې به هم میراثي نه وې. د سترو سترو منصب دارانو (والي) ټاکل او تبدیلي هم کوم ځانګړی قانون نه درلود، بلکې د باچا په خوښي به هر څه ترسره کیدل. دوی به خپل فرایض له کوم ډول باور پرته ترسره کول.

ستر ځمکوال به ځیني وخت خپلو ځمکو ته تلل. دوی به له شاهي دربار سره تړلي ول او د عیش وعشرت ژوند به یې په ډیلي، آګرې او لاهور کې ترسره کول او د ځمکو ساتنه به یې په نورو خلکو کول. دوی د ځمکو د کښت، د شاړو ځمکو بیرته رغونې سره هیڅ ډول کار نه درلود. دوی به فکر کاوه، چې زموږ دغه منصب د څو ورځو لپاره دی. د تبدیلي امر خدای خبر څه وخت راشي، نو موږ بیا ولي خپل فکر خراب کړو، باید وخت غنیمت وګڼو او ښه ډېره شتمني ټوله کړو. دوی به خپلې ځمکې په اجاره ورکول او له وخت څخه مخکې یې له اجاره دارو پیسې اخیستلې. دغه پیسې به د [قبض] په نوم یادیدلې. د شاه جهان په دوره کې، خو خبره دې ځای ته ورسیدله کله چې به ځمکوال خپله ځمکه په اجاره ورکړه او په همدغه وخت که بل چا له هغه لوړ نرخ وایه، نو ځمکه به یې ترې واخیستل او دغه بل شخص ته به یې ورکړل. د دغې دربدری څخه داد او نه فریاد پورته کېدل. د پروفیسور عرفان حبیب د څېړنو له مخې، د سِند په ځمکو به سیمه ایزو خلکو هیڅ ډول برخې نه درلودې، حتی په دولتي ځمکو کې هم دغه قانون وو.

دا اجاره داری تر ټولو ستره ناروا دا وه، چې په سِند کې یو سِندي کروندګر ترې بې برخې وو. نو د شاه جهان د دورې ترټولو مستند تاریخ پوه یوسف میرک، چې پخپله ځمکوال وو(د ده پلار میرابوالقاسم او غټ ورور میرابوالقادر دواړه والیان پاتې شوي ول) د مرزا عیسی خان ترخان په اړه لیکي:

«چا به چې ورته وویل، چې د پلانکي شخص مال گذاري ۲۰۰۰۰ ده، د ۱۰۰۰۰۰ په بدل کې يې ورکړه نو هغه به نه منل ځکه هغه خبر وو:

«درعمل اجاره ویرانی ملک است، چراکه درعمل اجاره دست خاکم از رعیت برآیدد دست مستاجر برانها قائم شودومردم مستاجر حسب خواهش خود آنچه می دانند بررعیت غریب می کنند عمل اجاره اگرچه اول مرتبه مانند آتش کردر کاه خشک می گیرد خوشتر وروشن می نماید، اما اخرش نتیجه سیاهی وخاکستری مطلق می دهد.» (د مظفر شاه تاریخ، ۵۳ مخ)

۳............ [سیور غال] یا د معاش پرځای: هغه ځمکې وې، چې د ښوونځیو او مدارسو یا علماء، فضلاء او سترو مخورو کورنیو ته په خیرات کې ورکول کیدل. د علم او پوهې د پرمختگ دغه تگ لاره ارغونو پیل کړې ول. تراخانانو هم دغه فرهنگ وساته، خو[د معاش پرځای د ځمکو ورکولو یو شرط وو چې دنده لرونکی به د وخت د حاکم وفادار وي]. (انصار) دغه ډول ارغونو او ترخانانو په سِند کې د تعلیم یافته خلکو یوه ډېره مهمه طبقه جوړه کړه، چې گټې يې له حکومت سره تړلې وې. د مغولو په دوره کې دغه ځمکې نورې هم زیاتې شوې، د بیلگې په توگه بکهر کې میرعدل ته پنځوس زره جریبه ځمکه د سیورغال په توگه ورکول شوې وه، خو د اورنگ زیب تر مخه دغه کار میراثي نه وو او له دې وروسته اورنگ زیب میراثي کړ. د داکتر انصار ذاهد له نظره په سِند کې د دغه ډول ځمکو مجموعه رقبه له ۲۵، ۳۰ سلنې څخه کمه نه وه. کله چې دغه میراثي شوه، نو پایله يې داسې وه [چې په سِند کې د پخوانیو علماوو او پیرانو په کورنیو کې نور هم زیاتوالي راغئ او ورو ورو ډېر قوي فیوډالیستان ترې جوړ شول]. (ایضا، ۱۲۹ مخ) له دغو کورنیو څخه خو علم او پوهه په دوه پښته نسلونو کې له مینځه ولاړه خو ځمکې پاتې وي، د پیرۍ او مریدۍ کاروبار ډېر پرمختگ وکړ.

۴........ څلورمه طبقه، چې تر ډېره يې پر ځمکو څه نا څه حقوق درلودل؛ د ځمکوالو طبقه وه. دغه اصطلاح ډېره پیچلې ده. د محمد شاه په دوره کې نامتو قاموس لیکونکي آنند رام په [مراةالاصطلاح] کې لیکي چې ځمکوال په لغت کې [د ځمکې خاوند] ته ویل کیږي، خو اوس هر هغه شخص ته ځمکوال ویل کیږي چې په کلي کې د ځمکو [څښتن] وي او کښت هم وکړي. (حبیب پ. ) د ځمکوالو اصطلاح د مغولو په دوره کې هم کارول کیده، نو [اکبري قانون] او [د عالم گیری په نسخو] دواړه کې د ځمکوالو یادونه شوې او عبد القادر بدایوني په منتخب التواریخ کې د مالوه نامتو مشر باز بهادر په اړه لیکي:

« باز بهادر خان، چې له خپلو ځینو اومراوو سره تېښته کړې وه، د نورو ځمکوالو په مرستې یې پیر محمد خان باندې یرغل وکړ.» (منتخب التواریخ، دویم ټوک، انگلیسي،۴۷ مخ, ۱۸۸۸) په یوې بلې پیښې کې هغه د [بیوزلو ځمکوالو] یادونه هم کوي.» ( ۱۵ مخ, ایضا)

د تاریخ مظهر شاه جهاني شهادت له دې څخه هم ډېر معتبر دی. هغه د سِند د کلیو په اړه لیکي [ائمه ای دیار چار قسم اند] په دې کې ځمکوال په څلورمه کټګورۍ کې راخیستل شوي دي.

مردم زمیندار اند که تعلق به اربابی ومقدمی نیز دارند، وچو زمیندارانند زمین های خوب پرحاصل از جاهای نیک درتحت چک های خود گرفته اند ومردم رعیت محتاج ان ها، بغیر گرفتن مساعدت و کندن جوی آب، زمین های ان ها را مزروع نمایند چاه چه اکثر زمین های ان مردم مزروع می شود ومحنت در آبادانی چک های خود نمی برند..... (د مظفر شاه تاریخ، ۱۹۱ مخ)

د تاریخ مظهر شاه جهاني له نظره، چې د سِند ځمکوال په کلیو کې اوسي او له کروندګرو سره په مستقیم ډول اړیکې لري. دوی د خپلو ځمکو خپله ښتن ول، پخپله یې نه کرلې، نو له بزګرانو څخه به یې کار اخیسته. زیاتره وخت به د ځمکو اربابان سیمه ایز ځمکوال ول، نو واضح خبره ده، چې د دوی ګټې په فیوډالیزم کې نغښتې وې، خو دوی د ځمکوالو تابع نه ول. د بیلګې په توګه، یوسف میرک لیکي:

«ما یو ځل د سهوان حاکم ته وړاندیز وکړ، چې د سمیحه قوم پلاني باغي باید سرقلم کړل شي او یرغل پرې وکړئ، نو(بعض زمینداران سهوان این حرف را خوش نه کردند؛ د سهوان ځیني ځمکوالو باندې زما دا خبره ښه ونه لګېده) او د یرغل وړاندیز رد شو». ( ۱۳۱ مخ, ایضا) پروفیسور عرفان حبیب وایي، چې ځمکوال به له عامو بزګرو څخه لوړ شمیرل کیدل. دوی کولای شول، چې خپل کروندګر وشړي. د دوی ځمکې به میراثي وې او دوي کولای شول چې خپلې ځمکې وپلوري.

د یوسف میرک له قوله چیرته، چې [بیداد ګر، ناپرسان او بیکسان او هلته بې شمیره څناور او بې ضمیره خلک] شتون ولري، هلته به د بیوزلو بزګرو چیغه څوک واوري. دوي ځمکې کري او محصولات ترې اخلي، خو په ځمکې هیڅ ډول اختیار هم نه لري او کوم محصولات، چې په خپلو لاسو ترلاسه کوي د دې زیاته برخه ځمکوال، اجاره دار، علماء، پیران، شیخان ترې اخلي. څه چې پاتې شي نو په ډول ډول [دودونو] کې یې لګوي. پایله داسې وي، چې د محصولاتو له زیاتوالي خو

پرېبږده، دوی د دولتي ملازمينو او اجاره دارانو له چوروچپاول څخه بېزاره شي، ځنګلونو ته مخه کوي او له وخت سره داړه ماران او غله ترې جوړ شي، چې بيا نور خلک لوټوي.

په سِند کې، په کُلي توګه د[غله بخشی] يانې د محصولاتو ويشلو دود وو، نو د ترخانو په دوره کې له بزګرو څخه د ځمکو د خرېبولو د اسانتياوو په مقابل کې، د محصولاتو ۲/۱، ۳/۱ او ۴/۱ برخې اخيستل کيدل. د يوسف ميرک له قوله، هيواد جوړ وو، خلک ښه ول خو د ځمکوالو په دوره کې له بزګرو څخه خراج مقاسمه پرته، دوی به اړ ول، چې بې شميره دودونه ترسره کړي؛ دغو دودونو ته به يې ستم شريک يا فروعي واجبات يا ساير جهات ويل کيدل. د قانون له نظره دغه واجبات له سره ناوړه ول، خو د قانون جوړونکوو چې پخپله دغه اخيستل، نو د بزګرو به چا منلې وه.

«به تهمت های باطله سکان ای ديار را از آزاد های ګونا ګون داده، زياده از جرايم آنها جرمانه که از طاقت بشر دور است مقرمی سازند چنانچه مردم هلاک می ګردند».

«دوی د نارواوو واجباتو په اخيستلو سره د هيواد وګړي په ډول ډول ستونزو کې ښکېل کړي. دوی دومره زياتې جرمانې وضع کوي، چې د بشر له وسې بهر وي نو په پايله کې خلک مړه شي». ( ۱۵۳ مخ, ايضا )

د سِند کليوالي آبادي په دوو برخو ويشل شوې ول. حضری او بدی. هغه کلي چې د سِند درياب ته نږدې ول؛ د دغو ځايونو وګړو ته به لاندهي يا ګوټ ويل کيدل. زياتره نفوس په همدغو سيمو کې اوسيدل او د اوبو له وجې د دغو ځمکو محصولات ډېر ښه ول. برعکس غرنيو او صحرايي سيمو کې چې کوچيان اوسيدل؛ ډېر وروسته پاتې ول. دوی به کوم مستقل ځای نه درلوده، بلکې د کرنيزو ځمکو په لټه کې به له خپلو مالونو سره له يوځای څخه بل ځای ته کډوال کيدل. د دوی لنډمهاله سيمو يا کليو ته به څړځای ويل کيدل. دوی به کيږدۍ لرلې او دغو کيږديو جوړ کلي ته به تومان ويل کيده. د تومان مشر ته به تومان دار ويل کيده. دوی به زياتر بلوڅان ول، د دوی له ميلمستياو، وفاداريو او زړورتياو څخه متلونه جوړ شوي. په هر تومان کې، به يوه د ميلمنو کوټه وه او د تومان هر يو شخص به د ميلمستيا د مصارفو لپاره تومان ته شپږمه ٦/١ برخه ورکوله. (په بلوچستان کې څه موده تر مخه هم شپږمه رواج وه ) دغه بلوڅ قبيلې به د بهکر او ټټه په لويديځ کې غرنيو سيمو کې اوسيدل. د دوی په مرستې د کلهوړا سردار واک ترلاسه کړو.

د شاه جهان د واکمنۍ په وروستيو کې، د حاکمو له ظلمونو څخه او د ځمکوالو له استثمار سره د سِند اقتصادي وضعيت ورځ تر بلې خرابيده او خلک ډېر په تنگ راغلل. ډېر قومونه، دبيلگې په توگه سميچه، بلوڅ او نهمردی داسې قومونه ول، چې بيخي يې د مغولو اطاعت نه وو قبول کړی. د دوی له مينځه وړلو لپاره واليانو به په مسلسه توگه له پوځي طاقتونو څخه کار اخيست، نو د يوسف ميرک کتاب[سرکش] د دغو قومونو د مينځه وړلو په اړه ليکل شوی او زياتره کيسې يې پکښې رانقل کړي. امنيت دومره خراب وو، چې د سهوان ښار حاکم نشوای کولای له خپلې کلا څخه ووځي، تر څو د ښار وضعيت وڅاري او د کلا مخې ته به يې به هره ورځ غلاوې او قتلونه کيدل. د لاهري بندر او ټټې ترمينځ، د سوداگريزو قافلو ساتنه به د پوځ تر څارنې لاندې وړل کيدل.

په سِند کې به بارانونه ډېر کم کيدل، نو د کرنې لپاره د ډېرو اوبو اړتيا وه. کوم حاکم چې کانالونه جوړ کړل، نو هغه په دغه برخه کې کامياب شو او کومو چې کانالونه ونه ايستل هغوی ناکامه پاتې شول. مغولو دغه چارې ځمکوالو ته ورپه غاړه کړي وې. که چيرته کانالونه ايستل شوي ول؛ نو هيواد به د هر ځل له وچکالۍ څخه ژغورل شوی وو او کډاولو کورنيو به هم ډېر ښه ژوند درلود. د حيرانتيا خبره ده، چې د اورنگ زيب په څير يو پوه شخص هم د سِنديانو د سرکښۍ له اصلي لامل څخه خبر نه وو. هغه داسې هم فکر ونه کړ، چې د سمچه او نهمردي په څير قومونه يې، چې په زور سره خپل تابع گرځولي ول، د معاش په لټه کې به اړ شول، چې کرنيزو سيمو ته کډوال شي او د يوسف ميرک په څېر يو نامتو تاريخ پوه هم شاه جهان ته دغه وړانديز کوي: [مردم مفسد ومتمرد غير از ضربت شمشير به طريق نيک رام نمی شود] (مفسدين او قانون ماتوونکي بايد د تورې په زور تابع شي). خو هغه خپله دغه مني، که کوم پوه ځمکوال يا حاکم چې په شاړو ځمکو کې د اوبو آسانتياوي را منځته کړې، يا به يې باغيانو ته ځمکې ورکړې، نو وضعيت پخپله ارام شو. د بيلگې په توگه، پرگنه چندوکه(لاړکانه) کې او ميرا بره يو لوی کانال وايست (چې ترواسه شتون لري) نو شاړې ځمکې کرنيزو ځمکو ته واوښتل او هلته زياتره ښارونه جوړ شول. دغه ډول سمچه، ابره او سانگي قومونو پخپله کانالونه وايستل او نوي کلي رامينځته شول، په لږ وخت کې زياتره بزگر دلته اباد شول او کرنيزي ځمکې سلو زرو ته ورسيدې او دولتي خراج هم ۳۰،۴۰ سلنې ته ورسيدل. (۵۴ مخ, ايضا)

په ۱۷۰۷ ميلادي کې، اورنگ زيب په ډېر خراب وضعيت کې، د دکن ښار اورنگ آباد کې ومړ. له دې وروسته د شاهي تخت ترلاسه کولو لپاره جگړې پيل شوې او په هيواد کې ملک الطوائفۍ رواج

وموند، نن هم هر يو شخص پرې خبر دی. په ځنکدن کې اورنګ زيب  وصيت کړی وو، چې درې واړه زامن مې دې ټول سلطنت په خپلو کې وويشي خو کوم چلند چې ده پخپله له پلار او وروڼو سره کړی وو، نو په داسې حالت کې يې له خپلو زامنو څخه داسې توقع لرل، چې دوی به دپلار په وصيت عمل وکړي؛ هسې بې ځايه خبره وه. شهزاده آعظم له شهزاده معظم سره د جګړې په حالت کې وموړ. بيا د کام بخش کار تمام شو او شهزاده معظم د نړۍ لومړي شاه په لقب سره په تخت کېناست، خو د څلورو کلونو وروسته مړ شو او د ده څلوار واړه زامن جهان دار شاه، عظيم الشان، جهان شاه رفيع الشان په خپلو کې جګړې وکړې. جهان دار شاه دري واړه ورونه ووژل او خپله باچا شو، خو يو کال وروسته د عظيم الشان زوی فرخ سير د ډيلي په لال قلعه کې خپل تره په دار کړ او خپله باچا شو(۱۷۱۳ ميلادي). د شپږو کلونو په لنډ مهاله دوره کې شپږ تنه د تخت دعوه داران ووژل شول او يواځې يو په خپل مرګ مړ شو.

په دغه له غمه ډکه زمانه کې صوفي شاه عنايت هم ژوند کوه.

**د مغولو سلطنت د زوال لاملونه:**

د مغولو سلطنت که څه هم ښه پيل درلود، خو زوال يې ډېر خطرناک وو. داسې مالوميږي، چې ګوندې دغه ستر سلطنت د بوټو کوډلې په څېر وو، چې د يو تيز باد په راتلو سره ړنګيږي، خو د زوال نښانې د اورنګ زيب د پای په ورځو کې څرګندې شوې. هلته سپينږيري باچا خپل ټول توان د دکن په جګړو کې صرف کړی وو. دلته د سلطنت پخواني ملګري له يو بل وروسته له ده څخه جلا شول. زامن، اومراء، ايرانيان، جټ، بنديل، راټهور، سي سوډيا؛ هيڅ يو هم د باچا له سياسي ستراتيژيو څخه خوښ نه ول. د وچکالۍ له وجې، چې سلطنت له کوم ډول ناورين سره مخ شو، سلطان پرې ښه پوهيده، نو ګيله کوي [ازناياپي آدم کار،آه، آه] تس پرويز سعدالله خان وويل:

« زما سلطانه، پوه اشخاص په هر يوه زمانه کې وي، خو د خودخواهۍ پرته، د دوی زړونه ګټل او د دوی په وسيلې د سلطنت چارې پرمخ وړل، د پوهو سلطانانو کار وي». اورنګ زيب په دغه خبري پوه شوی وو او هغه د سعدالله خان دغه وړانديز مني، خو په داسې وخت کې چې هر څه له مينځه تللي ول. په مسلک کې بدلون اوس دهغه د وس خبره نه وه.» (د عالمګير ليکونه، ۴۰ مخ)

د اورنگ زیب نامتو تاریخ پوه سرجاودنات د سلطنت د زوال بې شمیره علتونه/وجوهات بیان کړي. د بیلګې په توګه، د اورنګ زیب ناوړه سیاسي کړنلارې، د ده د ځای ناستو ناوړه کړنې او د دربار د امراوو تنبلي او خودخواهي، خو دا د حیرانتیا خبره ده، چې د فیوډالیزم په څیر ناوړه نظام په اړه ده ولې سترګې پټې کړي وې، که وکتل شي د ټولو ناورینو کړنو رېښه دغه نظام وو، چې خپل تاریخ یې پوره کړی وو او اوس د هیڅ ډول پرمختګ څرک پکښې نه لیدل کیده.

خو له دغه حقیقت څخه انکارنه شي کیدلای، چې د سلطنت په زوال کې د اورنګ زیب د ځای ناستو ناوړه کړنې هم وې. دغه شهزاده ګان، چې د ناز په زانګو کې را لوی شوي ول او دوی ته د سلطنت د مخته وړلو درسونه ورکول شوي نه وو، په مسخرو، بانډارونو او د خوښۍ په محفلونو کې یې ټول وخت لګولی وو او کله چې اقتدار ته رسیدل نو ونه توانیدل، چې دغه عادتونه پریږدي؛ په اړه یې یو تاریخ پوه لیکي:

« په اتلسمې پیړۍ کې، د ډیلي د تخت د ځای ناستو روزنه داسې شوې وه، کله چې دوی ځوانان شول نو له بهوسۍ یې په نورو تکیې کولې. دوی به په آزاد ډول هیڅ فکر هم نه شوکولای او نه به یې په خپله خوښه پریکړې کولای شوې. د دوی ذهنونه ډېر کمزوري شوي ول او دننه مړه ول، نو د وخت تیرولو لپاره به هغو فحشاخانو کې له ښځو سره په مسخرو او خوښیو بوخت ول او کله چې به په تخت کښیناستل، نو د سلطنت ټولې چارې به یې وزیرانو ته وسپارل، له دې وروسته د اومراء ترمینځ سیالي پیل شول او کله چې به د کوم ځواکمن وزیر له اقتدار څخه وویریدل؛ نو د مینځه وړلو لپاره به یې له نورو سره یوځای شول، چې په پای کې به خپله هم ووژل شول». (سرکار, سرجادو نات)

د شخصي حکومت تر ټولو ستره نیمګړتیا دا وه / ده، چې د حکومت د تکامل او پرمختګ ټولې چارې په شخصیت، اهلیت او خلګو پېژندني ورکول کیدې. که په باچا کې د حکومت کولو وړتیا وه، نو امنیت به ښه وو، حکومت ته پوه وزیران او حکام ورپه برخه کیدل او خلکو به هم تر ډېره حده ښه ژوند درلود، خو کله چې به باچا تنبل وو، نو د سلطنت پایله به هغسې وه، لکه څنګه چې د مغولو او ترکانو ول. د شخصي او مطلق العنان سلطنتونو تاریخ د همدغه ډول پیښو او کیسو ډک دی. که څه هم هغه د رومیانو سلطنت وي، یا د عباسیانو او یا د مغولو. که رېښتیا وویل شي، نو د اورنګ زیب په یوه ځای ناستي کې هم د یو ولایت د مخته وړلو وړتیاوې نه وې، نو هغو به څنګه یو ستر سلطنت پرمخ وړه، چې په آبادي او رقبه کې د اروپا په څیر وو.

د اومراء په طبقه کې چې کومو خلکو د سلطنت چارې پرمخ وړلای شوې، نن هغوی هم دا کارنه شي کولای. د اورنگ زیب له مخه د سترې دولتي څوکۍ لپاره له دریو ډلو څخه خلک ټاکل کیدل. لومړۍ هغه ډله، چې له ایران او ترکستان څخه به راتلل، چې په خپلو وړتیاوو به یې دولتي دربار ته ځانونه رسول. دویم، نوي مسلمان شوي سیمه ایز اومراء او اشراف او دریم راجپوت او کآیت.. د اورنگ زیب په زمانه کې له بهر څخه د خلکو په راتگ بندیزونه ولگیدل. راجپوت اومراء هم له یو بل وروسته سره جلا شول. د ده سربېره، د هندوستان مسلمان اومراء او توراني نژاد ترمینځ د واک پر سر جگړې پیل شوې. له اورنگ زیب وروسته، د دغه سیالیو په ترڅ کې خو زیاتره خلک ووژل شول. د بیلگې په توگه نظام الملک آصف جاه د دکن ولایت درې واړه حریفانو ته ماته ورکړل او ولایت یې خپل کړ. دغه ډول د گجرات ولایت لپاره شجاعت خان، سر بلند خان او رستم خان تر مینځ جگړې وشوې. شجاعت خان او سربلند خان ووژل شول او رستم علي خان ماتې وخوړل. په سِند کې نواب عطر خان د فرخ سیر په دوره کې د ټټې ولآیت والي وټاکل شو. سمدلاسه یې له میرلطف خان سره جگړه وکړه. دغه جگړې یو کال وخت ونیوه، تر هغه وخته چې عطر خان ووژل شو او میر لطف علي خان د سِند والي شو. د حیرانتیا خبره دا ده، چې د شاهي دربار د احکامو مخالفت کولو سربېره فرخ سیر، میر لطف علي خان ته د شجاعت خطاب وکړ. (Irvaine, Laters Mughals, Vol.11,P.311)
له دې وروسته د ډیلي دربار د بیلابېلو سازشونو اډانه شو. د توراني، ایراني او هندوستاني اومراء ترمینځ سیاسي لانجې پیل شوې. هیچا هم د سلطنت د راتلونکي په اړه فکر ونه کړ. د ده سربېره، د عالم گیر په دوره کې زیاتره اومراء د شهزاده گانو لپاره خپل ځانونه قربان کړي ول. ځینې چې پاتې ول، د دربار له حالاتو څخه په تنگ راغلل او ترې ولاړل.

فرخ سیر (۱۷۱۳ میلادي-۱۷۱۹ میلادي) یو ډېر ظالم، ټنبل او عیش پرسته انسان وو. هغه، د خپل تره په وژلو بسنه ونه کړه بلکې د هر شخص له خوا به چې یې گواښ احساس کړ، هغه به یې وواژه. د امیر الااومراء ذوالفقار خان او راجه سبهٍ چند دیوان ژبې یې پرې کړې. د جهان دار شاه د دورې زیاتره اومراء یې قتل کړل. د جهان دار د زوی اعزالدین، د اعظم شاه زوی او خپل کشر ورور همایون بخت یې ړانده او زندان ته یې کړل. ښار نه وو، سم د محشر میدان وو. د چا پوښتنه هم نه کیدل او نه هم د ځان او مال امنیت وو. له دغو حالاتو څخه شاه حاتم دهلوي ناهیلی شو او یو نظم یې ولیکه چې د هغه زمانې یو حقیقي انځور وړاندې کوي، هغه لیکي:

شهروں کے بیچ عدالت کی کچھ نشانی نہیں
امیروں کی بیچ سپاہی کی قدر دانی نہیں
بزرگوں‌کی بیچ کہیں بوئے مہربانی نہیں
تواضع کھانے کی چاہو کہیں تو پانی نہیں
گویا جہاں سے جاتا رہا سخاوت و پیار
امیر زادے ہیں حیران اپنے حال کے بیچ
تھے آفتاب پر اب آگئے زوال کے بیچ
پھرے ہیں چرغے سے بردن تلاش مال کے بیچ
وہی گھمنڈ امارت ہے پرخیال کے بیچ
خدا جوچاہے تو پہر ہو، پر اب تو ہے دشوار

میر جعفر زټلی (زیږیدنه:۱۶۵۷ میلادي) د دغې دورې یو نامتو شاعر وو، چې په خندا خندا به یې خلک خوښ ساتل او خپله خپټه به یې پرې ساتل، خو وضعیت دومره خراب شو چې هغه څه ونه لیکل. هغه به خپلو شعرونو کې د شهزاده ګانو د تنبلۍ او د دوی په خپلو کې د جګړو په اړه لیکل کول او کله به یې د ټولنیز ناورین په اړه کلمې په شاعرانه انداز سره یو ځای کړې. د شهزاده معظم شاه په اړه لیکي:

نخستین کلاں، ترکه برکھنڈ کرو
همه کاروبار پدر بھنڈ کرو
چناں لوٹ شد بستی بھگ نگر
نه خذ ماصفاماند نه ماکدر
جهاں ہودے ایسے کلچہن سپوت
د محمد اعظم شاه په اړه داسې لیکي،
دگرشاه اعظم همه کندور
به خوش دامن وخسپوره ساخته
ساس اور سالے کے ساتھ مل کر
فرستذ ایں ناں بہ شب پان پھول

د دوی خاطرې يي بيان کړي، او د خلکو د ناهيلی ذکر داسې کوي:

رلت کے آنسوؤں جگ روتا ہے
نہ میٹھی نیند کوئی سوتا ہے
صدائے توپ وبندوق است ہر سو
بسر اسباب وبندوق است هر سو
دو ادو هر طرف بھاگڑ پڑی ہے
بچه درگود، سر کٹھیا پڑی ہے
کٹالٹ و لٹالٹ ہست ہر سو
جھٹاجھٹ و پھٹاپھٹ ہست ہر سو
بر هر سو مارمار دھاڑ دھاڑ است
اُچل چال وتبر خنجر کٹار است

فرخ سیر، چې کله باچا شو نو په سکې يې دغه شعر ضرب کړل شو:

سکه زد از فضل حق برسیم وزر        پادشاه بحر وبر فرخ سیر

میر جفر زټلي د دغو سیکو په اړه وویل:

سکه زد بر گندم وموٹھ ومٹر
بادشاه پشه کش فرخ سیر

شاعر به څه خبر وو، چې دغه ډول ناپوه باچا به د یو شعر په مقابل کې دی ووژني. جعفر زټلي د اردو ژبې يواځينی شاعر وو، چې خپل يو شعر ورته بلا وګرځېده او ووژل شو. صوفي عنايت شاه هم د فرخ سير په دوره کې شهيد شو.

**د صوفي شاه عنايت خوځښت:**

کله چې صوفي شاه عنايت په جوک کې تبليغ پيل کړ، نو هغه وخت د سِند زياتره علماو، پيرانو او سيدانو خپل ديني فرايض پرېښودلي ول او په ځانګړي توګه ځمکوال شول. پدغه تياره دوره کې د

صوفي شاه عنایت علم او فضل، د هغه له خدای څخه ویره او خلکو ته په ریښتیني توګه د خدمتونو وړاندې کولو، زیاتره خلک خپل ځانته جذب کړل، خو صوفي شاه عنایت د پخوانیو صوفیانو په څیر نه وو، چې د حالاتو د بدلون پرځای یواځې د صبر او قناعت خبرې به یې ورته کولې او ویل به یې:

«دنیا دوې ورځې ده، تاسو ته پکار ده چې هغې دنیا ته توښه برابره کړئ.»

هغه داسې عالم هم نه وو چې یواځې د دولت مساوي وېش د محمدي مساوات اساس وګڼي. که څه هم د دولت پیدا کولو وسیلې ځمکه، فابریکې، کارخانې، بانک او همداسې نور که د ځینو اشخاصو شخصي ملکیت وي، نو د دولت مساوي وېش به څنګه شونی وي. صوفي شاه عنایت د اقتصاد د قانون پټ راز پیدا کړی وو، چې له هر څه مخکې د تولیداتو پیدا کولو عمل دی او رېښتیني مساوات هغه دی، چې د تولید د پیدا کولو په وخت کې قائم وي، نه چې د وېش به حالت کې؛ که وکتل شي د داړه مارانو او دغلو د ډلو ترمینځ هم په اخر کې مالونه وېشل کیږي او په ګډه یې خوري. که رېښتیا ووایو، په عدالت سره د شتمنیو وېش د تولیداتو د پیدا کولو په دوره کې د مساوي ګډون پرته شونې هم نه ده، نو صوفي شاه عنایت د تولیداتو د پیدا کولو په دوره کې په مساوي ګډون/شرکت باندې ټینګار کوي. د هغه عقیده وه، چې د محمدي مساواتو بنسټیزه غوښتنه دا ده، چې کرنیزې کړنې باید په ټولنیزو اصولو ترسره کړای شي، د تولید د پیدا کولو په دوره کې باید ټول په ګډه کار وکړي او محصول یې باید په پای کې خپلو مینځو کې وویشل شي. د صوفي شاه عنایت مریدانو دغه وړاندیز په خوښۍ قبول کړ او په ګډه په کرنیزو چارو کې بوخت شول.

ټولنیز کرنیز نظام د صوفي شاه عنایت جوړ کړل شوې نظریه نه وه، بلکې د ده له مخه هم په ډېرو قبیلوي نظامونو کې ټولنیز کښت دود وو. ښایي، د صوفي صاحب په زمانه کې په ځینو غرنیو سیمو کې په ځانګړې توګه، په بلوڅو قومونو کې دغه طریقه رواج وه او صوفي صاحب د دغه طریقې ګټې درک کړې وې. دی، د سید محمد جنپوري(۱۴۴۳ میلادي- ۱۵۰۵ میلادي) له خوځښت څخه هم ډېر اغیزمن وو، ځکه سید محمد جنپوري د سمه حاکم جام ننداپه دوره کې یونیم کال په ټټې کې پاتې شو او زیاتره خلک چې میا آدم شاه کلهوړا هم پکښې وو، د ده مریدان شول. سید محمد جنپوري د مهدي موعود کیدلو دعوا کړې وه، ستر پیر وو. ده خپل مهدوي کورنۍ ته د [دایرې] نوم ورکړی وو، چې د بشپړ مساوات او ابدیت نښان وو. په دوی کښې د شتمنو او بیوزلو ترمینځ هیڅ ډول توپیر نه وو.

مریدانو په دایره کې ټولنیز ژوند تیروه او د ژوند اړتیاوې یې په خپلو کې په ګډه وېشلې. (تحفته الکرام، ۳۰۹-۳۱۰ مخونه)

د صوفي شاه عنایت تجربه ډېره کامیابه شوه. په جوک کې میشتو بیوزلو هیڅ ډول خیرات نه ورکوو او نه به یې ډول - ډول دودونه ترسره کول، نو د صوفي شاه عنایت نوم تر لریو پرتو سیمو ورسید او په هر ځای کې د ده د نوې تجربې خبرې وې. په تحفه الکرام کې لیکل شوي دي، چې [فقرائ بلری خاندان شان به معائنه فروغ ومجد ای سلسله از آنها بریده با هامی پیوستند]. (اکرام, لاهور)

کوم بیوزلي چې له بلری کورنۍ سره تړلي ول، دوی د صوفي شاه عنایت طریقې ته وکتل او د ساداتو کورنۍ یې پرېښودې.

نو [فقیرانو د سِند سادات کورنۍ پرېښودل او د دوی خلاف شول]. (Razvi, 1958)

د دغه خوځښت له مقبولیت سره یواځې د سادات کورنۍ مریدان کم نشول، بلکې د نږدې سیمو بزګران هم ترې اغیزمن شول. [ور زمین ایشان فقر ارګ وریشه دوانده بودند] ( د صوفي شاه عنایت فقیرانو د هغو په ځمکو کې هم کار کوې. یعنې د ټولنیز کرنیز نظام تبلیغ به یې کوئ). پایله دا شوه، چې د ځمکوالو بزګرانو به غوښتنې کولې، چې زموږ په ځمکو کې دې هم د صوفي شاه عنایت طریقه رواج شي، خو په محصولاتو کې د مساوي ګډون اصول ځمکوالو هیڅکله هم نشوای منلای. دوي داسي وانګیرل، که چیرته د دغه انقلابي فتنې ژر تر ژره پای ته ونه رسوو؛ نو په سِند کې به د فیوډالیزم نظام له مینځه یوړل شي. دغه مهال ځمکوال راپورته شول، چې په دوی کښې د بلړي شاه عبدالکریم ځای ناستی سید عبدالواسع او د شیخ ذکریا بهاؤالدین ځای ناستی شیخ سراج الدین او د پلیجان ځمکوال نور محمد منبه پلیجو او حمل بن لاکاټ یو ګام مخته ول، دوي د ټټې والي میرلطف خان ته وویل چې د صوفي شاه عنایت د ټولنیز کرنیز نظام مخه باید ونیول شي. والي هیڅ ډول اختیار نه پرې درلود، ځکه د صوفي ټولې ځمکې د معاش پرځای ورکړل شوې وې. نو ورته ویې ویل: «زه نشم کولای، چې په دغه قضیه کې د حکومت له لورې لاسوهنه وکړم، خو ځمکوالو ته یې اجازه ورکړه، چې تاسو که هر ډول د صوفي او د هغه له فقیرانو سره کوئ؛ واک مو خپل دی. د والي له خبرو وروسته ځمکوالو په جوک یرغل وکړ، ځینې فقیران ووژل شول. د شهداینو وارثینو د ځمکوالو دغه ډول بې قانوني اړوند په دربار کې عریضه وکړه، نو له هغه ځایه حکم صادر شو، چې ځمکوال دې راشي او د بې ګناهو خلکو د وینو تویولو حساب دې راکړي. ځکه دوی د شاهي دربار خلاف عمل

کړی وو، نو د ويني د بدل په مقابل کې د دوي ځمکې ترې واخيستل شوې او د شهيدانو وارثينو ته ورکړل شوې. (تحفته الکرام، ۱۷۰ مخ)

د فقيرانو د دغه ډول قانوني بريا له مخې، د شاوخوا بزګرانو کې وينې وغوړېدلې او د دولتي حکامو او ځمکوالو هغه د لومړيو په څير دبدبه پاتې نه وه بلکې :

کثر غر باوسائر مردم اضلاع در مهد امان

آ اهل الله از جنگ تظلم زمینداران

رهائی یافته مامون نشستند

له دې څخه مالوميږي، چې دصوفي شاه عنايت بزګرانو خوځښت د کښتني سِند تر زياتو ولسواليو رسيدلی وو او له صوفي صاحب سره زياتره خلک اوږه په اوږه ولاړ ول، له دې ورسته دوی دومره ځواکمن شول، چې ځمکوال زياتره بې وسه شول. له دغه نظره [د زمانې له ستم او ظلم څخه زيات فقيران په تنګ راغلل، له دوی سره يوځای شول او له هرې خانقاه څخه د همه اوست نعرې بدرګه کيدې]. (ايضا، ۴۹۵ مخ)

کله چې فرخ سير وليدل، ميرلطف علي خان له بېوزلو بزګرانو سره په خورا نرمۍ مخ ته روان دی، هغه يې ګوښه کړو او په ۱۷۱٦ ميلادي کې يې نواب اعظم خان د ټټه والي وټاکئ. ځمکوالو له دغې تبديلۍ ګټه پورته کړل او د اعظم خان غوږونه يې ډک کړل. کيدای شي نواب له صوفي سره شخصي دښمني درلودل. ويل کيږي، يو ځل اعظم خان د صوفي شاه عنايت ليدنې ته ورغی، مريدانو يې هغه ته وويل چې حضرت په خپل ذکر بوخت دی، نو هغه ته يې اجازه ورنه کړه. کله چې يې له صوفي سره ليدل، نو اعظم خان ورته وويل [در درويش را دربان نه شايد] (د درويش په دروازه، ساتونکی ښه نه ايسي) صوفي صاحب په زغرده جواب ورکړ[به شايد تا سگ دنيا نه امد](سمه ده ترڅو د نړۍ سپي را نه شي) . ځکه خو له دې وروسته د اعظم خان او صوفي ترمينځ شخصي اختلافات رامينځته شول. (قانع, مقالات الشعر (فارسي)، ۳۰ مخ)

دغه کيسه رېښتيا وي که درواغ، نواب اعظم خان له دې وروسته د ټولنيز کرنيز خوځښت د مينځه وړلو پريکړه وکړه او جګړې يې پيل کړې. ده له صوفي شاه عنايت څخه واجبات وغوښتل، چې [ممنوعه سلطاني] ول. صوفي ځواب ورکړ چې دغه واجبات خو د باچا له خوا بخښل شوي دي، نو ته د اخيستلو څه حق لري. له دغه ځواب سره نواب نور هم په قهر شو. هغه باچا ته عريضه وليکل،

چې صوفي شاه عنایت او د هغه مریدان د سلطنت دعوې کوي او د خدای د خلیفه له حکم څخه منکر دي. ( ۳۰ ـ۳۱, ایضا) فرخ سیر د حقیقت پلټلو پرته حکم صادر کړ، چې باغیان باید د تورو په زور اطاعت ته اړ کړل شي.

له مرکز څخه د اجازې موندلو وروسته په جوک د یرغل لپاره تیاري ونیول شوه. هغه د سِند ټولو حاکمانو ته لیک ولیکه چې خپل عسکر د مرستې لپاره راولیږي.

«میا یار محمد کلوره و سائر زمینداران و جملگی اهل و احشام ای الکه، که با فقیرا کینه کهنه می داشتند، احکام اعانت حاصل کرده با افواج برون از احاطه شمار واز مور ملخ بسیار، که از حد سیوی د اور تا کنار دریا شور جمع آمده بود، بر فقر اگرد آمدند» (مهر)

صوفي شاه عنایت خورا سوله خوښوونکی پیر وو. کله چې دی د ځمکوالو له مخالفت څخه او د اعظم خان له پوځ څخه خبر شو، نو هغه افسوس وکړ چې ما د مینې بازار ته دا ګټه د دې لپاره راوړې نه وه او نه زه غواړم چې دغه ډول غوغا دې برپا شي، چې د جګړې میدان ته ولاړ شو. کله چې د دښمن پوځ د جوک پر لور رهي شول، نو مریدانو /فقیرانو وړاندیز وکړ، موږ به په لاره دوی باندې حمله وکړو، ترڅو لاره ترې ورکه شي او جوک له محاصرې وژغورل شي، خو د خدای بنده دغه وړاندیز قبول نه کړ.

جوک د مریدانو تر ټولو امن کلی وو، حتی د پوځیانو پوسته لا پکښې نه وه. له مریدانو سره د جګړې اوزار نه ول، که څه ول هغه هم ډېره ساده ول، خو له دښمن سره[توپہائے پیل کش رویین] ( ډېرې درنې وسلې وې، حتی دومره درنې چې فیل به یې هم وژلی شو). خو د میا یار محمد (خدا یار خان کلهوړا والا بهکر) او میران سنګ کهتري ملتاني لیکونه، چې د جګړې د میدان هره پیښه پکښې لیکلې، څرګندیږي چې په پخوانیو زمانو کې د جوک شاوخواته دختو جوړ پلن دیوالونه ول او ژور ژور خندقونه هم کښل شوي ول چې له اوبو ډک کړل شوي ول. (خان م. ن.، ۱۹۶۴)

میا یار محمد د جوک د محاصرې په وخت کې خپل زوی میا نور محمد ته به فارسي ژبه کې یو لیک لیکلی، له هغه څخه مالومیږي چې شاهي لښکر د ۱۷۱۷ میلادي په د اکتوبر ۱۲ کې یا له هغه څخه درې څلور ورځې تر مخه له تهل څخه وتلی وو او جوک ته ورسید او له کلي لیرې په یو میل واټن کې پاتې شو، خو دا څرګنده نه شو چې د حمله کونکو او مریدانو شمیر څومره وو. د میران

سنگ ملتاني له ليک څخه مالوميږي، چې د نواب اعظم پوځ کم وو او جگړه په اصل کې د خدا يار خان بې شميره پوځ او مريدانو ترمينځ وشوه. هغه ليکي [قلعه مفسد] له يوې خوا خدا يار خان محاصره کړې وه او د[به آواز بندوقهای برق شرائر وجزائر عد نوائر هوش ربائی مقهور شدند] (برېښنا په څير مرمۍ چې د ټوپکو له خولو وتلې او هرې خواته اوازونه ول، پر دښمن ووريدې)، بلې خواته نواب اعظم خان پوسته اچولې وه او په[به تير وخدنگ هنگامه آرائی معرکه جنگ گرديدنه] ( تيرو يي د جگړې غوغا جوړه کړه) ميران سنگ د خپل ميا خدا يار خان پوځي تاکتيکونو او د شاهي لښکر ښه والی په ډېري ښه انداز واضح کړئ. د مريدانو لښکر لس زره سواره ښيي، چې سل په سل غلط/دروااغ دی. له دوی سره دومره آسونه له کومه شول، څکه دوی خو دومره نفوس نه درلود. ميا يار محمد په خپل ليک کې، د مريدانو د شپې د حملې په اړه ليکي چې د دوی شمير اولس سوه پياده ول، چې[درحقيقت روح تمام مفسدان بود]. له ده داسې گومان کولای شو چې د مريدانو شمير له ۲۰۰۰ څخه زيات نه وو او له دوی سره درنې وسلې بيخي نه وې.

د شپې يرغل د ۱۷۱۷ ميلادي د اکتوبر په دولسمه هغه وخت پېښ شو، کله چې شاهي لښکر جوک محاصره کړی وو. ميا يار محمد ليکي:

«د يک شنبې شپه وه. زموږ لښکر منتظر وو. تراوسه يوه شپه لا پاتې وه، چې د مفسدينو يو زر اوسوه لښکر د شپې پر موږ راغلل او لښکر کې گډ شول او پرته له کومې وېرې يې حملې پيل کړې، نو د لښکر ډېر خلک گټور ثابت شول، زموږ سربازانو زيات ووژل او په کم شمير مفسيدينو خپل ځانونه وژغورل». (منشور اول وصيت، ۳۳ـ۴۵)

په دغه حمله کې زياتره پهورا منان ورسره قاسم د گهرام زوي او سيد بوله د ټټې وکيل، زموږ ورور د هيچه قوم احمد بوکاني او زياتره نور څمکوال ووژل شول.

کله چې دغه حمله پيل شوه، نو هغو سربازانو چې د يار محمد له خيمې سره پيره ورکوله[تيت شول] (کيدای شي له قصده) خو بخت ته گوره چې د يار محمد دوا ږهزامن ميا داؤد او ميا غلام حسين او ورور مير محمد بن ميا نصير محمد په عين وخت کې حاضر ول. نو دوی [غبار فتنه راباآب شمشير فرونشاندند] (د فتنې لوخړې يې د تورې په اوبو ورکي کړې). په دغه جگړه کې ميا غلام حسين ټپي شو.

له محاصرې دوه میاشتې تیرې شوې، خو شاهې لښکر له دومره درنو وسلو سربېره جوک ترخپلې ولکې لاندې نه کړ. د همدغې خبرې لپاره صاحبزاده حسین خان او زیاترو نورو ځمکوالو خپل لښکرونه د نواب اعظم مرستې ته جوک ته ولېږدول، خو کیدای شي په همدغه ورځو کې سیلاب را [گرد قلعه مفسد طغیانی آب بمرتبه بود که از چهار طرف تازه کرده نشان خشکی نمایان نمی شد] (د صوفي عنایت د کلا شاوخواته دومره زیاتې اوبه وې چې د پنځو میلو په واټن کې وچه ځمکه نه لیدل کیدل) نو له یوې طریقه د صاحبزاده صاحب پوځ له اوبو تیر شول او د جوک له کلا سره یي پوسته واچوله. د میا یار محمد زوی ارجمند د دغې کیسې په اړه لیکي:

سپاه پادشاهی، فتح یابا
عد وازسوز غم، بس دل کبابا
سپاه بادشاهی در شکر خند
عدو چو غنچه، دستار از سر افگند
سپاه پادشاهی، دل کشاده
عدو چو بوم، در ویران فتاده
سپاه پادشاهی، شادوفیرز
عدو ولشکرش، ناشا دودل سوز
سپاه پادشاهی پر نشاط است
عدو هردم به غم هم ارتباط است
سپاه پادشاهی روبه شادی
عدو عاجز، بدست نامرادی
سپاه پادشاهی پرشکوه است
عدو از جان خود هر جا ستوه است
سپاه پادشاهی، دل خروشان
عدو چو مردگان، از لب خموشان
سپاه پادشاهی، نصرت اندوز
نشسته بر عدو پیکان جگردوز

په پای کې هغه  لیکي چې صاحب زاده بلند اقبال به ډېر ژر [آن بدسگال لعین] (صوفي شاه عنایت) ووژني یا زنداني کړي. (۳۹, ایضا)

له دغه خبرې دوه میاشتې تیرې شوې، چې د مریدانو په مقاوت کې کمی راغی، خو شاهي پوځ ونه توانېد، چې له مینځه یې یوسي. بیا داسې وشول چې یو سهار [خان والا شان او نواب عالي مکان] پر فیلانو سپاره شول [شیرانه او دلیرانه] د جوک کلا ته ورسیدل او [دلیر نبر کیش و ولاورانه شهامت اندیش] ته وویل، چې لومړی ته دغه قلعه په توپونو ووله او له مینځه یې یوسه بیا به موږ په مریدانو / فقیرانو حمله وکړو او د تورو په زور به یې نیست و نابود کړو، خو ناخبره هلته د صوفي یو جاسوس شتون درلود. هغه مریدان د دښمن  له دغه ډول پلان څخه خبر کړل، چې بیا دغه پلان کامیابه نه شو.

د څلورو میاشتو لپاره محاصره ول. له مریدانو سره توپونه او ټوپکونه نه ول، نو هغوی د شپې له حملې بله چاره نه درلودل. دغه طریقه دومره ګټوره ثابت شوه. چې د میر علي شیر قانع له قوله «حمله کوونکي بیخې د تباهی لحظې ته رسیدلي ول». (تحفته الکرام، ۳۱۱) صوفي شاه عنایت مریدانو ته وویل، چې د شپې حملې په ډېر احتیاط سره کوئ، خو یوه شپه په غلطی کې د یو مرید له خولې د (الله) چیغه ووتله او نور هم ورسره بدرګه کړه، چې له بده مرغه په لښکر کې خپل او پردي وپیژندل شول او زیاتره مریدان ووژل شول. (ایضا)

په شاهي لښکر کې، د جاسوسانو شتون او له دغې چیغې څخه لښکر کې[خپل او پردي څرګند شول]. داسې انګیرل کیږي، چې ځیني مریدان له دښمن سره په پټه یوځای شوي ول او دوي داسې ښودل چې موږ د خپل لښکر سره یو. که وګورو د شاهي لښکر عسکر له لریو پرتو سیمو څخه راغلي ول او له جوک سره دوی هیڅ اړیکې نه درلودلې،  نو دا کوم بد کار نه وو چې دوي له نوابانو او ځمکوالو څخه جلا کړل شي. زموږ له دغه ډول ګومان/قیاس څخه د محاصرې اوږد والي او ناکامی ته نور هم قوي اسناد ورپه برخه کیږي.

د شپو د حملو له ماتې څخه مریدان که څه هم زیانمن شول، خو د دوی حوصلې لوړې وې او له دښمن سره لا جنګیدل. په پای کې چې د فتحي کومه شونتیا نه وه؛ نو دښمن له چل و فریب څخه کار واخیسته او د ۱۷۱۸ میلادي د جنوري په اوله یې د صوفي شاه عنایت مخې ته د سولې وړاندیز وړاندې کړ. [د میا خدایار خان کلهوړا زوی محمد خان او شهداد بلوڅ سربېره ځینو نورو سپه سالارانو قرآن مخې ته کړ او قسم یې پرې واخیست، چې مریدانو ته به ځاني او مالي زیان نه

ورسيږي]. (مقالات الشعرفارسي، مخ ۳۳) د صوفي شاه عنايت ځينو ملګرو، د هغه د پوهولو ډېري هڅې وکړې، چې دغه قسمونه او وعدې د دښمن چال دی. د دوی په خبرو مه تېر وځه او جګړه روانه وساته، خو خدای پرست صوفي د قرآن په قسمونو څنګه شک کولای شوای؟ نو ده د سولې وړانديز قبول کړو. د جوک قلعه پرانيستل شوه او شاهي پوځ د وينو تويونې پرته ټوله سيمه تر خپلې ولکې لاندې کړې. وروسته بيا صوفي شاه عاآيت په ډېر درناوي سره د نواب اعظم خان خيمې ته په توافق نامې باندې د امضاء لپاره په يو چل يووړل شو، هلته چې څنګه ورسيد، نو په لاسو کې يې ورته زنځيرونه واچول او زنداني يې کړ.

بيا د شاهي انتقام اور د جوک خواته لاړ او مريدان يې قتل عام کړل. د دوی کورونه وسوځول شول، شتمنې يې لوټ کړل شوه او د کلي چاپير ديوالونه يې ونړول. د جوک ټولنيز نظام له مينځه يوړل شو. نه د کښت کولو لپاره خلک پاتې شول او نه محصولاتو اخيستلو لپاره.

کله چې يې جوک نيست ونابود کړ، نو نواب اعظم له دې وروسته بېرته ټټه ته ولاړ او صوفي شاه عنايت يې دربار ته يووړ. مير علی شير قانع ليکي، د والي او صوفي تر مينځ چې کومې سوال او ځواب وشو هغه[يو ډېر اوږد داستان] دی. لنډه يې دا: نواب چې کومې پوښتنې وکړې، صوفي شاه عنايت د هغه ځوابونه د خواجه حافظ شيرازي په سبک ورکړل. ( ۳۴ـ۳۵, ايضا)

صوفي شاه عنايت:

آ روز که تو سن فلک ذی کردند

آرائش مشتری زپردين کردند

اين بود نصيب ماز ديوان قضا

مارا چه گنه، قسمت ما اين گردند

شاعر شيخ رضا محمد چې د نواب څنګ ته ناست وو، هغه وويل:

دوست بيدار بشو، عالم خواب است اينجا

حرف بيهوده مګو پاء حساب است اينجا

صوفي شاه عنايت:

در کوئ نيک نامی مارا ګذرنه دادند

ګر تو نمی پسندی، تغير کن قضا را

اعظم خان: بیا خو زما قهر ته اماده اوسه.
شاه عنایت الله: البلاء للولاء کاللهب للذهب
اعظم خان: تا ولي ځان بدنامه کړو او د قهر ښکار شوې.
شاه عنایت:
عاشق چه کند گر نه کشد بار ملامت
باهیج دلاور سپر تیر قضا نیست
اعظم خان: اوس خو بې له هغې ته وژل کیږې، نو خبره ولې دومره اوږده کړو.
شاه عنایت:
هرگز نه میرد آنکه دلش زنده شد زعشق
ثبت است برجریدۀ عالم دوام ما
اعظم خان: د وخت د حاکم اطاعت دې ولي پرې ښوده؟
شاه عنایت:
ما مریدان روبه سوئ کعبه چون آریم چون
روبه سوئ خانه خمار دارد پیر ما
اعظم خان: اوس نو د خپلو هیلو ناکامۍ غم مه ژاړه.
شاه عنایت:
من ازان دم که وضو ساختم از چشمه ای عشق
چار تکبیر زدم بر هرچه که است
کله چې اعظم خان ولیدل، دغه شخص له ما څخه وېره نه لري او نه په خپلو کړنو شرمنده دی او نه هم د ځان د ژغورلو لپاره له ما څخه بخښنه غواړي؛ نو حکم یې وکړ چې دغه گستاخ صوفي زندان ته کړي. په تلو - تلو کې شاه عنایت دغه شعر ووایه:
ساقیا برخیزدر ده جام را
خاک برسر کن غام ایام را
د ۱۷۱۸ میلادي کال د جنوري په اومه د اعظم خان په امر د صوفي شاه عنایت الله سر پرې کړل شو. په وروستیو کې یې دغه شعر له ځان سره تکرار کړو:

رهایندی مرا از قید هستی

جز اک الله فی الدارین خیرا

صوفي شاه عنایت شهید کړل شو. بې شمیره مریدان یې ورته ووژل او د جوک کلی نیست ونابود شو. بیا هم حاکم دومره وېره درلودل، چې هغه د مریدانو له نامه لړزېده. اعظم خان حکم کړی وو، که چیرته د چا له خولې د [الله] لغت واوریدل شو (چې د مریدان د تکبیر کلمه وه) نو سر یې په توره ورته قلم کړئ. د دغه امر په اړه، میر علي شیر قانع لیکي[سبحان الله! چه خدایی است که به عوض نام گرفتن خود سرمی کرد بلی عشق بازان را همی سر راه است]

( سبحان الله! دا نو څه ډول خدای دی، چې د ده نوم پر اخیستلو د خلکو سرونه قلم کیږي، خو د عاشقانو دغه لاره ده).

موږ داسې نه شوویلای، چې د اعظم خان او صوفي ترمینځ دغه داستان تر کومه حد معتبر دی یا رېښتینی، خو په دې کې هیڅ شک نشته چې صوفي تر پایه په خپلو اصولو ولاړ وو. تر پایه له خپلو اصولو پرشا نه شو.

د تحفة الکرام له مخه میا یار محمد کلهوړا ته د سترو خدمتونو په مقابل کې د شماداتي او چاچکا د لکري، دندا، حجام، دورنک، رجب، پسر، پاچاته، ټهور او دیا سائي ډنه سیمې د انعام په توګه ورکړل شوې. دغه ډول په سِند کې د ټولنیز کرنیز نظام او د دولت عادلانه وېش لومړی تجربه پای ته ورسیدل.

صوفي شاه عنایت، د فیوډالیزم په دوره کې ټولنیز کرنیز نظام یعنې د سوسیالیزم له مخه د تولید طریقې او وېش د دودولو بې سارې هڅې وکړې. د ده، دغه کړنلاره د ستاینې وړ ده او د ده د ملګرو قربانۍ ته درناوی لرو، خو د ټولنیز تکامل پر قانون هیڅوک هم اختیار نلري. کوم شخص که څومره هم ستر انقلابي وي او د خلکو خدمت له جذبې څخه څومره هم مالامال وي، دغه قانون له مینځهنه شي وړی. صوفي شاه عنایت ډېره نیکه هیله درلودل، خو تقدیرونه یواځې په هیلو نه بدلیږي. د ده خوب ډېر د خوشحالۍ خوب وو خو هغه دغه خوب لږ تر لږه دوه پیړی تر مخه لیده، چې د دغه خوب په حقیقت بدلولو لپاره نه صحیح او نه هم مصنوعي حالاتو شتون درلودل. نه هم تولیدي ځواکونو دومره پرمختګ کړی وو، چې فیوډالیزم له مینځه یوسي او نه هم زیارکښو د سوسیالیزم تاریخي شعور موندلی وو (دغه شعور نن هم خورا کم دی. ژباړن)، د اتلسمې پیړۍ زیارکښه طبقه په

سِند کې داسې فکر هم نشوای کولای، چې د فیوډالانو او ځمکوالو سیاسي ځواک له مینځه یوسي او واکمني دي خپله کړي.( د جوک اوسیدونکو هیڅکله هم دا فکر ونه کړ، چې په ټټې باندې ولکه وکړي، نو د سِند خبره ډېره لیري ده). په داسې وخت کې د صوفي شاه عنایت تجربه خامخا ناکامه وه، خو د بهرنیو سیاسي حالاتو له وجې نه، بلکه دننه د جوک د خلکو په وسیله.

صوفي شاه عنایت د خپلې تجربې له تاریخي اهمیت څخه نه وو خبر او نه هم په دغه خبر وو، چې ټولنیز کرنیز نظام به ځمکوالو ته څومره زیانمن ثابت شي. په ظاهره دغه تحریک ډېر وړوکی وو، خو صوفي له دغه حقیقت څخه بې خبره وو چې دغه خوځښت په توفاني طاقتونو کې راګیر دی، چې له وخت سره به د فیوډالیزم نظام ریښې له مینځه یوسي. په دغه خوځښت کې، د خلکو وسلوالو پاڅونو وړتیاوې هم وې. د بیلګې په توګه، کله چې مریدانو وړاندیز وکړ، چې د نواب پر پوځ به نیمه لاره کې یرغل وکړو تر څو پر دښمن لاره ورکه شي او د جوک د محاصره کولو موکې هم له لاسه ورکړي، نو صوفي عنایت دغه وړاندیز قبول نه کړ او په دفاعي مقاومت یې بسنه وکړه. دغه ډول د جګړې له مخه د جګړې پایله څرګنده وه، ځکه دفاعي جګړه هر کله له ماتې سره مخ کیږي.( دغه تیروتنه په۱۸۵۷ میلادي کې د ډیلي کلا بند لښکر هم وکړه او انګریزانو ته یې موقع ورکړه، چې له پنجاب او نورو سیمو څخه خپل پوځ را داخل کړي او پر ډیلي باندې برید وکړي). دوي په کلا کې بند پاتې شول او دښمن ته یې موکه ورکړه او خپلې اړیکې یې د سِند له خلکو سره وشلولې. دغه وجه ده، چې د سِند بزګرانو د مریدانو هڅې خپلې هڅې ونه ګڼلې. پایله دا شوه، چې د جوک مریدان په یواځې ډول وجنګیدل. په سِند کې د دوي کوم مرستندویه پیدا نشول.

دغه پریکړه پر خپل ځای سیي ده، خو د صوفي شاه عنایت دغه تاریخي کړنه څه کمه نه ده، چې ده د ټولنیز کرنیز نظام تجربه کامیابه ثابته کړه، که چیرته ځمکوال او فیوډالان نه وي نو کرنیز نظام په خورا ښو طریقو پرمخ وړل کیږي او د سیالۍ او دښمنۍ پر ځای خلک له یوبل سره مرستې کوي. دا هم څرګند شول، چې حکومت هرکله د حاکمو طبقو ساتنه کوي او له دوی سره ولاړ وي، د دې پر ځای چې له اولس سره همغږی اوسي. د افسوس خبره دا ده چې د تاریخ په کتابونو کې خو د محمد بن قاسم، محمود غزنوي او احمد شاه ابدالي د حملو یادونه په زیاته اندازه شوې، خو زموږ نوی نسل د صوفي شاه عنایت الله په څیر د شهید له نوم سره اشنا نه دي یا یې هم بیخي نه پیژني.

# پنځم څپرکی

# لومړی باغي او لومړنی سیاسي بندي

د [پرومیتیوس] نړیواله ډرامه د ایس کای لس شهکار دی. تر ننه کوم پنځوونکي، د علم، وهمپالني او روښانفکري تر مینځ دومره ژور انځور نه دی وړاندې کړی او نه به هم کوم شخص دا کار ترسره کړي.

د یروشلم یهودو علماوو چې تورات اوډه، نو هغه وخت د خلقت په کتاب کې، د شیطان د بغاوت کیسه لیکل شوې وه، نو دوی له دې څخه نه ول خبر، چې د یونان یو بزګر شاعر هیسډ (۷۸۰ میلادي) تقریباً دوه نیمې پیړۍ وړاندې د یو بل باغي کیسه د نظم په بڼه په قلم لیکلې. د دغه باغي نوم پرومیتیوس وو، چا چې د پخواني یونان د ستر خدای زیوس بې احترامې کړې وه او خپله جزاء یې ولیدل، خو د شیطان د اصلي کیسې او پرمیتیوس د کیسې تر مینځ د ځمکې او آسمان توپیر دی. د روایت له مخې، شیطان د انسان تل پاتې دښمن دی. د ده یواځینی کار خلک ګمراه کول دي. هغه د ناروا کړنو نښان دی، خو پرومیتیوس د انسان رېښتینی ملګری دی. د زیوس له نظره د هغه تیروتنه دا

ده، چې ده انسانانو ته ډول - ډول علوم و فنون وښودل، حتی د اور کارول یې هم ورښودل چې د زیوس ترټولو پټ راز وو.

د آسماني طاقتونو پر خلاف، د بغاوت فکر که څه هم د ځمکي طاقتونو خلاف له بغاوت سره تړلی دی، نو که چیرته د بغاوت په ټولنیزي بڼې فکر وکړو؛ دا به بېځایه نه وي. بغاوت، د شته حکومت یا دودیز قانون یا دودیزو عقایدو خلاف د نه منلو اعلان کول دي. بغاوت د فکر منفي انداز دی، چې د حالاتو له جبر سره تشدد مومي. باغي د هیڅ ډول خبرې پروا نه لري. د حال سختي پرې دومره زور وکړي، چې هغه د راتلونکي په اړه هیڅ فکر هم نه کوي، بلکې کله چې ترې بېزاره / زړه تنګی شي، نو دغه چیغه ترې ووځي.

جس کهیت سے دہقاں کو میسر نہ ہو روٹی
اس کهیت کے ہر خوشہ گندم کو جلا دو
(اقبال)

یا د مخدوم دغه چیغه:

پھونک دو کن کو اگر کن کا تماشا ہے یہی
زندگی چھین لو دنیا سے جو دنیا ہے یہی

دا هم اړینه نه ده، چې بغاوت د ټولنیزو اړیکو د بدلون لپاره ګټور ثابت شي. د بیلګې په توګه: د بزګرانو، مریانو او زیارکښو لومړی بغاوت له میلاد تر مخه، په اتلسمې پېړۍ کې په مصر کې رامینځته شو.

له دغه ډول بغاوت سره په ټول هېواد کې غوغا جوړه شوه. فرعون له تخت څخه ګوښه کړل شو، اومراوو او فیوډالانو خپلې ماڼۍ پرېښودې. د پخوانیو فرعونیانو په مقبرو کې چې کومې شتمنۍ خښې شوې وې (فرعونیانو به خپل مړي سره د هغه ټوله شتمني هم خښوله. ژباړن). په شاهي ګودامونو باغیانو ولکه وکړه، څه یې چې موندل، ټول یې په خپلو کې ووېشل او د خراج ټولې نسخې یې وسوځولې. د یو پخواني کیسه لیکونکي له نظره ځمکه بېخي وڅرخېدل. ځکه بیوزولو د خپلو شتمنو حاکمانو په کورونو کې ژوند پیل کړل او هغلته اوسېدل. (Manferd, 1974)

خو دغه بغاوت لنډمهاله وو. وجه دا وه چې زيارکښو کولای شول، حکومتي نظام ګډوډ کړي، ځکه له ظلم او زياتي څخه تر پوزې رسيدلي وو، خو توليدي ځواکونوپه دېوخت کې دومره پرمختګ نه وو کړی، چې د مرييتابه نظام له مينځه يوسي او د پانګوالي يا سوسياليزم نظام را منځته کړي، لکه څنګه چې د فرانسې انقلاب يا روسيې تر انقلاب وروسته وشول. نو په مصر کې تر لنډې مودې وروسته فرعونيانو بيرته واک خپل کړ. ښايي، چې د بغاوت له وجې مريانو، بزګرانو او زيارکښو ته ځيني مراعاتونه ورکول شوي وي، خو باغيان ونه توانيدل، چې د هيواد په ټولنيزو اړيکو کې کوم بنسټيز بدلون راوړي او نه يې په وس کې ول.

په ټولنيزو او توليدي اړيکو کې د بدلون راوستلو ته انقلاب وايي. دا د ټولنيز تکامل پړاو دی، کله چې ټولنه دغه پړاو ته ورسيږي؛ نو په فکر او تګلاره کې منفي طريقې مثبت اړخ مومي او له دغه حالت څخه تېر شي، نو راتلونکي ته يو ښه زېری دی. انقلاب هم تخريب دی او هم تعمير. نو هر باغي ته پکار ده، چې انقلابي واوسي، خو هر باغي انقلابي کېدلای نه شي او نه هم هر بغاوت انقلاب ته لاره هواروي. له دغه نظره، شيطان باغي دی، خو انقلابي ندی، خو که وکتل شي پروميتيوس هم باغي دی او هم ستر انقلابي. چا چې د داستان له نظره انسانان د حيوانانو له ليکې جلا کړل، د شيانو يو باشعوره خالق يې رامنځته کړ.

د بغاوت نظريه د طبقاتي ټولنې منطقي رد عمل دی. باغي نظريات هېڅکله هم په غير طبقاتي ټولنو کې ځای نه نيسي، ځکه په قبيلوي ټولنه کې يو وحدت حاکم وو، له اقتصادي او هم اعتقادي پلوه. په دغه ټولنه کې، د حاکم او محکوم، شتمنو او بيوزلو ترمينځ هېڅ ډول توپير شتون نه درلود. د قبيلې قوانين، د خپلو تجربو او د ژوند له غوښتنو څخه رېښه مونده او د قبيلې د ټولنيز ژوند استازيتوب به يې کاوه. کوم بهرنی ځواک نه توانيده، چې دغه قوانين وضع کړي او نه هم له ازله وضع کېدل. نو د انګلس له قوله د قبيلويت نظام:

«د ټولنې د اوسېدلو په حالاتو کې يو ډول مساوات شتون درلود او د کورنيو د مشرانو ترمينځ يو ډول ټولنيزو پړاونو شتون درلود، خو که هر څه وو، ټولنيزو طبقې شتون نه درلود. دغه ښه وروسته بيا د مهذبو قومونو په پخوانيو کرنيزو کليو کې پاتې شول. دغه ډول په هر ټولنه کې داسې له لومړيو څخه ځيني داسې مشترک عناصر ول، چې ساتنه يې وګړي کوي، د بيلګې په توګه، په ټولو د يوې حملې

دفاع کول، د اوبو د رسولو چارې په ځانګړي توګه په ګرم سیرو هېوادونو کې او په لومړیو دورو کې د مذهبي دودونو ترسره کول.» (Engels, 1962)

د قبیلې دننه د اختیار او اطاعت اړیکي سل په سل وې، خو له مشر سره د قبیلې د اخلاقي عناصرو پرته بل کوم ځواک نه وو. نه پولیس، نه پوځ، نه هم زندانونه. د اینګلس له قوله، د دغه ډول نیمګړتیاوو له وجې بیا هم  د قبیلې وګړو له زړه د خپل مشر درناوی کاوه. کوم اختیارات چې دغه مشرانو درلودل او کومه مینه، چې د قبیلې وګړو له خپل مشر سره درلودل، وروسته بیا سترو باچاهانو ته هم نصیب نه شول.

د بغاوت د نظریې مینځته ته راتلل، د دغې خبرې شاهدي ورکوي، چې په ټولنه کې هغه پخوانی یووالی پاتې نه وو، بلکې اوس هغه په طبقاتو وېشل شوي او ګټې په خپلو کې سره وهي. په طبقاتو له وېشلو څخه موخه دا ده، چې پخوانیو طریقو بدلون کړی. د دولت او د دولت پیدا کولو وسیلې، د ځینو ځانګړو اشخاصو خصوصي ملکیت ګرځېدلي او دغه دولت مریان، کروند ګر او زیارکښ پیدا کوي، چې تر استثمار لاندې دي. حکومتونه د دغه نظام د جبر او استثمار د ساتنې لپاره مینځته راغلل او بیا په ټولنو کې سیاسي او فکري بغاوتونه پیل شول. د حکومت د مینځته راتلو له مخه موږ د کومې ځمکې یا ټولنیز بغاوت څرک نه شوموندلی.

دا سیی ده، چې انسان په طبیعت کې د شته شیاتو عبادت د حکومت مینځته راتلو له مخه پیل کړی. کوم ځواک چې ګټه یې ورته رسول، له هغه سره به یې مینه کول، د بیلګې په توګه، مادر ګیتي چې د ټولو د زېږیدو مور ګڼل کېدل او لمر، سپوږمی، اور، اوبه.... او همداسې نور. برعکس؛ له کومو ځواکونو څخه چې دوی وېریدل او زیانونه یې ورته رسول؛ نو دوي به هڅې کولې، تر څو د هغوی زړه خپل کړي. د بیلګې په توګه: سیلاب، طوفان، ناروغی، مرګ.... او همداسې نور. ګټور ځواک یې [خیر] باله، زیانمن ځواک به [شر] بلل کېده، خو د دغو طاقتونو سربېره دیومالایي نظام د ملوکیت په دوره کې مینځته راغی. نو النوع خدای یې له دغو ټولو ښېګڼو سره جوړ کړ، چې د باچا او د هغه په درباریانو کې را څرګند شول. د خدایانو خدای د هستي مالک وګڼل شو او نور خدایان یې د هغه وزیران، اومراء او زامن وګڼل. د ټولې هستی د ستر خدای چارې هم د ځمکو له خدایانو څخه سترې ګڼل کېدې. په مصر کې، دغه رتبه آمون رع ته ورکړل شوه، بابل کې مردوک ته، ایران کې یزدا ته، هندوستان کې برهما ته او په یونان کې زیوس ته. د دغو هیوادونو که په ځانګړي توګه د یونان دیومالا

ولوستل شي؛ نو داسې به فکر وکړئ، چې ګونډې د منځنيو پيړيو د بادشاهيت دوره لولئ. هغه د اقتدار لپاره جګړې، هغه ډول درباري ناورينونه، هغه عياشيانې، د عشق او عاشقۍ ډيوې او هغه ډول کړنې چې په شاهي ماڼيو کې ترسره کېدل، د اولمپس غره د خدايانو د زړه ساتلو لپاره يې ډول ډول شيان اماده کول.

کټ مټ لکه په ځمکه به چې باچا د تخت ترلاسه کولو لپاره له خپلو وړونو او زامنو سره جګړې کولې او په وژلو يې هيڅ ډول صرفه نه کول، دغه ډول زيوس د نړۍ اقتدار ترلاسه کولو لپاره خپل پلار کرونس(وخت) وواژه. ويل کيږي، د زيوس نيکه يورانس(عرش/آسمان) د نطفې او د مادر ګېتي له بطن څخه اوه(۷) زامن وزيږيدل چې ګډ نوم يې طيطان وو. بيا يې د وخت په تيريدو نور زامن هم پيدا شول، چې سائيکلوپ بلل کېدل، سائيکلوپ يې باغيان ول، چې عرش ورته په قهر شو او جهنم ته يې وغورځول. ګيتي مور د عرش له دغه ډول کړنې څخه خوښ نه وو. هغه طيطانيانو ته وويل، چې له عرش سره جګړه وکړئ نو ترټولو وړوکي زوی يې په يوې وسلې د عرش تناسلي غړی پرې کړ او د پلار پر ځای پخپله د هستۍ مالک شو (د وړوکي اسيا قومونو په ديومالا کې د کرونس نوم کماربي او د آسمان د خدای نوم انو ياد شوی. د تاريخ پوهانو له څيړنو څخه داسې مالوميږي، چې طيطانيان د يونان اصلي اوسېدونکي ول، دوی آريايانو ته ماتې ورکړل چې له وړوکي اسيا څخه کډوال شوي ول او يونان کې ميشت ول). کله چې کرونس د هستۍ مالک شو نو له خپلې خور رهيا سره يې واده وکړ، خو د مړينې له مخه عرش ويلي ول چې د کرونس زوی به هم هغه له تخت څخه ليرې کوي. نو د رهيا چې به زامن کېدل کرونس به له مينځه وړل، خو د زيوس د زيږيدنې په وخت رهيا يو غار کې پټه شوه. کله چې زيوس وزيږيد، نو رهيا په يوې ټوکرۍ کې کېښوده او سيند کې يې لاهو کړ، نو کله چې کرونس وغوښتل نوی ماشوم وخوري، رهيا يوه تيږه په ټوکر کې وپيچله او کرونس ته يې ورکړه. کرونس هم پرې د نوي ماشوم فکر وکړ.

زيوس يوې ګيډړي وساته. کله چې ځوان شو نو خپلې مور رهيا ته ورغئ او ورته يې وويل، ای موري! ما کرونس ته ورسوه، تر څو زه د خپلو ورونړو انتقام ترې واخلم. رهيا ده ته مالګه او غوړي ورکړل او ورته يې وويل، ورسه د کرونس د عسلي په پيالي کې يې ګډ کړه. کله چې کرونس عسل وخوړل، نو هغه کانګې ووهل او د زيوس ټول ورونړه ترې ژوندي راووتل. نو زيوس د خپلو ورونړو په

مرستې د کرونس خلاف د جګړې اعلان وکړ. دغه جګړه تر لسو کلونو پورې روانه وه. په پای کې زیوس پر کرونس برېښنا واچول او له منځه یې یوړو؛ د اولمپس غره خدای شو.

په دغه جګړه کې، د پرومیتیوس طیطان ورونه له کرونس سره ولاړ ول، خو [روښان فکره] پرومیتیوس له زیوس سره وو. نو زیوس په انعام کې، پرومیتیوس ته د خدایانو درجه ورکړه.

زیوس یو عاشق مزاجه شخص وو. هغه د میتسس په نامه یوې طیطانۍ پېغلې سره په زوره خبرې وکړې، نو مادر ګیتي له غیبه وویل، چې د میتسس به لور کیږي، خو که زیوس دغه کړنه یو ځل بیا تکرار کړه، نو د میتسس به زوی کیږي، او کوم څه چې له کرونس سره وشول، نو دغه ماشوم به له زیوس سره هغه ډول کار وکړي. کله چې زیوس دا خبرې واورېدلې، نو د میني په پلمه یې میتسس د ځان خواته راوغوښته او ژوندی یې تېر کړ، خو څو د قیقې وروسته یې سر وڅرخېده. په همدغه وخت پرومیتیوس د زیوس په سر کې یو سوری وکړ، چې مودې وروسته یې درد خلاص شو او له سوري څخه د عقل او پوهې آیتینا خدای منځته ته راغی. زیوس پرومیتیوس ته وویل، زه به ستا دغه احسان/ښېګڼه هیڅکله هم هېره نه کړم.

آیتینا، خدای پرومیتیوس ته د کور جوړلو او کښت کولو هنرونه وښودل، د ستورو علم، معدن، طب، ریاضي او د کښتیو چلول یې هم ور زده کړل. پرمیتیوس ټول انسانان له دغو فنونو خبر کړي، خو زیوس له دغې خبرې ناخوښ وو نو هغه د انسانانو د منځه وړلو فکر وکړ. کله چې پرومیتیوس خبر شو، نو زیوس ته یې منت وکړ او زیوس خپله اراده بدله کړه. نو بیا پرومیتیوس یوه ډیوه جوړه کړه، د لمر په مرستې یې روښانه کړه او په پټه یې انسانانو ته ورکړه. دغه ډول انسانان د اور له کارولو سره اشنا شول.

د دې پټ راز له څرګندېدو سره سم په اولمپس کې ناورین رامینځته شو. کله چې زیوس خبر شو، نو ډېر په قهر شو او امر یې وکړ چې پرمومیتیوس ونیسي، د قاف غره په لوړه څوکه یې وتړه او یو دیو یې ورته وټاکه ، چې ټوله ورځ به یې د پرومیتیوس غوښې خوړلې، دغه شرط یې هم کېښود، ترڅو چې پرومیتیوس په خپل جرم اعتراف ونه کړي او بخښنه ونه غواړي دغه جزا به ویني. پرومیتیوس له بخښنې غوښتلو څخه انکار وکړ.

په دې ډول هغه د دېرشو کلونو لپاره زنداني وو. یوه ورځ ناڅاپه هراکلېز، چې د اوو لارو په لټه کې وو، هلته ورغی. هغه د پرومیتیوس په داسې وضعیت ډېر ناخوښ شو. دیو یې له منځه یووړ. د

پرومیتیوس زنځیرونه یې خلاص کړل او زیوس ته ورغی، ترڅو پرومیتیوس ته بخښنه وکړي. زیوس د هراکلېز دغه غوښتنه ومنله. دغه ډول دغه داستان د یو تړون په ترځ کې پای ته ورسېده.

د پرومیتیوس په داستان کې وخت ناوخته زیاتره بدلونونه شوي، خو هغه په هره دوره کې د بغاوت نښان پاتې شوی. ځیني خلکو د پرومیتیوس تعریف کړی او ځینو بدرد پسې ویلي. د بیلګې په توګه؛ افلاطون، بیکن، ګویته، بایرن، شیلي، والټیر، کارل مارکس او پیکاسو د ده د انسان دوستۍ او اخلاقي جرات ډېر تعریف کړی. د یوناني ادب د یو لویدیځپوه له نظره، پرومیتیوس [د زیارکښو/زیارایستونکو لومړنی پیر وو]. (Thomson, 1946)

برعکس د ده، واک پرسته ډلو پرومیتیوس ته بد او رد وویل او له زیوس سره همغږي شول. د بیلګې په توګه: د هیسډ او ایټالیا فاشیست شاعر ګیبرل اتزیوني... هیسډ یو بزګر وو، خو د آتن له علماوو سره همغږی وو. هغه فکر کاوه چې د پرومیتیوس خپله ځان ځاني زموږ د بدبختیو سبب ګرځېدلی. هغه وایي: «یو وخت وو چې خلکو په خوشحالي ژوند تېروه. هېڅا به هم زیار نه ایسته یعنې کار به یې نه کاوه، بلکې ځمکې چې څه تولیدول، دوی به هغه خوړل خو دغه هر څه د پرومیتیوس له وجې له مینځه ولاړل.»

کوم لیکوال چې د پرومیتیوس داستان روان وساته، هغه د آتن نامتو ډرامه لیکونکی ایس کائی لیس وو. هغه له میلاد څخه مخکې ۵۲۵ ق.م کې په یوې معززې کورنۍ کې زېږیدلی وو. دا هغه زمانه وه کله چې ستر داریوش وړوکې اسیا تر خپلې ولکې لاندې کړې وه او غوښتل یې په یونان یرغل وکړي. نو ایس کائی لیس د میراتهن(۴۹۰ ق.م) او سلامیز(۴۸۰ ق.م) په تاریخي جګړو کې هم د خپل هیواد د ساتنې لپاره جګړه وکړه او د خپلې زړورتیا له وجې ډېر مشهور شو. هغه، په ډرامو لیکولو کې، لومړی انعام د څلوېښتو کلونو په عمر کې ترلاسه کړ (په آتن کې هر کال د پسرلي په موسم کې تازه لیکل شوې ډرامې په دریځ کې خلکو ته وړاندې کېدلې. په سینما/تیاتر کې داخله وړیا وه. سقراط به هم دغه ډرامې په ډېر شوق سره کتلې). ویل کیږي چې ایس کائی لیس ۹۰ ډرامې لیکلي، خو اوس یواځې اوه پاتې دي. ده، دیارلس ځله لومړی مقام ترلاسه کړو. له میلاد څخه مخکې ۴۵۸ کې هغه د سیسلې باچا هیرون په دعوت سیرا کوز ته ولاړ، دوه کاله وروسته هغلته ومړ.

ایس کائی لیس د پرومیتیوس داستان په دریو ډرامو کې خپور کړی. ۱- پرومیتیوس اور رسونکی، ۲- پرومیتیوس په زنځیرونو تړل شوی، ۳- پرومیتیوس له زنځیرونو آزاد، خو په دغو دریو واړو

کې یواځې په زنځیرونو تړلی تر خلکو رسېدلی. پاتې نورې ډرامې له منځه تللي. [په زنځیر تړل شوی] داستان سمندر ته نږدې د یوې لوړې څوکې په اړه، لیکل شوی. د زیوس [ځواک او زیاتی] چې پرمیتیوس یې په زنځیرونو تړلی وي، له ځان سره یې راوړي، د اوسپنې خدای ته یې وړاندې کړي چې د اور ساتونکی هم وو؛ هغه ته وایي:

«ته راشه دغه باغي پرومیتیوس به د تل لپاره له یوې تېږې سره وتړو. پرومیتیوس د اور په کارولو انسانان پوه کړي. د خدایانو له نظره، دا یو نه بخښېدونکی عمل دی، اوس به پرومیتیوس د دغه کړنې جزا ووینې، حتی تر هغه وخته چې د زیوس خدای یې قبول کړي او انسانان باید د هیڅ شي په اړه هم پوه نه کړي».

خو د اوسپنې خدای له پرومیتیوس سره خواخوږی وو. هغه فکر کاوه، چې دغه خو زموږ له نسل څخه دی، بیا په کوم زړه د ده لاسونه او پښې په زنځیرونو وتړو، خو د حاکم امر دی، اړ یو چې امر یې پر ځای کړو. هغه پرومیتیوس ته وایي:

اې د فکر خدایه!
اوس زه په نه زړه تا تړم
د اوسپنو په زنځیرونو کې چې ډېر قوي دي
په دغه وېرونکي غره کې
دلته به د هیچا غږ هم وانه ورئ
او نه به هم کوم انسان ومونديځ
ستا بدن به لمر سوځوي؛
له وخت سره به مړاوی شې؛
ته به د شپې د راتلو هیلې کوې؛
چې ورځ په خپل ځان کې پټوي؛
او کله چې ورځ شي نو د لمر گرمی به؛
هرې خواته اور جوړ کړي؛
نو بیا به ته خوښ وې
خو له هرې تیرې شوې دقیقې سره به

درد به دې بیا زیاتېږي
تا د انساني نسل سره خواخوږي درلوده، نو هغه خبرې دلته ورسولې
ته هغه خدای یې چې د نورو خدایانو مخې ته ټیټ نشوې
خو ته له خپل حد څخه ووتې
او فاني انسان ته دې لومړیتوب ورکړ
اوس یې په مقابل کې دغه درد تېر کړه،
جُخت به ولاړ یې، خوب به نه لرې، له خوب څخه به محروم یې
ستا چیغې او اوازنه به بې ګټې وي
ځکه زیوس درته په قهر دی او زړه یې درباندې نه خوږېږي
نوی نوی اقتدار هر چاته خوند ورکوي

[ځواک او زورزیاتی] په پرومیتیوس ډېر ریشخند ووهل، خو هغه چپه خوله ولاړ وو خو کله چې دوی پرومیتیوس له تېرې سره وتړي او ولاړ شي، نو پرومیتیوس خپل خواخوږو خدایانو ته غږ کوي:

اې مقدس آسمانه، اې تېزې هوا او اوبو!
اې د سمندر څپو!
اې ځمکې، اې د ژوند مورې!
تاسو ټول شاهد یاست او لمر هم چې له مخه یې هیڅ کوم شینه شي پټېدلی
چې دغو خدایانو له یوه خدای سره څه ډول چلند وکړو
وګورئ، د خدایانو نوي خدای زما لپاره
څه ډول زندان جوړ کړی!
انساني نسل ته د انعام په ورکولو سره
ماته داسې نازغمېدونکي جزاګانې راکول کېږي
زه هغه یم چا چې د اور ځای ومونده
او اور د ټولو انسانانو د علومو او فنونو لپاره لارښود ثابت شو
دا یوه ستره وسیله ده

دغه وخت کورس پرې را څرګنده شوه. هغه له پرومیتیوس سره خواخوږي وښودل او ورته یې وویل:

د اولمپس واک اوس له یو نوي حاکم سره دی
د زیوس ظالمانه قوانین چې په ظلم سره حکومت پرې مخته وړي
بالکل حیرانوونکي دي.
هغه د تېر (ماضي) هر څه له مینځه وړي.
ټول خدایان ستا سره خواخوږي دي،
یواځې له زیوس پرته
ترڅو چې انتقام وانخلي، نو زړه یې نه یخ کېږي
یا داسې کوم کار ترسره شي چې دغه سلطنت
ترې واخیستل شي.
پرومیتیوس...... زه قسم کوم
که څه هم نن زه په داسې حالت کې یم
او زما لاسونه او پښې په زنځیرونو تړل شوي
خو د خدایانو دغه خدای ته
به یوه ورځ زما اړتیا محسوسه شي
ترڅو هغه پوه شي چې څوک د واک له مینځه وړلو لپاره هڅې کوي
خو د هغه یوه خبره به په ما اغېزه ونه کړي
او نه هم زه د هغه له ګواښونو څخه وېره لرم
کورس...... بیشکه ته نه وېرېږې او
ستا روح له دغه ډول اذیتونو سره هم له مینځه نه ځي
خو ته به له دغه ظلم څخه څه ډول خلاصی ومومي
ځکه د کرونس زوی په یوې خبرې ولاړ دی
او هیڅ کومه خبرې پرې اغېزه نه کوي.
پرومیتیوس............ زه خبر یم چې زیوس ډېر کلک دی

او قانون پخپله خوښه پر مخ وړي
خو کله چې زما خبرې ریښتینې شي
او د هغه واک ورو ورو کمزوری شي
بیا به هغه پخپله جوړ شي
او هغه به له ما سره د ملګرتیا هیله کوي.

کورس...... ښه! دا ووایه زیوس په کومې تېروتنې مجرم وګڼلې؟

پرومیتیوس د زیوس او کورنس تر منځ د جګړې یادونه کوي او وایې چې زما مور، مادر ګیتي ماته ویلې ول، چې په دغه جګړه کې به پوهه او شعور بریالی وي، نه جسماني قوت، نو ما غښتلي طیطیانان چې په جسماني توګه ډېر پیاوړي ول او د پوهې او شعور له خوا بېخي صفر ول، ډېر مې پوه کړل خو هغو په خپل ځواک زیات نازېدل. هغو زما خبرې ونه منلې، نو ما د زیوس په لښکر کې ګډون وکړ او زما په مشورو زیوس بریالی شو [اوس زما ملګرتیا او اخلاص راته اور شو].

ملګرو ته د شک په نظر کتل،
کېدای شي دغه ناروغۍ هر یو ظالم ته په میراث کې پاتې وي،
د زیوس ناخوښي، پرومیتیوس داسې بیان کوي:
ته پوښتنه کوې، چې زیوس ولې ماته دومره درد راکوي
نو واوره!
کله چې د پلار په تخت کېناست، نو ټولو خدایانو ته یې مقامونه وسپارل، خو د انسان غم یې ونه کړ.
بلکې د له مینځه وړولو پلانونه یې ورته جوړ کړل.
خو زما پرته هیچا هم د دغې خبرې مخالفت ونه کړ.
ما جرأت وکړ او په فاني انسان مې زړه وخوږوه.
خو زه خپله د رحم مستحق نه وم
نو زه دغه تکلیفونه وینم.

کورس: کېدای شي تا له دغه هم ستر جنایت ترسره کړی وي؟

پرومیتیوس: وو، ما د انسانانو د مرګ د وړاندوینې مخالفت وکړ.

کورس: تا د دغو تکلیفونو لپاره کوم درمل موندلی؟

پرومیتیوس: ما د دوی په زړونو کې هیلې پیدا کړي.

کورس: دغه ډالۍ به دوی ته ستر نعمت ثابت شي؟

پرومیتیوس: ما دوی له دغه ستر نعمت څخه برخمن کړل. اور مې دوی ته ورکړو.

کورس: انسانانو ته! چې د دغو څو ورځي میلمانه دي.آیادوي اوس د اور مالکان دي.

پرومیتیوس: وو، اوس به دوي بې شمیره هنرونه ترې زده کړي.

په دغه وخت کې د سمندر خدای نازل شي او له پرومیتیوس سره یې خواخوږي وښودله، ترې پوښتي؛ ووایه له تا سره څه ډول مرسته کولای شم؟ هغه پرومیتیوس ته وړاندیز کوي چې له زیوس سره سوله وکړه.

د سمندر خدای: واوره پرومیتیوس، یو نوی باچا زه موږ حاکم دی، نو ځان وپیژنه او له وخت سره حرکت وکړه. که ته د زیوس شاته دغه ډول خبرې وکړې، نو هغه به هم خبر شي او په تا به نور هم ظلمونه زیات کړي.

پرومیتیوس د سمندر د خدای مننه کوي او ورته وایي، چې زه نه غواړم زما له وجې نور خدایان هم وځوریږي، نو ته زموږ په مینځ کې مه ګډیږه. کله چې د سمندر خدای ولاړ، د کورس او پرومیتیوس ترمینځ خبرې بیا پیل شوې. دغه مکالمه نه یواځې د ایس کائې لیس شهکار نه دی، بلکې دا د دغې خبره ثبوت ورکوي چې دوه نیمه زره کاله له مخه هم یونانیان د فرهنګي تکامل سره اشنا ول. افلاطون په [مکالمات فرو تر غورث او  قوانین] کې د انساني ټولني د تکامل کومه نقشه چې کښلې، هغه پوره یوه پیړۍ وروسته لیکل شوې.

پرومیتیوس بیا خبرې پیل کوي:

په لومړیو کې نه له دوی سره باغونه ول؛

ما دوی ته پوهه او شعور ډالۍ کړ ؛

خو زه چې کومې خبرې کوم، نه غواړم انسانان کم وګڼم؛

بلکې غواړم له زړه درته ووایم: ما چې انسانان ته څه ورکړل، په نیک نیت مې ورکړي؛

دوی سترګې درلودې، خو ډیري شیان یې نه لیدل؛

دوی به غږونه اوریدل، خو په ماناوو یې نه پوهېدل؛

دوی داسې ژوند پر مخ وړه؛

ګواکې حیوانان دي، چې خوبونه ویني؛ کومې موخې یې نه لرلې؛

دوی د لمر له ګرمۍ هېڅ خبر نه ول او په اړه یې هېڅ ډول فکر هم نه وو کړی؛

نه دوی د لرګي اوزار جوړلی شول؛

دوی د مېږتونو په څېر غارونو کې اوسېدل؛

دوی د میو، ګلانو او همداسې نورو نعمتونو په اړه خبر نه ول؛

چې د لمر په مرستې پخېږي؛

د دوی هر کار له شعور څخه خالي وو؛

ترڅو چې زه راغلم؛

ما دوی ته د ستورو د حرکت حساب ورزده کړ؛

چې تر ټولو سخت کار دی؛

بیا مې د ریاضي علم، چې د علومو مور ده، د دوی لپاره رامخې ته کړه؛

او لیک مې ور زده کړ؛

د لیک په مرسته هر شی ساتل کېږي؛

چې د بې شمیرو علومو دپنځوني وسیله ده؛

ما حیوانان د دوی مریان وګرځول؛

چې درانده بارونه وړي؛

د آسونو ځغلول مو ورته وښودل؛

زما له مخه هېڅا هم د کښتیو په اړه څه نه وو ویلي؛

چې د یوه ټوکر په واسطه سمندر کې حرکت کوي؛

ما انسانانو ته دغه ټول اوزار په لاس ورکړل؛

خو نن د دغه جزا لپاره کومه لاره نشم موندلی چې خلاصی ترې ومومم؛

کورس: ته هغه طبیب یې چې خپله درملنهنه شي کولای؛

پرومیتیوس: زما خبرې تر اوسه ختمې شوي ندي:

ترټولو مهمه دا ده، کله چې به یو شخص ناروغه شو نو خپله درملنه به یې نه شوکولای

هېڅ کوم ډول درمل هم شتون نه درلودل.
د درملو له نه شتون سره به دوی له مینځه تلل؛
ما دوی ته د بوټو په وسیله درمل جوړ کړل؛
ترڅو د ناروغیو درملنه وکړي؛
بیا مې د ځمکې خزانې ورته وښودل؛
سره زر، سپین زر او اوسپنه د ځمکو په لاندنیو طبقو کې شتون لري؛
لنډه دا چې: د انسانانو ټول علوم دغه بدنصیبه پرومیتیوس دوی ته ډالي کړي.

دغه وخت د زیوس ناوالد زوی هرمیز راشي. پرومیتیوس ډېر ورته بد بد کتل او دواړو کې بحث پیل شو.

هر میز: زما پلار پوښتنه کړې، چې هغه د کوم واده په اړه چې تا ویلي، زیوس به خپل تخت له لاسه ورکړي؛ خبردار خبرې به نه زیاتوې؛ بس ربښتیا ربښتیا راته ووایه، تر څو زه بیا د دویم ځل لپاره دومره لیري رانشم.

پرومیتیوس: د خدایانو دغه وړوکي شي ته ګوره!
څنګه ځان لوړ ګڼي؛
ته او ستا طاقت اوس نوی نوی دی
او ته په دې غَرَه یې چې تا به هېڅوک هم له مینځه یو نه شي
خو ما د دوو کورنیو زوال لېدلی؛
او درېمي تباهې به هم وینم؛
چې له هغه دوو نورو څخه به یې پایله ډېره بده وي؛
او ژر تر ژره بس؛
ته ژر تر ژره له دغه ځای څخه ولاړ شه.
ته به هېڅ هم ترلاسه نه کړې.

هرمیز: ته بې ادبه، ځان غوښتونکی او ضدي یې. دغو کارونو ته تر دغه ځایه را رسولی یې.
پرومیتیوس: ښه یې واوره! زه به خپل دغه تقدیر ستا په داسې غلامانه چاپلوسیو بدل نه کړم.
هرمیز: ته لېونی یې او بېخي ستر لېونی یې.

پرومیتیوس: کېدای شي، که له دښمن څخه کرکه لېونتوب دی.

هرمیز: زه تا پوهول غواړم خو پر تا هېڅ کومه اغېزه نه کوي.

ښه نو واوره! چې: له دغه ډول انکار څخه به ستا جزا نوره هم زیاته شي؛ که ته زما خبره ونه منې، د زیوس قهر به په تا نازل شي، دغه غر به له برېښنا سره نیست ونابود شي او ته به د ځمکې دننه ورک شې، دغه ډول له تېرې سره به تړلی یې. بیا به زرگونه کلونه وروسته یو ځل بیا را پورته شې، بیا د زیوس خون خواره سپي، تا وداړي، د ورځې او شپې به دې غوښې خوري او ستا جیگر به ټوټې، ټوټې کړي. دا یواځې د خولې خبرې ندي، دا د زیوس حکم دی، نو له خپلو خبرو را وگرځه. (هرمیز ولاړ شي)

پرومیتیوس: زه پوه شوم چې هرمیز د څه لپاره راغلی وو، خو د دښمن له لاسه درد لېدل داسې ده لکه عزت. بې شکه برېښنا دې راوغورځول شي، باد دې ډول ډول دوړې له ځان سره راوړي. داسې یو طوفان دې راوړي، چې ځمکه له بېخه ولړزوي، په سمندر کې دې سونامي راشي، ستوري دې خپل ځایونه پرېږدي. زیوس دې مې بېخي ورک کړي، نېست ونابود دې شم، خو زه به هېڅکله هم ماته ونخورم.

واوره!

ځمکه ولړزېدل، آسمان کې درزا پیل شوه، آسماني برېښنا را څرگنده شوه، د باد له امله ځوځان په هوا شول، له څلورو خواو څخه بادونه راغلل او سره وجنگېدل. آسمان او سمندر په قهر دي. زه د زیوس په راجوړ کړل شوي زندان کې راگیر یم.

راشه ځمکې! زما مورې ـ زما پاکې مور جانې!

راشئ آسمانونو! چې لمر او سپوږمۍ یې هر ځلې څلوي.

وگورئ! په ما څه ډول ظلم روان دی

(تېره دوه ځایه شي او پرومیتیوس ورک شي) (د ډرامې ژباړه مو لفظ په لفظ نه ده کړې، یواځې مو مطلب ترې وړاندې کړې)

په دغه ډرامه کې، ایس کائي لیس له پرومیتیوس سره همغږی دی. هغه له پرومیتیوس سره خواخوږي درلودل. پرومیتیوس انقلابي وو، خو خپله ایس کائي لیس انقلابي نه وو.

دا سیي ده، چې د آتن حاکمان یې نه خوښېدل او نه هم د دوی له خدایانو سره ولاړ وو. نو هغه د پرومیتیوس په ژبې د آتن د حاکمانو او زیوس دواړو غندنه کوي، هغه یواځې ټولنیز نقد دی. د

افلاطون په ځېر مفکر نه وو، چې د ټولنيز نظام د بدلون کوم پلان يې وړاندی کړی وو. ايس کائي ليس د آتن د عام ولس په اړه فکر کاوه، ځکه مودې مخکې په يوې ډرامې کې د هغه له خولې داسې يوه جمله وتې وه، چې له امله يې پرې د بې دينی ټاپې ولګېدې او د مرګ له جزا څخه وژغورل شول. د دغه له وجې هغه د داستان داسې برخه راخيستې چې د ظالم او مظلوم تر مينځ توپير کوي.

خو ۲۲ سوه کاله وروسته کله چې د بريټانيې ځوان انقلابي شاعر شيلي(۱۷۹۲ ميلادي ـ ۱۸۲۲ ميلادي) په ۱۸۱۸ ميلادي کې [پروميتيوس په زنځيرونو کې تړلی] وليکه نو هغه د ايس کائې ليس په ځېر دومره هم مجبور نه وو. هغه د ظلم پالني په اړه، يوه مقاله ليکلي وه، چې له مخه يې د آکسفورډ پوهنتون څخه وويستل شو او د بريټانيې له روآيت پرست چاپېريال څخه په تنګ راغئ، له دې وروسته ايټاليا کې اوسېده. که څه هم د فرانسې انقلاب او د ناپيليون له ماتې وروسته اروپا کې هم د مرتجعينو زور وو، خو انقلابي روح په هر ځای کې ځواکمن وي، نو شيلي له دغه ډول بنديزونو څخه آزاد وو، چې هغه وخت ايس کائي ليس نه لرل، خو ترټولو ستره وجه دا ده، چې هغه په فکري او عملي توګه انقلابي وو. نو د ده ستر لارښود هم (پروميتيوس) تر اخره له زيوس سره سوله ونه کړه. شيلي، په خپله ډرامه کې داسي ليکي:

«ديونان نړيوالو ليکوالانو د خپل سيمه ايز تاريخ يا د ديومالا له مخې موضوع راخېستل او په خپله خوښه به يې تشريح کول. دوی خپل هنر په سيمه ايزو بنديزونو کې نه را ګېرول او نه به يې هم د خپلو پخوانيو ليکوالونو څخه تقليد کول. ما هم دغه خپلواکه لاره خپله کړه. که څه هم د ظالم او مظلوم تر مينځ په توپير کولو سره په ډېرو زړونو کې داغ پاته کېږي. که پروميتيوس، د خپل ظالم حاکم مخې ته تيټ شوی وو، نو په داستان کې به هغه خوند پاتې نه وو، چې پروميتيوس په ځان داسې مصيبتونه/تکليفونه تېر کړي ول... پروميتيوس له شيطان څخه ډېر شاعرانه کردار اداء کړی. ځکه هغه د شخصي حرص او هوس، کينې او بغض او د انتقام اخيستلو له جذباتو څخه پاک دی. هغه د اخلاقي او ذهني وړتياوو يو بشپړه بېلګه ده. د هغه موخې ډېري نېکي دي او د هغه تګلاره رېښتيني ده».
(Shelley, 1956)

**(۲)**

پوښتنه دا ده چې په اور کې هغه کومه ځانګړتیا ده، چې زیوس غوښتل له انسانانو څخه یې پټ وساتي او کله چې دغه پټ راز ښرګند شو، نو پرومیتیوس ته یې داسې جزا ورکړل. راځئ وګورو! چې اور څنګه شی دی او په انساني ټولنه کې څه ډول کردار ادا کولای شي؟

اور یوه کیمیاوي پدیده ده (شی نه دی)، د آکسیجن ګاز، کاربن او د نورو عنصرونو ټولګه ده، چې له تعامل څخه یې حرارت، شعله او روښنایي پیدا کېږي. دا هغه وخت شونې ده، کله چې کیمیاوي عنصرونه ګاز ته بدلون وکړي. اور له مادي شیانو څخه جوړېږي او د مادي شیانو یو حالت دی. هغه تر ټولو ستر انقلابي ځواک دی، چې له مخه یې د مادي شیانو فزیکي او کیمیاوي بڼې بدلون کوي. هغه کله کلک شیان لکه سکاره، کافور او لرګي او همداسې نور او کله نرم شیان لکه اوبه، تیل، پټرول او همداسې نور ګاز ته اړوي، کله کلک شیان نرم کوي، لکه سپین او سره زر، اوسپنه او همداسې نور او کله له دوی څخه نوي شیان جوړوي، چې نرم وي.

دغه د کیمیاوي تعامل تر ټولو ستره ځانګړتیا ده. نو د پروفیسور فیر له قوله [د کیمیا په علم کې اور تر ټولو بنسټیزه پدیده ګڼل کېږي. اور موږ ته هر څه را زده کړل]. (Franklin, 1953)

په دغه اړه، هغه د روم د نامتو ساینس پوه پلائني کبیر(۲۳ میلادي ـ ۷۹ میلادي) تجربې داسې ارزوي:

«ما د انسان د ځواک کشف اړوند هر څه بشپړ کړل. کله چې مې ولېدل، ډېر حیران شوم، چې تقریباً په هر عمل کې اور (فعال عامل)څرګند شوی. اور کولای شي، تیره کله په ښیښې، کله په سپین زر، کله په رنګونو او همداسې نورو تبدیل کړي. د اور په مرستې تېره ویلي کیږي، مس ترې جوړ شي، اوسپنه ویلي کیږي او سره زر ترې اماده کېږي. د اور بڅرکي دي، چې له تېږي چونه اماده کوي. اور د طبیعت هغه پدیده ده، چې هېڅکله مړېږي نه، یانې لوږه یې له منځه نه ځي. موږ تاته څه ووایو؟ خالق که هالک؟».

په کوم شي کې، چې دومره ځانګړتیاوې وي او بیا غلا شي، نو زیوس به هرومرو پرې خپه کېده نو څه؛ ته به وایې چې خوشحاله به وو.

په دې پوهېدنه به ستونځمنه وي، چې ووایو لومړیو انسانانو اور کارول څه وخت او څنګه کشف کړل؟ پروفیسور ول ډیورنټ په ۱۹۵۴ میلادي کې داسې ویلي:

«چې څلوېښت زره کاله له مخه انسانان د اور له کارولو سره بلد ول. دلیل دا وو چې د پیکنگ ښار په غارونو کې چې کوم اثار موندل شوي ول؛ په هغو کې د حیوانانو د هډوکو سوځول شوې برخې هم وې. دغه اثار لږ تر لږه ۵۰ زره کاله پخواني دي.» (Durant, 1954) خو تېرو دېرش، پنځه دېرش کاله له مخه په کینیا او افریقا کې چې د انسانانو غاښونه او د سر کوپړۍ وموندل شول، نو هغه پنځه سوه زره کاله پخواني دي. پروفیسور بروناسکي د همدغې دلیل له مخې دعوا کړې، چې څلور سوه زره کاله له مخه هم انسانان د اور په کارولو بلد ول (Boronoski, 1975) دا د انساني تکامل هغه دوره وه، کله چې انسانان د خپلو پښو په مرستې ودرېدل، دوراړه لاسونه یې آزاد شول او د کوپړۍ جسامت یې ۱۲ سوه کیوبک متر ته ورسېد، خو دوی ته ورته انسانان په دوو پښو ودرېدل او د نیمو انسانانو د ماغزو جسامت ۵ سوه کیوبک متر ته رسېدل. پروفیسور کارل سګن، د نویو تجربو له مخه داسې وایې: «چې انسان د ۵ سوه زره کاله له مخه د اور په کارولو سره بلد ول.» (Sagan, 1977) دوی به د لاسونو په مرستې ډبرې، لرګي او د هډوکو اوزار جوړول او خپلې تجربې، نظریات او احساسات یې د اوزارو په مرستې تر خلکو رسول.

خو انسان په لومړیو کې د اور په مصنوعې توګه کارولو سره بلد نه ول، بلکې کوم اور، چې په طبیعت کې شتون درلود، له هغه به یې کار اخیست. دوی، دغه طریقه له حیوانانو څخه نه ده زده کړې، ځکه د انسانانو پرته کوم یو حیوان د اور له کارولو سره بلد نه وو او نه هم اور ته نږدې ورتلل، بلکې حیوانان له اور څخه وېره لري، خو د انسانانو وړوکی ماشوم هم له اور څخه وېره نه لري. که مخه یې ونه نیول شي؛ نو هغه به اور ته هم د لوبې سامان فکر کړي او هڅه به کوي په لاسونو کې یې راواخلي. الات او اوزار جوړول یو ډېر شعوري عمل دی او د انسانانو د پوهې ثبوت وړاندې کوي. کله چې په دغه عمل باندې برلاسي شول، نو دوی د اور د کارولو په اړه فکر وکړ. دا کومه جالبه خبره نه ده؛ کېدای شي د لمر له ګرمي څخه، کله چې تېږه ماتېږي او له هغه کوم بڅرکي راوځي، کېدای شي په ځنګل کې د یو ناڅاپه اور لګېدو له امله یا د تالندې برېښنا له وجې.... نو له هر څه چې مینځته راغلی وي. دا یو کیسه ده، چې انسان تر هر څه له مخه د اور له کارولو ګټې پورته کړي. نو ځکه ځېنې وروسته پاته هېوادونو تر پرونه اور نه شوپیدا کولای، د بیلګې په توګه: د انډمان ټاپووزمه (توره بحیره) او د پهیپوا ټاپووزمه (بحرالکاهل) کې د شلمې پېړۍ تر لومړیو داسې قبیلې موجودې وې، چې اور به یې نه شوپیدا کولای. د دوی اور که له کومې وجې مړ کېده، نو دوی به په مایلونو لاره وهل او له بل

کوم کلي څخه به یې زغال راوړل. په استرلیا او افریقا کې، به د اور ساتنه د هغه ځای پېغلو انجونو تر غاړې وه. په پخواني یونان کې، د کور او نغري خدای وستا نومېده. د ده په عبادت ځای کې به هر وخت اور بلېده، چې ساتنه به یې ځېنو پېغلو انجونو کول او کله چې به اور مړ شو، نو د دیوي مشر به یې وواژه. د اور نه مړ کېدو پخوانی روآیت تر اوسه شتون لري. د بیلګې په توګه: د پاریس په مینځ [محراب نصرت] دننه د ګازونو بځرکي هېڅکله مړ کېدو ته نه پرېږدي. دغه ډول د ماسکو د [ورک عسکر] عسکر په قبر هم ډیوې بلېږي. د ماشومانو د زېږیدنې په ورځ ډیوې بلول او د خوښیو په محفلونو کې ډیوې بلول؛ په اصل کې د پخوانیو فرهنګونو نښان دی او ولې دې نه وي؛ ځکه اور، روښنایي، حرارت، انرژي او د ژوند هر څه دي.

د مصنوعي اور جوړولو هنر هم انسانانو له طبیعت څخه زده کړ. په ګرمې او وچې هوا کې د ځنګل د ونو ښاخونه له یوبل سره د لګېدو په پایله کې یو ډول د اور بځرکي را پیدا کېږي، چې له امله یې په ځنګل کې اور بل شي. د څېړونکو له نظره لومړیو انسانانو د طبیعت دغه عمل څخه تقلید کړی او دوه لرګي یې له یو بل سره وموښل؛ چې اور ترې پیدا شو. نو ځکه سمترا، سریلانکا، سهیلي امریکا، د هووایې ټاپووزمه، نیولینډ او همداسې نورو هېوادونو کې لا تراوسه داسې قومونه شتون لري، چې دوه لرګي سره موښي او اور ترې پیدا کوي. د تکامل د نظریې بنسټګر چارلس ډاروین(۱۸۰۹ میلادي ـ ۱۸۸۲ میلادي) په خپل سفر نامې (ویویج آف بېجل) کې لیکي، چې ما د تهیتي په ټاپووزمه(بحرالکاهل) کې یو شخص ولېده، چې دوه لرګي سره وموښل او اور ترې پیدا شو، خو کله چې دغه کار ما وکړ نو ډېر وخت پرې تېر شو او د پرله پسې هڅو وروسته زه کامیابه شوم. د بریټینیکا په دایر المعارف کې، یو انځور زما له مخه تېر شو، چې پکښې د اوراک قوم دوه اشخاص لوڅ لغړ ناست دي. یو شخص د لرګیو تخته نیولې، چې یوه داېره پکښې کښل شوې ده، په ځمکه یې ایښې او زور پرې کوي، خو بل شخص یو لرګی په لاس کې لري چې د تختې له سر سره یې نیولی او په دواړو لاسونو یې څرخوي. د لرګي له څرخ سره اور پیدا شي. (Encyclopedia Brittanica, P.262)

د دوو لرګیو په موښلو سره د اور پیدا کولو؛ تاریخي ثبوت په رګ ویدا کې ترلاسه کېږي، چې د نړۍ ترټولو پخوانی کتاب دی او په سند کې لږ تر لږه درېنیم زره کاله پخوا لیکل شوی. د رګ وید په یودېرشمه مقاله کې شاعر اګني خدای مخاطب شوی، هغه وایي:

د دوو مورګانو له بطن څخه زېږیدلی، پوهه او عقل

په نړۍ کې حرکت کوي،

د ژوندي انسان لپاره په هر ځای کې شتون لري (زردشت, رگ وید)

په یو بل ځای کې د دوو لرگیو موښل له دوو آسپونو سره تشبیه شوی او لوگی یې د لښکر له بیرغ سره ( ٦٠, ایضا)

بل ځای لیکل شوي:

د اگني مخې ته تر ټولو کلک/سخت شی سر تیټوي؛

دوه لرگیان چې گرم شي نو اور ترې پیدا کیږي.

رالف گریفت د ریگ وید نامتو مفسر ساین حواله ورکوي او لیکي، چې له لرگیو څخه موخه دوه لرگي دي، چې په موښلو سره یې اور مینځه ته راځي. هغه لیکي چې د هون مقدس اور تر ننه هم(١٨٨٩ میلادي) په دغه ډول لگول کیږي.

اینگلس، د لرگیو د موښلو له مخې د اور د مینځته راتلو تاریخي ارزښت په اړه لیکي:

«د ماشینونو د مینځته راتلو سره، یو ستر ټولنیز انقلاب رامینځته شو... خو په دې کې هېڅ شک هم نشته چې د لرگیو د موښلو سره د اور د مینځته راتلو عمل انسان خپلواکه کړ؛ ځکه پدغه عمل سره دوی په لومړي ځل یو طبیعي ځواک په خپل واک کې کړو. دغه ډول دوی د تل لپاره له حیواني چاپېریال څخه خلاصون ومومو.»

«موږ د تېر ټول تاریخ ته له میخانیکي حرکت څخه حرارت/انرژي ته د بدلون یو ستر کشف ویلای شو، چې له امله یې حرارت/انرژي، میخانیکي حرکت ته بدلون وکړ.» (Engels F. , Anti Duhring, P.158)

د اور له کشف سره په انساني ژوند کې، یو ستر بدلون راغی. اوس د دوی غارونه/سمڅې تیاره پاتې نه شوې. تیاره؛ چې وېره پیدا کوي او کله چې تیاره وي، نو پښې او لاسونه هېڅ همنه شي کولای او له یو بل سره خبرې کول هم سخت شي. اوس وحشي ځناور دوی ته نږدېنه شي راتلای. دوی به اوس غوښې او سبزیجات لومړی په اور پخوي او بیا یې خوري. دوی اوس اړ نه دي، چې په گرمو سیمو کې ژوند وکړي، بلکې سړې سیمې به هم آبادې شي. دوی به مصنوعات جوړوي، چې تر دې له مخه یې په طبیعت کې شتون نه درلود.

د اور له مینځته راتلو سره انسانانو د طبیعت هر شی وپېژندل. دوی تراوسه په شیانو کې د کیفیتي او کمیتي بدلون سره اشنا نه ول. کله چې د اور په کارولو سره انسانان پوه شول، په دې اړه پروفیسور ګورډن لیکي: «په تاریخ کې لومړی ځل انسانان د طبیعت په یو ستر ځواک حاکم شول. دوی د نورو حیوانانو له ژوند څخه جلا شول او یو ستر انقلاب رامینځته شو. دوی په شعوري توګه د هر څه پنځونه کولای شو. دغه ډول یې ثابت کړل چې انسان یو ځواکمن مخلوق دی او خپل ځان یې ثابت کړ». (chillde, 1956)

دا یو ستر حقیقت دی، که چېرته انسان د اور له کارولو سره اشنا نه وه، نو تراوسه به د ډېرو په زمانې کې پاتې ول او د حیوانانو په څېر به طبیعت ته اړ ول؛ هېڅکله به هم پر طبیعت برلاسي شوي نه ول. دوی د اور له امله د تیږي له زمانې ووتل او د اوسپنې زمانې ته داخل شول.

په پخوانیو وختونو کې اور په ډېرو عجیبو او غریبو طریقو کارول کېدل. د بیلګې په توګه: د اور له لوګي څخه به د پیغام رسوونکي په توګه کار اخېستل کېده. نو د ایس کائي لیس په یوه ډرامه کې د یونان د باچا آیګ ممنان ملکې تم نس ترا ته د ټرای د جګړې بریا د اور په لوګي ورسول شوه. د اسټرلیا پخواني قومونو د لوګیو په وسیلې تر دریو زرو میلو واټن پورې پیغام رسول. د جګړې په وخت کې به پر دښمن د اور توپونه اچول کېدل. ویل کېږي، د سسلي پلازمینې سیرا کوز په محاصره کې نامتو ساینس پوه ارشمیدس(۲۱۲ میلادي ـ ۲۸۲ میلادي) د رومیانو پر کښتۍ د لمر وړانګې د ښیښې په وسیله برابرې کړې او ټولې یې ورته وسوځولې. دا هغه ارشمیدس وو، چې ویلې ول که ما پرېږدئ، نو د لور په مرستې به ځمکه راپورته کړم.

که څه هم په لومړی ځل اور په ګرم سیرو سیمو کې کشف شو، خو له اور سره مینه یوه طبیعي خبره ده، چې د سړو سیمو خلکو ورسره وکړه. د افریقا، مصر، عرب، شام او عراق سوځونکي لمر، د هغه ځای د خلکو پر فکرونو اغېزه وکړه. د دوی له نظره، د اور یو ځای دغه ځانګړتیا وه چې سوځول کوي او چاته تکلیف رسوي. چېرته چې د کال په اتو میاشتو کې سوځونکی لمر وي، نو هلته به څوک د اور په ځانګړتیاوو فکر وکړي. دغه وجه ده، چې په ګرمو سیرو سیمو کې رامنځته شویو ادیانو اور خلکو ته به بَو معرفي کړی. نو خامخا به په دوزخ کې اور وي، خو په ریګیستاني سیمو کې د اور پر ځای د ونو او اوبو ډېر اهمیت وي، د هغه ځای خلکو دا یو ستر نعمت باله او مینه یې ورسره لرله؛ نو په جنت کې خو به اور نه وي، بلکې هلته به د میوو ونې، د اوبو ویالې او د کوثر پاکې اوبه وي.

برعکس، په سړو سیمو کې آریایي قومونو ته اور یو ستر نعمت دی. د آریایانو د ژوند زیاته برخه له اور سره تړاو لري، دغه وجه وه چې هغوی به اور ډېر درناوی کاوه. د اور عبادت به یې کاوه، ثنا و صفت به یې په اړه ویل. د بیلګې په توګه: ریګ ویدا چې په ۱۰۱۷ ترانو مشتمل دی، نو د اندرا وروسته زیاتره ترانې اګني خدای ته ویل شوي. د اندرا د فضلیت ستره وجه دا وه، چې هغه د سند د آریایي قومونو تر ټولو ستر لارښود وو، چې په مشري یې د دغه ځای پخواني قومونو... اسورا او داسیو او همداسې نورو... ته ماتې ورکړل او نیست و نابود یې کړل. د ریګ ویدا شاعرانو د اګني خدای زیاتره صفتونو بیان کړي. هغه پاک دی، رازق دی، پیغمبر دی، د انسان ملګری دی، د آریایانو لارښود دی، تیاره پناه کوونکی دی، ښایسته دی، په تیاره کې هم هر څهویني، د شتمنۍ راز دی، له خطاوو پاک او عاجز دی. پوه، عقلمند او سخي دی، ستر خدای دی او میوې پخوي،

اې اګني! ستا بې شمیره نومونه دي

ته تل پاتې یې، مقدس یې، خدای یې ( ۱۷۰, رګ وید)

په زردشتي دین کې هم اور مقدس او پاک ګڼل کېږي. په اور کې لاړې تُف کول تر ټولو ستره ګناه ګڼل کېږي. د پارسیانو د عبادت ځای نوم هم آتشکده دی؛ هغه ځای چې اور پکښې بل وي. کېدای شي په یوې زمانې کې هغوی د اور عبادت هم کاوه.

**(۳)**

د پرومیتیوس په داستان کې او د آدم په کیسې کې که کوم شی مشترک دی، نو هغه د منع کولو حکم دی. د زیوس امر وو، چې اور دې له انسان څخه پټ وساتل شي. پرومیتیوس د دغه حکم خلاف عمل کوي، نو جزا ویني. آدم له جنت څخه ویستل کېږي، ځکه هغه د شیطان په خبرو باندې منع کړل شوې میوه خوري. د زیوس دغه اندېښنه بې ځایه نه وه، چې د اور په کارولو سره به انسان د هغه له خدایۍ څخه منکر شي. خدای ته به اړ نه وي؛ بلکې د اور په مرستې به نوي شیان مینځته ته راوړي او همداسې وشول، داسې یوه ورځ راغله چې انسان په خپلو وړتیاوو ویاړ کاوه او لیکي:

تو شب آفریدی، من چراغ افریدم

(اقبال)

خو آدم ته چې دا ویل شوي ول؛ جنت کې په خوشحالي ژوند تېر کړه. هر څه چې دې زړه وغواړي خوړلی یې شي، خو په یاد ولره! دغې ونې ته نږدې هم نشې(سورة بقره ۳۴) نوپه دېکې د خدای څه خبره وه؟ دغه پوښتنه یو ناڅاپه په انساني ذهنونو کې را پیدا شوه، چې هغه د څه شي ونه وه او څه ډول ځانګړتیاوې یې درلودې، چې له امله یې آدم له جنت څخه وویستل شو. قرآن په دغه برخه کې څه نه وایي، خو د پخوانیو زمانې مفسرینو چې له لویدیځ څخه وېره نه درلودل، زیات ښه ګومانونه یې کړي، خو د ننني زمانې علماء له دغه مسئلې څخه ځانونه پټوي. مولانا اشرف علي تنوي بس دومره وایي [خدای خبر هغه څه ډول ونه وه] (قرآن شریف له ژباړې او تفسیر سره، ۹) له یوې خوا، مولانا مودودي دغه فتوا صادروي، چې دغه هېڅ اړین بحث ندی(ولې؟) چې هغه کومه ونه وه او څه ډول ځانګړتیاوې یې درلودل، بل لوري ته خپله دغه بحث را اخلي: «د منع کولو وجه دا نه وه، چې دغې ونې کومه نیمګړتیا درلودل او له امله یې آدم او حوا ته کوم ډول زیان رسېده. اصلي وجه دا وه، چې له دوی څخه یې ازموینه اخیستل، چې د شیطان د خبرو تر کومه حده پیروي کولای شي. د دغې موخې لپاره د یوه شي ټاکل بسنه کوي، ځکه خدای د ونې نوم او د ده ځانګړتیاوو په اړه څه ندي ویلي». (تفهیم القران، لومړی ټوک، ٦٦, ١٩٧٢)

دغه ډول تفسیر شونې ده، چې د مولانا مودودي مریدان مطمئن کړي، خو قرآن د دغو خبرو تائید نه کوي. لومړی یو بې بنیاده فرضیه جوړول او بیا په پرې باندې ټینګار کول د مولانا مودودي له ځانګړنو څخه دي. څوک خو دې وپوښتي، چې په جنت کې د کوم زیان لرونکي ونې یادونه چا کړې ده؟ په دغه آیت کې داسې لیکل شوي، چې [ګڼې ته به بیا د ظالمانو ډلې کې وې] نو له دې څرګندېږي، چې دا یوه اخلاقي مسئله ده. د آدم له روغتیا سره هېڅ ډول اړیکه نه لري. په اصل کې د مودودي صاحب په ذهن کې د خدای تصور یو امر مطلق دی او د کوم ظالم باچا په څېر ورته ښکاري.

د ده خدای خو عام انسان پرېږده، حتی د ځمکې له خلیفې هم ازموینه اخلي او خپل ازمیښت کې یې اچوي او بیا جزاء ورکوي. هغه کله د خدای د [ستر سلطنت] خواته اشاره کوي، کله د خدای د بندګي په اړه د باچا د حکم مثال ورکوي، ( ٦٠, ایضا)او کله د خدای خدایي د ننیو باچاهانو له حکومت سره تشبیه کوي ( ٦٥, ایضا) د ده له نظره د خدای پرېښتې [د پولیسو په څېر له کوم یونیفورم

پرته عسکرې دي]. نو د بقرې سورة د ۱۰۱ آیت تشریح په وخت کې د هاورت وماروت کیسه یادوي؛ مولانا وایي:

«پاتې شو چې پریښتې یو کار لا زده کړي (سحر یا جادو) نو دوی پخپله ترې آزاد ول، نو مثال یې داسې دی، لکه څنګه چې د پولیسو له یونیفورم پرته عسکر، چې یو رشوت خوره باچا ته پیسې وروړي، تر څو په عین وخت کې یې د همدغه جنایت پر ترڅ کې مجرم وګڼي او د بې ګناهۍ کومه لاره ورته پاتې نه شي». ( ۹۸, ایضا)

په داسې وخت کې که کوم شخص ووایي، چې زموږ د خدای تصور باچا او د بادشاهۍ د تجربو شعوري انځور دی، نو موږ ولي د دغه شخص خوله بنده کړو.

د منع شوې ونې په اړه د مولانا له تفسیر څخه د تورات تفسیر ډېر ښه برېښي. د بیلګې په توګه؛ کتاب خلقت کې لیکل شوي:

«خدای د ختیځ خواته یو باغ جوړ کړ، لکه څنګه چې یې یو انسان جوړ کړی وو، نو پر ځمکې یې هر ډول ونې کښت کړې، د ځمکې پر سر یې د باغ په مینځ کې د ژوند ونه، د خیر او شر ونې واضح کړې... او خدای آدم ته حکم وکړ، چې د باغ له هر ونې څخه میوې خوړلای شي، خو د خیر او شر له ونې څخه هېڅکله هم څه مه خوره؛ ځکه که کومه ورځ تا داسې وکړل نو ته به مړ وې». (کتاب خلقت، ٦, ۱۹۴۹)

خو مارپه دې بریالی شو، چې د حوا په زړه کې دا وسوسه پیدا کړي، چې که کومه ورځ ته د دې ونې میوه وخورې. [نو ستا سترګې به خلاصې شي او ته به د خدای په څېر له خیر او شر سره اشنا شې].

اوس د تورات له نظره، د آدم خبرې واورئ:

«او د خدایانو خدای وویل: وګورئ انسان د خیر او شر په پېژندلو سره زما په څېر شول. اوس د دغې خبرې وېره ده که چېرته د ژوند د ونې مېوه وخوري، نو تلپاتې به وي. ځکه خو د خدایانو خدای هغه له باغ څخه وشړه... او د باغ په ختیځ برخه کې یې تیرې تورې کېښودې، تر څو د ژوند د ونې ساتنه وکړي». ( ۷, ایضا)

د اور په اړه، فلیسوفانو کې تر ټولو لومړی هراکلیتس (۵۳۵ ـ ۴۷۵ ق.م) نه یواځې فکر وکړ، بلکې د خپل حرکت او تکامل فلسفي بنسټ یې هم د اور د بدلون په اساس کېښود. د هغه له نظره

[دغه نړۍ چې د ټولو لپاره يوشانتې ده، نه په خدايانو کې چا جوړه کړې او نه هم انسانانو، بلکې هغه له ازله شتون لري او تل پاتې به وي. هغه تل پاتې اور دی، چې يوه برخه يې روښانه وي او يوه برخه يې مړاوې شي]. (Burent, 1957) هراکليټس د آيوانيا ښار افې سوس اوسېدونکی وو. د هغه د ژوند په اړه موږ يواځې دومره خبر يو، چې هغه د افې سوس له پخوانۍ شاهي کورنۍ سره اړيکې درلودې. هغه هېڅکله هم واده ونه کړ او نه هم د لوړ پوړو چارواکو په مجلسونو کې يې ناسته - پاسته کول، بلکې هغه خپل هر څه خپل ورور ته ورکړل؛ قلندرانه ژوند يې اختيار کړ. هغه به ځنګلونو او غرونو ته سفر کوه او کله چې به ښار ته راغی، نو زياتره وخت به يې له ماشومانو سره تېروه. هغه يو کتاب ليکلی وو، چې په درې برخو وېشل شوی وو. لومړۍ برخه يې د هستي، دويمه برخه يې د سياست او دريمه برخه يې د اديانو په اړه وه. دا کتاب تر اوسه ورک دی، خو د ده ۱۳۰ مقالې يوناني فيلسوفانو په خپلو کتابونو کې ځای پر ځای کړي. افلاطون خو په خپلو کتابونو[قراتايلس او تېتتس] کې په ځانګړي توګه هڅې کړي، تر څو د هراکليټس ځينې نظريې رد کړي.

د هراکليټس ښار د زردشتي حاکمانو تر ولکې لاندې وو، نو شونې ده، چې د زردشتيانو له کتابونو څخه ډېر اغېزمن شوی وي او اور يې د نړۍ تر ټولو ستر ځواک ګڼلی؛ د ده نظريې د آيونيا د طبيعي فليسفوفانو له نظريو سره ورته والي لري، خو د ده فلسفه تکامل ته رسېدلې وه. د بيلګې په توګه: د هغه ځای ټولو طبيعي فيلسوفانو د هستۍ د وجود په اړه له هستي څخه حوالې ورکړي، د کوم مافوق القوت/ باندني ځواک په اړه دوی څه ندي ويلي او نه هم د کوم خدای په خدايي يې عقيده درلودل. دغه طبيعي فيلسوفان د وحدت الوجد منونکي هم ول. دوی به ويل: هستي چې ډېره پراخه مالومېږي، د ده شاته يو واحد عنصر شتون لري. تاليس اوبو ته د اصل الاصول رتبه ورکړه. انکسای نېز هوا ته، انکسی ماندر فکر ته او دموکراټس اتوم ته. دغه ډول دغو فيلسوفانو د هستي د حرکت منونکي هم ول.

هراکليټس وتوانيد، په دغه برخه کې نور هم کار وکړي. هغه به ويل: پوښتنه دا نه ده چې دغه شيان څه شی دي، بلکې پوښتنه دا ده، چې څنګه پيدا شول يا مينځته راغلل. نو اصل حقيقت [کېدل] دي نه [وجود]. يانې هغه غواړي موږ پوه کړي، چې هر يو شی حرکت کوي او له وخت سره بدلون مومي، نه چې هستي سکون کې ده، خو د دغه بدلون نوعيت څه دی. شيان د کومو اصولو، کومو قوانينو له نظره حرکت کوي او بدلون مومي. د دغه قانون د حرکت او بدلون قانون کشف شو، چې

ورته ډیالیکټیک ماتریالیزم ویل کېږي؛ دا د هراکلیټس ترټولو ستر شهکار وو. کله چې لینین په سویزر لینډ(۱۹۱۵ میلادي) کې ورځې شپې سبا کولې، نو ده د نولسمې پیړۍ د جرمن [سوسیالیست لسال هراکلیټس] کتاب ولوست او له ډېر فکر وروسته یې د هراکلیټس په دغو خبرو، چې پورته ذکر شول لیکنه، وکړه چې[دا د ډیالکټیک ماتریالیزم د اصولو او قوانینو ډېره ښه تشریح کوي]. او له لسال څخه گیله کوي، چې دغه شخص هراکلیټس د هیگل هم فکره گڼي او د ده [خلاص زړه، تازه گي، ساده توب او تاریخي عینیت هر څه تباه کوي]. (Lenin, Collected Works, P.349) له ډیالیکټیک څخه موخه دا ده، چې د هستۍ هره ذره او انساني ټولنه د هستي یوه برخه ده، خو دوه متضاد عنصرونه دي، چې هر وخت له یو بل سره په ټکر کې وي. له دغه ډول تصادم څخه [کشاش پیهم] (اقبال) نوي شیان مینځته راځي او تل حرکت کوي او له وخت سره بدلون کوي.

هراکلیټس د هستي د وحدت، حرکت او ډیالیکټیک دریو واړو د تشریح لپاره اور غوره کړ. دغه خبرې کېدای شي، ده د اور له ځانگړتیاوو څخه راخیستي وي. هغه به ویل نړۍ په یو وخت کې وحدت هم دی او جلا هم او د تضادونو یوځای والی د دغه وحدت بنسټ دی[پوهه د زیاترو شیانو علم نه دی بلکې د تضادونو په تصادم کې چې کومې ځانگړتیاوي پټې دي د هغه په اړه فکر کول خپله پوهه ده]. خو دا کومه منطقي فلسفه نه وه، بلکې سل په سله مادي حقیقت وو.

دغه وحدت، په اصل کې څه دی؟ هغه اور دی، چې په خپل طبیعت کې دغه ځانگړتیاوې لري، چې زیاتره شیان جوړ کړي. ټول شیان د اور له امله مینځته راغلي او اور د ټولو شیانو بدلون دی[لکه څنگه چې بازاري شیان د سره زرو بدل دی او سره زر د بازاري شیانو]. ټول شیان د اور یوه بڼه ده، که څه هم اوبه دي یا خاوره چې د اور انجمادي حالت دی.... د پورته تلو او کښته راتلو لاره یوه ده. د اور تغیر شوې بڼه سمندر دی، چې نیمه هوا ده او نیمه خاوره، بیا بخارات ترې جوړ شي، نو پورته حرکت کوي، بیا اوبه ترې جوړې شي، نو بېرته ښکته راشي. کله چې اور ته زور ورکړل شي، نو اوبه ترې جوړ شي، کله چې اوبه سره یوځای شي نو خاوره ترې جوړېږي. دا له پورته څخه د ښکته راتلو عمل دی. بیا خاوره بېرته اوبه شي. اوبه بیا پورته لاړې شي؛ د سمندر له اوبو څخه بخارات جوړ شي. دا له ښکته څخه د پورته تلو عمل دی. انسان هم همداسې دی. زموږ د بدن حرارت/انرژي(اور) په مستقله توگه په اوبو بدلېږي او اوبه په خاوره. انسان له دریو عنصرونو څخه جوړ دی. اور، اوبه او

خاوره. ترټولو فعال عنصر اور دی. [کله چې اور بدن پرېږدي نو اوبه او خاوره دواړه بې ګټې شي]. نو موږ هر لحظه شته یو او کېدای شي، نه یو.

په اور کې، چې د حرکت او تغیر کومې ځانګړتیاوې شتون لري، هغه دومره څرګنده دي؛ چې نورې تشریح ته اړتیا نه پاتې کېږي. د اور په لوخړو کې د اور مقدار یو شانتې پاتې وي، خو ماده یې په مسلسله توګه بدلون کوي. هغه په مسلسله توګه لوخړې جوړوي او په هوا کې پورته ځي او نوې ماده یې ځای نیسي. نو د هستي حقیقت همداسې دی او همداسې پرمخ روانه ده، چې سکون او ثبات نه لري. نو [موږ په یوه دریاب کې دوه ځلې نه شولمبېدلای]، کوم شی نه دی، بلکې روان یا جاري دی. حرکت او تغیر د هستۍ د وجود شرط او د وجود انداز یې دی.

د اور رڼا، د ډیالیکټیک عمل یو بې ساری مثال دی. هغه خو د ګاز او نامیاتي شیانو له تصادم څخه مینځته ته راځي، خو هراکلیټس د ډیالیکټیک په اړه ډېرې نورې بیلګې هم وړاندي کړي، چې د هغه په پوهې دلالت کوي. هغه وایې: «خلک ندي خبر، هغه چې په ظاهره کې د ځان مخالف ښکاري، هغه په حقیقت کې یو شی دی. د بیلګې په توګه غشی او لیندی؛ د هغه له نظره تضاد یو ډېر ستر حقیقت دی. په یو لاس موږ لیندۍ د ځان خواته راکشوو او په بل لاس یې له ځان څخه لیري کوو. یو بل ځای وایي: خیر او شر یو شی دی.» دا داسې مانا نه ورکوي، چې نیکي او بدي یو شئ دی، بلکې دواړه یو حقیقت لري. که په یوې ټاپووزمه کې یواځې یو شخص وي، نو خیر او شر دواړه بې ګټې وي، نه به شر وي نه به خیر......... هغه وایي: «د هومر دغه خبره اشتباه ده، چې خدای دې وکړي د خدایانو او انسانانو تر مینځ دغه تضاد له مینځه ورک شي. هغه دې ته ونه کتل، چې هغه د هستي د هلاکت دعا غوښتي ده، که چېرته د ده دعا قبلېدل، نو هستي به فنا شوې وه». په یو لیک کې لیکي: «انسان هم د طبیعت په څېر حرکت کوي، خو د حېرانتیا خبره دا ده چې دوی دغه قوانین نه مني، چې له مخې یې طبیعت حرکت کوي. مصور د رنګونو په توپیر سره یو همغږی اثر جوړوي، موسیقي غږونکی هم همداسې کار کوي. شپه او ورځ یو وحدت دی، دا نه چې شپه ورځ ده او ورځ شپه؛ بلکې هغه د یوې سکې دوې خواوې دي، یانې اوبه او اور په یو مقدار کې راڅرخي یا حرکت کوي. له یو پرته بل شونی نه دی او کومه تشریح چې د ورځ په اړه وي د شپې په اړه هم همغسې وي».

که چېرته د پرومیتیوس داستان له سترګو پټ کړو او که په خپلو سترګو هستي ته وګورو نو داسې به محسوس کړو، چې اور د ننني زمانې د تاریخ فلسفه او د انقلاب په فلسفه کې یو ستر لارښود ثابت

شوی، نو ځکه خو ډیکارټ، سپینزوا، روسو، دیدرو، کانټ، هیگل، مارکس او انگلس؛ ټولو د هراکلیټس له ډیالیکټیک څخه زیات څه زده کړل. مارکس او اینگلس د ډیالیکټیک په اړه، د هیگل ټولې نظریې رد کړې او دوی وویل: «نړۍ که څه هم طبیعي وي، تاریخي وي یا شعوري، یو تل پاتې عمل دی، تل حرکت کوي، تغیر مومي، په انقلابي بدلونونو او د تکامل په نړۍ کې» یعنې حرکت او تغیر د طبیعت قانون دی، چې پر ټوله هستي برلاسی دی. دوی د فلسفې، تاریخ، اقتصاد، ادب او ساینس له معتبرو نسخو څخه دا ثابت کړل، چې د هر شي کمیت څنگه په کیفیت او کیفیت څنگه په کمیت بدلون کوي او څنگه په هر شي کې د ده تضاد پټ وي، چې له امله یې یو نوی شی مینځته راځي. دوی د ډیالیکټیک ماتریالیزم په رڼا کې، د انساني تاریخ په ځانگړې توگه د پانگوالي نظام هر اړخیزه تشریح کړې او ویې ویل چې: د دې داخلي تضاد... په تولیدي ځواکونو او تولیدي اړیکو کې شتون لري... څه ډول زیارکښې طبقې دغه حالاتو څخه په تنگ راشي او بیا یو ټولنیز انقلاب رامینځته کړي.

د پرومیتیوس د داستان له نظره، د انسان تقدیر د یو خدای په کرم سره بدلون وکړ، خو که وکتل شي، حقیقت دا دی، چې انسان له ازله د خپل تقدیر مالک دی. انسان په خپلې پوهې په نړۍ کې ډېري انقلابونه رامینځته کړي، خو تقدیرونه یواځې په هیلو سره داسې کړني نه شي ترسره کولای او نه به هم په راتلونکو کې داسې کوم شی ولېدل شي؛ بلکې د هستۍ د جوړوونکو او تخریب کونکو ځواکونو تر مینځ چې کوم تضاد روان دی، دا پرمخ ځي. کله چې انسان پوهه ترلاسه کړه، نو په خپلو ټولنو کې یې گټه ترې واخیستل او ستر ستر کارونه یې ترسره کړل... بیا له وخت سره د سترو سترو انقلابونو شاهدان ول.

# شپږم څپرکی

# د ژوند انځور

د وخت په تېرېدو سند، دجله او نیل کې نوي تمدنونه راوټوکېدل. په ایران، چین او یونان کې د علم او پوهې ډیوې روښانه او د وخت په تېرېدو بیرته مړې شوې. د روم ستر نوم او نښان لوړ شو او په فضا کې ورک شو. د عباسیانو او مغولو بېرغونه پورته شول، خو له وخت سره بېرته نسکور شول. د لویدیځ علوم تر زیاتو سیمو ورسېدل، خو د انساني فرهنګ او تمدن  په لومړنۍ زانګو کې هغسې ویده پاتې شول.

سمڅه یوه افسانه هم ده او تاریخ هم. که له وېرې ورته وګورو، نو په دغو سمڅو کې یواځې او یواځې مرګ دی. سړې خواره دېبان، د پیریانو وېرونکې غږونه او همداسې نور. خطرناک ښاماران، په نږدېو سیمو کې پټ شوي زمریان، لیوان، لوټماران او غله... نو روایاتو موږ ته سمڅې د تخریبي ځواکونو مرکز په توګه راپیژني، نو په پخوانیو داستانونو کې موږ د سمڅو په اړه له وېرې ډکې کیسې لوستي دي. هغه سمڅه وه، چې پکښې کاني دیو د هومر هیرواډویس سربېره د هغه ملګري هم نیولي

ول او ځیرک هیرواډویس دېب/دیو ته نشه ورکړه او کله چې دیو بې هوښه شو، نو په سترګو کې یې د اوسپني ګرمه ټوټه ننویستل. بیا له سمڅې څخه ووتل. هغه هم سمڅه وه، چې پکښې د علي بابا ورور ته د دولت هوس ورغی، خو له هغه د [کهل جا سم سم] ( خلاص شه سم سم) جمله هېره شوه، غلو ونیوه؛ ویې واژه او له ونې سره یې وتړه.

خو که د تاریخ له سترګو ورته وګورئ، نو دغه سمڅې د انسانانو لومړی کور وو، چې دوی پکښې له ۲۵، ۳۰ سوه زره کاله له مخه ژوند کاوه. دوی، دغلته د نسل د زیاتولو له طریقې سره بلد شول، د اور د بلولو تجربې یې وکړې، له ډول ډول طبیعي ځواکونو سره بلد شول، چې بیا وروسته د ډول ډول انقلابونو پایلې وګرځېدې. دغه سمڅې د دوی لومړني معبدونه او مقبرې وې. کله چې دلته ورسېدل، نو د ټولو آسماني او ځمکني افتو څخه وژغورل شول. دغه سمڅې د دوی لپاره د مور د رحم حیثیت درلود. په ظاهري او باطني بڼه. هغه ډول تیاره، هغه ډول کشمکش او د امنیت لپاره ښه ځای، خو د انسانانو بې پروایۍ ته وګوره، چې سلګونه زره کاله دلته واوسېدل، خو کله چې یې دغه سمڅې پرېښودې؛ کېږدیو، کلیو او ښارونو کې میشت شول، نو بیا د تل لپاره د سمڅو خواته ورنغلل. داسې یې هېرې کړې، چې فکر کیږي دوی هلته بېخي نه ول اوسېدلي. نو د دوی نوي نسلونه بېخي خبر نه ول، چې د دوی نیکه ګان په سمڅو کې اوسېدل.

وخت تېریده؛ په سیند، دجله او نیل کې نوي تمدنونه مینځته راغلل او له مینځه ولاړل. په ایران، چین او یونان کې د علم ډیوې روښانه شوې او له وخت سره بېرته مړاوې شوې. د ستر روم د سلطنت خبرې ټولې نړۍ ته ورسېدې، خو بېرته یې هر څه له مینځه ولاړل. د عباسیانو او مغولو بیرغونه په خورا جوش او ولولو سره پورته شول، خو له وخت سره بېرته رانسکور شول. د لویدیځ علوم د نړۍ ګوټ، ګوټ ته ورسېدل، خو د انساني فرهنګ او تمدن په لومړیو زانګو کې هغسې ویده پاتې شول.

نو بیا داسې پېښه وشوه، چې د نولسمې پیړۍ په پیل کې د هسپانیې له یوه وړوکي کلي څخه یوه سپي د ګیدړ لاره څارل، چې یوې سمڅې ته ننوته. د سپي څښتن مارسیلو داساؤ تولا هڅه وکړه، چې سپی له سمڅې څخه راوباسي، هغه خپله هم ور دننه شو، نو سترګې یې ولګېدلې، چې دننه خو یو ستره سمڅه ده. مارسیلو داساؤ د پخوانیو اثارو د موندلو ډېر شوق درلود. هغه د سمڅې کیندل پیل کړل؛ چې ګوندې د پخوانیو زمانو ځیني اثار لاس ته راشي. یوه ورځ کله چې سمڅې ته ننوت، د هغه ماشومه لورکۍ ماریا هم ورسره وه. ساؤ تولا د سمڅې په کېندلو بوخت شو او ماریا له تېرو سره

ساعتېري پيل کړه. يو ناڅاپه ساؤتولا د ماريا چېغه تر غوږ شوه. «غوا، غوا! ساؤ تولا د ماشومې خواته راغی، خو حيرانه شو چې په دومره تنګې سمڅې کې غوا له کومه شوه. هغه د ماريا خواته ورغی نو ماريا د بام خواته سترګې نيولې وې. ساؤ تولا چې غوا ونه لېده نو له ماشومې يې وپوښتل، خو له څنه وروسته هغه د چت خواته وکتل، بيا يې داسې يو څه ولېدل چې له شلو زرو کلونو څخه چا ليدلي نه وو. په سور او تور رنګ کې د غوايانو لړی، چې د بام له يو سر څه تر بل سر پورې نقاشي شوې وې. دا د التمير سمڅې وې، چې پکښې پخوانيو انسانانو  خپل هنرونه انځور کړي وو او ساؤتولا په کال ۱۸۷۹ ميلادي کې وليدل.

ساؤتولا د سمڅې ديوالونه په خلاصو سترګو وليدل، چې رنګارنګ غواګانې او پسونه دي، ځينې ځايونه کې ځنګلي يېږې، ځيني ځايونو کې د لاسونو نښانې. کله چې يې وشمېرل، نو په دغه يوې سمڅې کې د حيواناتو ۱۷۰ انځورنه کښل شوي ول. رنګونه يې دومره روښانه او زړه راښوونکي ول، لکه همداوس چې کښل شوي وي. ساؤتولا د خپلو زړه راښکونکو انکشافاتو ذکر په ورځپاڼو کې وکړ او د پخوانيو اثارو له ماهرينو څخه يې غوښتنه وکړه، چې دوی دې راشي د سمڅې کتنه دې وکړي، خو د لويديځ پوهانو په ساؤتولا ريشخند ووهل. چا به ويل دا د ښوونځيو د زده کونکو کار دی. چا به ويل نه، سيمه ايزو شپونکيو د خپل وخت تېرولو لپاره دا انځورونه کښلي دي. نو نه حکومت کوم پلان درلود، چې دغه سمڅې ته ولاړ شي او کتنه يې وکړي او نه هم هنرمندانو دغه کار ته زړه ښه کړل. بس ساؤتولا چپ پاتې شو.

دا خبره رېښتيا ده، چې د التمير له کشف څخه مخکې د پخوانيو اثارو پوهانو د پخوانۍ زمانې د تېږو اوزار، د فيل د غاښونو په برخو کښل شوي نقشې، د سيپ او هډوکو ګاڼې موندل شوي ول. د بيلګې په توګه: د بروېلي په نامه يو فرانسوي پوه د نولسمې ميلادي پېړۍ په لومړيو کې د سوينې په سيمه کې د هډوکو يوه برخه وموندل. په دغه کې دوه سويان(سوی) انځور شوي ول. د کلوني موزيم په ۱۸۵۱ ميلادي کې، د هډوکو دغه ټوټه موندلې وه، خو هېچا هم پرې فکر ونه کړ، چې دا څومره پخواني دي. دغه ډول په ۱۸۳۳ ميلادي کال کې د ميير په نامه يوه انګليسي پوه د هډوکو يو لرګی موندلی وو، چې په يوه خواه يې آس کيندل شوی وو او بلې خواته يې يو بوټی. په ۱۸۵۲ ميلادي کې د فرانسې په آرناک سيمه کې د هډوکو يو امېل او د فيل د غاښونو ځينې ګاڼې کشف شوې وې. په ۱۸۶۳ ميلادي کې د وزير ندي په سيمه کې چې د پاريس په سهيل کې دی؛ په زياته اندازه د پخوانيو

زمانو وړوکي وړوکي اوزار وموندل شول، نو په ۱۸۶۴ ميلادي کې په دغه کشفياتو يوه لنډه مقاله ولیکل شوه، چې په فرانسوي ژبې خپره شو. په دغه کال د مارلين(فرانسه) سيمه کې د ميمت (يو ډول ژوی وو) يو غاښ وموندل شو، چې د ډول ډول ځناورو څېرې پرې رسامي شوې وې.

دا خو خير، واړه کشفيات ول، چې د پخوانی زمانې د هنر د څرګندلو لپاره سخته تماميدل، خو د حيرانتيا خبره دا ده چې د التمير په څېر په سمڅو کې چې ځيني شيان وموندل شول، نو پوهانو پرې سترګي پټې کړې. د بيلګې په توګه: کله چې سرجارج ګري په ۱۸۳۷ ميلادي کې د استرليا په سفر تللی وو، نو هغه د اقليدسي زمانې داسې رنګارنګ انځورونه د کمبرلي په سمڅو کې کشف کړل. په ۱۸۴۸ ميلادي کې د جهيل او نيګا (روسيه) په ختيځو سمڅو کې بې شميره نقاشياني وموندل شوې، چې په ديوالونو کنبل شوي وې. دا د کبانو، او همداسې نورو ژوو انځورونه ول. په همدغو ورځو کې ستړو د سهيلي افريقا په غرونو کې د اقليدسي زمانې زړه راښکونکي انځورونه وموندل او له ډېر زيار وروسته يې نقل کړي ول، خو دغه انځورونه او نقاشيانې په اصل کې د اروپا په زياترو لريو پرتو سيمو کې موندل شوي وې، چې ډېرې وروسته پاتې سيمې وې. دوی نشوای کولای، چې دغه ټول اثار په يو قوم پسې وتړي او دا يې هم په وس کې نه ول، چې د انساني مدنيت/تمدن په تکامل کې له دوی څخه ګټې واخيستل شي؛ تر څو يو تاريخي کتاب پرې بشپړ کړي. د هغه زمانې د پوهانو دغه فکر وو. له ساؤتولا لس کاله وروسته موسيو شيرون د شيبوت سمڅې تفصيلات خپاره کړل، پيل يې له څو کلونو مخکې کړی وو، خو له ده سره هم د ساوتولا په څېر چلند وشو.

د نولسمې پيړۍ پای ته پنځه کاله پاتې ول، چې يو بله سمڅه په ناڅاپي توګه د لاموت (فرانسه) په سيمه کې کشف شوه. يوه کروندګر د خپلو مالونو لپاره غرنۍ سيمه پاکول، چې يو ناڅاپه يې د سمڅې سوړه موندله. تر کلي دغه خبره ورسېده نو ځينو زړورو ځوانانو سمڅې ته د تلو تکل وکړ. دوی ډيوې له ځان سره واخيستلې او سمڅې ته دننه شول. کله چې بېرته راستانه شول، نو دوی کليوالو ته وويل چې د سمڅې په ديوالونو کې د آسونو، غوايانو، ځنګلي غوايانو او همداسې نورو ژوو انځورونه کنبل شوي ول. څو کلونه وروسته د دغې سمڅې څنګ ته يوه بله خونه هم وموندل شول، چې هلته هم ډول ډول انځورونه ول. دا د ديګام مشهوره سمڅه وه، چې د ۱۹۰۱ ميلادي کال په ستمبر کې کشف شوه. همدغه وخت د ختيځې هسپانيې په ځينو غرونو کې ډول ډول انځورونه وموندل شول. په دغه انځورونو کې ډېري انځورونه د حيواناتو او ځناورو ول، خو د التمير او ديګام له

انځورونو سره يې ډېر توپير درلود؛ خو تاريخ پوهانو او د اثارو ماهرينو دغه هم دروغ وګڼل. نو په فرانسې کې چې د پخوانيو اثارو د ماهرينو نړيوال کانفرانس وشو، چې په دغه نويو کشفياتو د بحث اجازه هېچا ته ورنه کړل شوه.

خو حقيقت تر ډېره وخته نه پټيږي او له وخت سره بايد ومنل شي. نو د ۱۹۰۲ ميلادي د اکتوبر په اوله د لرغونپوهانو يوه ډله د برويلي په ټينګار د التمير سمځې ته ورغلل. د دغه په اړه برويلي ليکي: «زموږ سره يواځې ډيوې وې، خو په دغه تياره چاپېريال کې چې هم زموږ سترګو ځيني شيان ولېدل؛ نو موږ هک پک پاتي شوو. سمځې نمجنې وې، نو ځکه له انځورونو ځخه کاپي نه اخيستل کېده، ځکه رنګونه لانده ول او له کاغذ سره به ونخښلېدل. د کاپي اخېستلو مانا دا ده چې د انځورونو ضايع کولو پرته هغه انځور يو کاغذ ته واړول شي. نو برويلي وويل دغه کار زه کوم. ما د ورځې ۸ ساعته دغه کار کاوه او انځورونه مې نقلول چې په بام کښل شوي ول. په دريو اونيو کې برويلي دغه کار ترسره کړ، خو خپروندويه ټولنې د دغو انځورنو له چاپ څخه منکر شول. په پای کې برويلي په خپل مالي لګښت په التمير يو کتاب په ۱۹۰۸ ميلادي کې خپور کړو. »

دا د خوښۍ خبره ده، چې د برويلي په څېر داسې پوه شخص دغه کار ترسره کړ. نو له دې وروسته برويلي خپل ژوند د دغه هنر لپاره وقف کړ. نن په فرانسې کې، د برويلي د نقل شويو انځورونو دومره نسخې موندل کيږي چې که وغواړئ يو دفتر ترې جوړيږي.

اوس له ډيوې وروسته نورې ډيوې بلې شوې. د سمځو له کشف سره دغې لړۍ نوره هم پراختيا وموندل. نو له دې وروسته به هر کال د يوې سمځې نښان په ګوته شو. کله په هسپانيې، کله په فرانسې، کله په جرمني، کله په ايټاليا، کله په روسيې، کله په چکوسلواکيا، کله په سويډن او کله په ناروې کې. ترټولو آخرنۍ سمځې هغه وې، چې د باميډ ډيونلز په سيمه کې د ۱۹۵۱ ميلادي کال په مارچ کې وموندل شوې. تر دغو له مخه يوه ډېره مهمه سمځه لاسکا د ۱۹۴۰ ميلادي په سپتمبر کې دوو ځوانانو کشف کړې وه.

د پخوانيو زمانو د اثارو موندلو ماهرين په اروپا کې، له التمير تر بايکال جهيل او له هاګن(ناروی) تر کيډز(هسپانيې) پورې غځېدلي ول، خو د دې دورې تر ټولو ستر مرکز سهيل لويديځه فرانسه وه. هلته تراوسه ۷۰ سمځې کشف شوې دي. دغه سمځې په دوو سيمو کې وموندل شوې. يوه هغه غرنۍ سيمه، چې د دوردون له سيند سره غځېدلي وه او بله د فرانسې په سهيلي بندر کوپيرنيز کې. برسېره پر

دې د هسپانيې په شمال لويديځ، ختيځ او سهيلي سيمو کې د دغې دورې لږ تر لږه څلوېښت سمڅې او غرنۍ سيمې ومونډل شوې. بيا په غرنو او تېږو کې د رنګارنګ انځورونو او نقاشيو يوه اوږده لړۍ ده، چې له هسپانيې څخه پېليږي. د سمندر هغې غاړې ته له مراکش او الجزاير څخه نيولې تر کيپ ټاون پورې رسېږي. دغه انځورونه او نقاشيانې که څه هم له پخوانيو زمانو سره اړيکې درلودې او کومو لرغونپوهانو چې دغه کشفيات ترسره کړي ول، په هغوی بيا يو جلا بحث کوو؛ ځکه د اروپا ځانته يو جلا بحث دی. په استرليا او افريقا کې چې کومو لرغونپوهانو دغه انځورونه مونډلي، نو د دواړو وچو ياد انځورونه او نقاشيانې سره ورته والي لري.

که څه هم يوه نيمه پېړۍ وړاندې موږ د دغو سيمو د اوسېدونکو په اړه معتبر شواهد او مالومات نه درلودل او ځينې شته مالوت هم له زياتو نيمګړتياوو سره مله ول. يانې پخوانۍ  زمانه د ځمکې لاندې خښه وه. موږ د دوی په اړه هېڅ ډول مالوت نه درلودل او نه هم موږ دغه هڅې ترسره کړې وې؛ ځکه هېڅ ډول وسيلې مو نه درلودې. زموږ د خبراوي لپاره يواځې ځينو پخوانيو مذهبي کتابونو شتون درلود، يا سيمه ايزو کيسو، چې له پخوا په همدغو قومونو کې رواج وې. د دغه روايتونو او کتابونو له مخې انسانانو د پخوانيو ټولنو په اړه نښې ومونډې. نو د اولسمې پېړۍ يو پادري اشر د انجيل له کتاب څخه ثابت کړل،  چې د آدم واقعه له ميلاد څخه مخکې په ۲۰۰۴ کې رامينځته شوې او د لويديځ پوهانو د اشر دغه څرګندونې تصديق او ومنلې، خو په نولسمې پيړۍ کې چې کله ساينس پرمختګ وکړ او نوي - نوي علوم مينځته ته راغلل، لکه ستورپوهنه (علم الافلاک)، جيولوجي (علم الارض) او د حيوانانو علم (علم الحيوان). نو له دې سره پخوانۍ عقيدې ټولې په خطر کې شوې. سياينس پوهانو د ځمکې او ژوند د پيل عمر تعين کړ. د ژوند د تکامل نظريو پرمختګ وکړ. دوی د ځمکې له لاندې پوړونو څخه داسې شيان ومونډل، چې له مخه يې د دوی هره خبره په ثبوت سره ريښتيني کېږي. دوی د هغو حيواناتو سکليټونه هم ومونډل چې په وخت سره له مينځه تللي ول او کله چې په ۱۸۹۱ ميلادي کې پروفيسور دوبا په جاوا کې، د يوه پخواني انسان کوپړۍ (دسر برخه) ومونده، چې څلور سوه زره کاله پرې تېر شوي ول. نو د پادري اشر حساب سر تر پايه غلط ثابت شو. له دې وروسته په ۱۹۰۷ ميلادي کې هائيدل د برګ( جرمني) په سيمه کې د يو انسان غاښونه ومونډل، چې پنځه سوه زره کاله پخواني ول او په ۱۹۲۷ ميلادي کې د پيکنګ (چين) په سيمه کې د يوې سمڅې

له کشف سره د انسانانو ۴۵ اسکلیتونه وموندل شول، چې څلور سوه زره کاله پخواني ول. نو اوس موږ په ډاډ سره داسې ویلای شو، چې انسانان لږ تر لږه پنځلس سوه زره کاله له مخه په ځمکه مېشت ول.

څېړونکو دا هم ثابته کړل، چې د دغه پنځلس سوه زره کاله په ترڅ کې د انسانانو په فرهنګ، دودونو، عنعنو، آلات او اوزارنو، عقایدو، تمدنونو او افکارو کې ډول - ډول بدلونونه راغلي. انساني تمدن کوم ساکت او جامد شی نه دی، چې په یوه ځای ولاړ وي بلکې بدلون منونکی او فعال حقیقت دی، چې تر اوسه یې د تکامل ډول - ډول بېلې سرته رسولي او دغه عمل تراوسه روان دی. د دغو بدلونونو وجه هغه تولیدي ځواکونه دي، چې انسانانو د خپلو ټولنیز ژوند د اړتیاوو پوره کولو لپاره خپل کړي ول. په حقیقت کې د انساني تمدن د بیلابېلو دورو څرنګوالی هم د دغو تولیدي ځواکونو له مخې روښانه کېږي، نو ځکه په ۱۸۳۶ میلادي کې د کرستین ټامسن په نامه یو فرانسوي پوه د تولیدي ځواکونو له مخې د انساني تمدن درې بنسټیزې دورې یادې کړي دي.

۱ـ د ډبرو دور؛ په دېدوره کې ټول تولیدي ځواکونه له تېږو، لرګیو یا هډوکو څخه جوړ شوي ول.

۲ـ د مسو دور؛ په دېدور کې ټول تولیدي ځواکونه/تولید اوزار له مسو څخه جوړ ول.

۳ـ د اوسپنې دور؛ چې له میلاد څخه مخکې د زرو کلونو په ترڅ کې پیل شوې وه او تراوسه روانه ده.

د ډبرې دور چې له پنځه سوه زره (ق.م) تر پنځه زره (ق.م) پوري رسېږي. دغې دورې ته له تاریخ دمخه دوره هم ویل کېږي.

د پخواني دور کوم اثار چې تراوسه موندل شوي، ترې داسې انګېرل کیږي، چې د هغه زمانې انسانان له نقاشۍ، انځورګرۍ، مجسمه جوړوني او موسیقۍ سره اشنا ول. د اروپا په سمڅو کې، چې څومره پخواني آثار موندل شوي، زیاتره یې د ۳۰، ۴۰ زره کاله پخواني دي. نو د دغو اثارو د عروج دوره تر منځنیو پېړیو پوري رسېږي او بیا له مینځه ځي. ځکه کومو هنرمندانو چې دغه اثار جوړ کړي ول، له مینځه ولاړل یا له دغو سیمو کډوال شول او نورو سیمو کې میشت شول. په دغه دوره کې زیاتې واورې ورېدې، نو ځکه دغه دورې ته د واوري دوره هم ویل کېږي. په دغه وخت کې د اروپا ټولې منځنۍ او شمالي سیمې (بریټانیه، جرمني، پولینډ، ناروې، سویډن او شمالي روسیه) له واورو څخه ډکې وې. په دغو لارو نه کوم انسان او نه حیوان تللی شو.

خو د هسپانیې، فرانسه، ایټالیا، بالکان او وولګا سیند سیمې له واورو څخه خوندي وې. د ژمي موسم کې به په دغو سیمو کې هم واورې ورېدې او سخته طوفانونه به راتلل، خو په شمالي اروپا کې به معتدل موسم وو. په دغو سیمو کې به د لوړو لوړو ونو ځنګلونه ول. میوه لرونکي بوټي، سیندونه، ډاګونه او کرنیزي ځمکې زیاتې وې، نو ځکه هم په دغو سیمو کې ډول ډول ځنګلي ځناور هم اوسېدل. انسانانو به د خواړو لپاره دغه ځنګلي ځناور ښکار کوئ، ځکه خو انسانان هم د ښکار لپاره له یوې سیمې څخه نورو سیمو ته تلل.

په دغه دوره کې، انسانانو په سمڅو او غرونو کې ژوند تېروئ، خو کله چې به په هواره سیمو کې اوسېدل، نو د ځانونو د ساتلو لپاره به یې خندقونه کیندل او سر به یې په بوټو ورته پټول. د دوی خوراک ځنګلي ځناور ول. له ویلې شوې وازګې څخه به یې شمعې روښانه کولې، له پوستکو به یې ځانته کالي او ډول ډول شیان جوړول. له کومې ورځې راهیسې چې د اور له کارولو سره بلد شوي ول، نو خپل ښکار به یې په اور پخاوه او بیا به یې خواړه.

د دغې دورې د ښکاریانو د ښکار اوزار له لرګیو، تېږو او هډوکو څخه جوړ ول. د ښکار لپاره به اوږده اوږده بانسونه کارول کېدل. د دغو بانسونو په سر کې به یې د ډبرې یا هډوکي تېرې برخې نښلولې. دغو وسلو به تر ډېره لیري ځایه ګوزار نه شوکولای، نو ښکاریان به په پټه دغو ځناورو ته ځانونه نږدې کول. خو د فیل په څېر د سترو سترو ځناور ښکار په دغو وسلو شونی نه وو. کله چې به دوی دغو ځناور ته نږدې کېدل نو د ځان ساتنې له ویرې به یې غټ غټ خندقونه جوړول او په یو نه یو ډول به یې دغه ځناور خندق ته ورپورې وهل او بیا به یې ښکار کول. په فرانسې کې داسې زیاتې خندقونه موندل شوي چې پکښې د زرګونو فیلانو هډوکي په یو ځای کې شتون لري. د لیسکا په یوې سمڅې کې د ښکار د دغه ډول په منظمه توګه انځورګري هم شوې ده. په دغه منظره کې ځیني آسونه په خندق کې ټوپونه وهي. خو کله چې انځور ته ځیر شو نو داسې به وانګیرئ، چې دغه عاجز او ناتوانه آسونه په رېښتیا هم دغو خندقونو کې ټوپونه وهي. د سهیلي هسپانیې او افریقا ځینو انسانانو تیر او کمان هم جوړ کړي ول.

د دغې دورې انسانان په وړوکو وړوکو قبیلو باندې وېشل شوي ول. په اصل کې هرې قبیلې د یوې کورنۍ حیثیت درلود، چې ټولنیز ژوند یې پر مخ وړئ. تولیدي ځواکونه/تولیدي اوزار به د ټولو ګډه ملکیت ګڼل کېدل او له ښکار څخه به چې هر څه ترلاسه کېدل نو په ګډه به یې وېشل او خوړل. د

قبیلې د هر شخص ساتنه په ټولو فرض ګڼل کېدل. د قبیلې د ننه به کارونه وېشل کېدل. سړیو به ښکار کول، ښځو به ځنګلي بوټي موندل - دغه شیان به د خواړو په توګه کارول کېدل-. د خواړو د موندلو سربېره د ښځو بل کار د ماشومانو ساتنه، پالنه، کالي ګنډل او د سمځې پاکول وو. (اوس هم زموږ د هېواد افغانستان په ټولو کلیوالي او اکثریت ښاري کورنیو کې ښځې دغه کارونه کوي. ژباړن). د نارینه وو یواځینی کار که څه هم ښکار کول ول، خو په دوی کې به ځیني کارونه وېشل شوي ول. ځینو به تېرې تېرې کولې، اوزار به یې ترې جوړول او د ښکار هنر به یې زده کاوه. ځینو به د انځور جوړولو او نقاشي ذوق درلود، نو د دغې له مخې به دوی ته کارونه ورکول کېدل او ورو ورو به دوی په دغه برخه کې پرمختګ کول. یو ساحر به کټ مټ د قبیلې د پیشوا په څېر وو. دغه هنر د ښکار مهم جز ګڼل کېده او له ښکار څخه یې ارزښت کم نه وو. ساحر به د قبیلې روحاني پیشوا هم وو. دوی به د ښکار انځورونه جوړول او ډول ډول دودونه به یې ادا کول. په مقابل کې قبیلې د دوی ساتنه کول او په نس به یې ماړه کړل. دوی به پخپله د ښکاریانو حیثیت درلود. په دوی کې به ځیني پیاوړي ښکاریان هم ول. له ښکار وروسته ښکار وېشل کېده. غوښې به یې ښځو ته ورکړې؛ پوست، هډوکي او همداسې نور شیان به یې په خپلو کې سره ووېشل او له دغو څخه به یې ډول ډول شیان جوړول.

د سمځو دننه چې کوم اسکلیتونه موندل شوي؛ له هغو څخه داسې ثابت کېږي، چې د هغې دورې انسانانو به په خپل مړي خښول. هغه مهال یې چې سبزي جاتو او بوټو ته پام شو، چې له ځمکې څخه راپورته کېږي؛ نو کېدای شي دوی داسې انګېرلي وي، که چېرې مړي ځمکې کې خښ شي نو یوه ورځ به بېرته پورته راشي. دا د فکر کولو خبره ده، چې د ښځو قبرونه به تر ډېره د دوی فرج ته ورته ول. د هغه دور انسانانو به د خپلو مړو پیښې یې له خپلې ملا سره وتړلې، نو داسې ښه یې خپلوله. لکه له مخه چې مو یادونه وکړه. د مړي د سر لاندې به یې د تېږو بالښت کېښوده او ورسره به یې د غوښې ټکړې، هډوکي او د ښکار اوزار کېښودل شول. له هر څه وروسته به یې په قبر کې پټ کړو. دغه قبرونه به په سمځو کې جوړېدل. ځینې قبرونه خو بیخي د نغري څنګ ته جوړ شوي ول. کېدای شي د خلکو به عقیده وه، چې د اور د ګرمۍ له وجې به د مړي یخ جسد ګرم وي او بېرته به را ژوندی شي. په ژوند او حرارت کې چې کومه اړیکه ده، له دغه څخه خو هغوی په پوره توګه اشنا نه ول، خو د دغې اړیکي یو مبهم فکر د دوی په ذهنونو کې شتون درلود. که څه هم هغوی حرارت د ژوند نښان نه ګاڼه، بلکې د ژوند علت به یې باله. نو د دوی مړي هیڅکله هم له ابدي خوب څخه راپورته نشول او د

نغري تودوخې دوی ته هيڅکله هم ژوند ورنه کړ، خو د رسم و رواج دغه زنځيرونه له مودې وروسته له مينځه ولاړل.

د دغې زمانې خلک لا تر اوسه د دين له نامه سره اشنا شوي نه ول. دوی به کوم زبر ځواک يا بهرني ځواکونه نه منل او نه يې هم د کوم خدای، عبادت کوه، خو په سحر/جادو يې پخه عقيده درلودل. په مذهب او سحر کې يواځينې توپير دا وو، چې د مذهب موخه طبيعت ته اطاعت کول دي. برعکس د سحر موخه بيا د طبيعت تسخير وو. په اصل کې، سحر (جادو) د ساينس لومړنی بڼه وه، ځکه خو فريزر سحر د «ولاړ ساينس او د هنر نيمګړتياوو» سره تعبير کړی.

د ژبپوهانو له نظره، د هغې زمانې خلکو خو يوه نه يوه ژبه ضرور کارول، خو تراوسه دا څرګنده نه ده، چې هغه به کومه ژبه وه.آياټولو قبيلو يوه ژبه کارول، يا په بيلابيلو سيمو کې جلا ژبې ويل کېدې. په سمڅو کې چې کوم اثار موندل شوي، نو داسې څرګنديږي چې د هغه زمانې انسان له نقاشي، انځورګري، مجسمه سازي، موسيقي او نڅا سره بلد ول، خو تراوسه هيڅ ډول کوم څرک ونه موندل شو، چې له مخه يې د ژبې په اړه مالوت ورکړو، چې هغوی په کومه ژبه رږغېدل.

په هغې زمانه کې مرګ ډېر زيات وو، په ځانګړي توګه ماشومان به زيات مړه کېدل... خلک له طب او جراحی سره بلد نه ول، خو د اشخاصو داسې جسدونه هم موندل شوي، چې د پښو په هډوکو کي يې د جراحی اثار لېدل کيږي. کېدای شي د دغو ښکاريانو پښې په ښکار کې مات شوې وې او بيا په يوه طريقه بېرته سره نښلول شوې وې.

دا نو د پخوانی زمانې د انسان او د هغې ټولنې يوه پېچلي نقشه وه، خو کله چې موږ د دغې دورې د سمڅو رنګارنګ نقاشی او ښکلي مجسمې وينو، نو د دوی فکر او ځيرکی ته هک پک پاتې کېږو. دا يوه رېښتيا خبره ده، چې د هغې زمانې له خلکو وروسته بيا هيڅ کوم قوم يا انسان هغه ډول نقاشی، مجسمې او انځورونه جوړ نه کړل، ځکه هغو ځانته يو هنر درلود.

د هغې زمانې د هنرمندانو د هنر به تر دې ستر ثبوت څه وي چې د ننني زمانې زياتره هنرمندان هغه نقاشی او انځورونه نقلوي او ځانونه پرې مشهوره کوي.

راځئ، اوس د هغه زمانې د هنرمندانو  هنرونو ته سفر وکړو، چې د لاسکا سمڅې په نګار خانې کې جوړ شوي ول. دغه نګارخانه د لاسکا په سمڅې کې شتون لري. تراوسه چې څومره سمڅې کشف شوي، د لاسکا سمڅې په دوی ټولو کې سترې او نامتو سمڅې دی. د دې په رنګارنګ

انځورونو باندې موسمي بدلونونو ډېره کمه اغېزه کړې. دغه انځورونه لا تر اوسه پخپل اصلي حالت کې پاته دي او په رنګونو کې يې هيڅ ډول بدلونونه ندي راغلي. د لاسکا سمځې د وزير سيند په شمالي سيمه کې د يو ځنګل دننه موجودې دي. هلته هېڅوک هم نه اوسي، خو د سيند هغې غاړې ته د فرانسويانو يو وړوکی کلی شتون لري. د التمير په څېر دغه سمځې هم يو ناڅاپه په ۱۹۴۰ ميلادي کې کشف شوې. د ښوونځی ځينو شاګردانو په ځنګل کې لوبې کولې. د دوی سپی يوې کندې ته وغورځېده چې ډېر ژور وو. کله چې کندې ته ورپسې ښکته شول، نو د سمځې سوړه يې ومونده. دوی سمځې ته ور دننه شول، ښی خواته يې يو لوي دهلېز وليد، چې په بيضوي بڼه جوړ شوی وو. سل متره يې اوږدوالی وو، ۳۳ فوټه يې سور وو او ۲۰ فوټه لوړ وو. د دغه دهلېز چت او ديوالونه له رنګارنګ انځورونو څخه ډک ول. شاګردانو دغه ټوله کيسه له خپل استاد موسيولاول سره شريک کړه، نو هغه برويلي ته خبر واستوه. هغه د سمځې کتنه وکړه. ده دا د ارى ناسي دورې شهکار ونوموه او دغه ډول نړۍ ته د څلور سوه زرو کلونو پخواني اثار په لاس ورغلل.

کله چې د لاسکا سمځې ته دننه کېږي، نو په لومړي سر کې د يوه تور آسپ انځور ترسترګو کېږي. له دې وروسته د يو حيرانونکي حيوان انځور کښل شوی دی، چې دوه ښکرونه يې متوازي راوتلي دي. بيا له دې وروسته ځيني ستر ستر غوايان چې څلور يې لا تر اوسه شتون لري. د دوی لوړوالی له څلور څخه تر شپږو ګزو پوري ول. دوه غوايان چې انځورونه يې په تورو کرښو کښل شوي، د يو بل په مقابل کې ولاړ ول او د دوی په مينځ کې چې کومه خاليګاه وه، نو پنځه سره، تور او ژېړ رنګ سويان پکښې ځای شوي ول. د لومړۍ غوا پر سر يوه سور رنګي آسپ منډې وهلې. د غوايانو په مينځ کې او په پورتنۍ برخه کې يو بل سور آسپ دی چې د غوايانو په مينځ کې بيخي پټ شوی. په ظاهره توګه دا د ځينو حيواناتو انځورونه دي، خو که په ژور فکر وکتل شي نو د دوی اهميت څرګند کېږي. که وکتل شي ځنګلي غوايان خو ډېر ځواکمن وي خو انځور ګر بيخي ولاړ ښودلي دي. دوی نه بريد کولای شي او نه هم حرکت... دوی بالکل چپ ولاړ دي، ځکه هغه رام کړل شوي دي. د دې برعکس آسونه ډېر بوخت ښودل شوي. دوی منډې او خېزونه وهي. که ښي خواته وګورو نو د يو آس له پوزې څخهويني را روانې دي.

د دهليز شاته چت ډېر راښکته شي. هلته موږ له يوې تنګې لارې څخه تېرېږو، نو ښې خواته يو سوی لېدل کېږي او ور سره د نورو حيواناتو انځورونه هم يوځای شوي. کله چې مخته ولاړو نو هلته

په سور رنګ جوړ شوي ښايسته غوايان دي او بيلابيل ډوله آسونه هم ول. کله چې لږ نور هم مخته ولاړو، لاره نوره هم تنګه شي خو له دغه لارې څخه هم هنرمندانو ګټې پورته کړي وې. د منډې په حالت کې د يو غويي انځور چې مخکينې پښې يې د سمڅې و سوړې ته برابر شوي او دوې د شا پښې يې شاته پاتې دي. د چت په مينځ کې د غوايي ټول بدن غړېدلی دی او داسې محسوس کېږي، چې ګوندې دغه په خلا کې ټوپونه وهي. او کله چې نور مخته ولاړ شي، د يوې غټې غوا يو نښان وينې. دغه نښان په مستطيل بڼه کښل شوی دی او په پکښې درې متوازي کرښې کښل شوي دي.

که لږ نور مخته ولاړ شئ، نو دوه دانې د ځنګلي خرو انځورونه به ووينئ. يوه پکښې بچی لري. په پای کې چت نور هم راکښته شي، بيا يو کږلېچ راځي. هلته يو اسپ وينئ، چې په يوې کندې کې د غورځېدو په حال کې دی، چې څلور واړه پښې يې په هوا کې دي.

د سمڅې په بل کونج کې په تېږو کيندل شوي دي. دغه انځور د يو بل له پاسه کښل شوي يا کېندل شوي کېدای شي، دغه ځای د نويو زده کونکو د تجربو ځای وي. دلته په ځينو ځايونو کې يواځې سر، لکۍ، او همداسې نور شيان جوړ شوي، خو په ډېر روان او په مهارت جوړ شوي. داسې مالومېږي چې دغه ټول به يوه کس جوړ کړي وي. په يو بل کونج کې زيات شمېر آسونه او آسپې دي. آسپې اميندواري دي. په يو بام کې پنځه دانې ډېر ښايسته جوړ شوي سويان وينئ، چې له سيند څخه تېرېږي؛ د دغې منظرې لوړوالی ١٦ فوټه دی.

خو د لاسکا ترټولو حيرانوونکې منظره هغه ده، چې د سمڅې تر ټولو پټ، تياره او يو ناشوني ځای کې کښل شوې ده. په اصل کې دا يو ٢٠ فوټه ژور کوهی دی. د کوهي په يوې برخې کې زينې جوړې شوي. کېدای شي کوهي ته د دننه کېدو يواځينۍ لاره دغه وه. په دغه کوهې کې د يو شخص انځور په اقليدسي بڼه کښل شوی دی. د ده سر او خوله د يوه الوتونکي په څېر ده خو لاندې ټول د يو انسان په څېر دی. دواړه لاسونه يې خلاص دي، خو په لاسونو کې يې يواځې څلور ګوتې دي. د ده تناسلي آله شک ولاړه ده او هغه په ځمکې د غورځېدو په حالت کې ليدل کيږي، شايد مړ وي. شاته يې لږ ليري يو لرګی دی. په دغه لرګي باندې يوه الوتونکې نقاشي شوې. د دې الوتونکي سر له شخص سره ښخي ورته والي لري. له دغه شخص څخه په يو واټن کې يوه ځنګلي غوا ليدل کېږي، چې شا يې د ده خوا ته ده او هغه غواړي چې ځان ترې ليري کړي. دا دوه ښکرونه لري. دا د سمڅې يواځينۍ ځنګلي غوا ده.

چا تراوسه د دغې منظرې سمه تشریح نه ده کړي. د ځینو پوهانو له نظره چې دغه انځورنه یادګاري دي. د دې اړیکي د یوې قبیلې له ټولنیز ژوند سره دي. کېدای شي د قبیلې سردار د یوې ځنګلي غوا د ښکار کولو په وخت کې له مینځه تللی وي. نو ځکه به یې په دغه وخت کې دا لاره خپله کړې وي، چې پورته یې یادونه وشوه. انځورګر دا پیښه انځور کړې او د یو تاریخ پوه کار یې آسانه کړی، خو بیا هم له دغه څخه حقیقي مطلب نه شي اخیستل کېدل. دغه راز هم نه څرګندیږي، چې که چېرته د دغه انځور اړیکي له سحر او جادو سره نه وي، نو دغه نقاشي یې ولې په داسې تیاره ځای کې کړې ده.

د لاسکا په سمڅې کې د آسونو د بیلابېلو نسلونو ۵۸ انځورنه کښل شوي دي. دوه ځنګلي خره، غواوې، د سویانو او غوایانو شمیر ډېر کم دی، دوه دانې ځنګلي غوایان دي، شپږ دانې د پیشوګانو نسلونه دي، یو لیوه دی... او یوه دانه الوتونکې مرغۍ.

د پخوانۍ زمانې هره سمڅه په لېدلو ارزي، خو د مهارت له نظره شپږ سمڅې خورا مشهورې دي. لومړی د التمیر سمڅې؛ چې تر ټولو تر مخه کشف شوي او تر ټولو مشهورې هم دي. دویم واګام فونت؛ دریم د دریو ورونو سمڅې، څلورم لاسیل، پنځم لیکومبریل او شپږم لاسکا.

د التمیر په سمڅې کې د حیواناتو ۱۷۰ انځورونه تر اوسه هم روغ پاته دي. د دې سمڅې د یوې خونې په تر ټولو لوی چت کې یې رنګارنګ انځورنو جوړ شوي دي، دغه انځورونه خورا زړه راښکونکي دي. دا منظره په اصل کې ۱۵ ګزه اوږدوالی لري، چې پکښې د یوه سوی او شلو غوایانو د جګړې منظره وړاندې شوې. یواځې دوه آسونه او دوه خوګان، له سوی سره همغږي دي، خو سوی فاتح دی. دغه انځورونه کېندل شوي هم دي او ور سره ډول ډول رنګونه هم یوځای شوي دي. دغه انځورونه په خوار ښه ترتیب سره کښل شوي او یو جلا خوند پکښې پروت دی. که وکتل شي په دغه منظره کې د هر یو حیوان ځانته ځانته کیفیت ښودل شوی. مکس رفیل یې داسې تشریح کوي چې سوی په حقیقت کې د یوې قبیلې استازیتوب کوي، چا چې د خپل سحر په زور نورو حریفانو ته ماتې ورکړې، چې له نورو قبیلو څخه ول. دغه انځورونه په کوم ډول مصنوعي وسیلو یا کوم بل شي باندې ندي جوړ شوي، بلکې د انسانانو په لاس جوړ دي.

د لیکومبریل سمڅې ۹۰۰ فوټه اوږدالي لري او شپږ فوټه سور. په دغه سمڅې کې غالباً درې سوه انځورونه جوړ شوي دي، چې د بیلابېلو حیواناتو دي، خو د انسانانو په څېر د حیواناتو شمیر ډېر

زيات دی. د يو شخص سر خو د ميمت( يو ډول حيوان دی ) په څېر دی. د ده برسېره يو چاغ سړي، يوه ښځه د شا لخوا په غېږ کې راټينگه کړې. په ديوالونو کې انساني څېرې کاږل شوي دي، خو سرونه يې د حيواناتو دي. د دريو ورڼو سمڅې چې د فرانسې د يو خان په ځمکه کې جوړې شوې دي. په ۱۹۱۲ ميلادي کې د خان درې واړه زامن د رخصتيو تېرولو لپاره کور ته راغلي ول. د دوی د کور مخې ته دولپ سيند دی. دغه سيند د کلي په يو واټن کې په يوې سمڅې کې ورک کېږي او بيا په يوه بله سيمه کې له غره څخه بهيږي. دريو واړو ورونو يوه بېړۍ جوړه کړه او د دغه سيند د موندلو پسې ووتل. بېړۍ په سمڅې کې مخ پر وړاندې روانه وه او داسې يو ځای ورسېده چې په اصل کې يو جهيل وو. هلته يې په يوه تېره د اولسمې پېړۍ ځينې اثار ولېدل، ترې داسې ثابت شول چې تر دوی له مخه هم هلته ځيني انسانان اوسېدل. دوی نور هم پرمخ ولاړل نو يوې خواته يو سرنگ وليدل شو، چې سوړه يې د يوې ډبرې په وسيله بنده شوې وه، خو د هغې خوا رڼا ترې ليدل کېدل. دريو واړو ورونو دغه ډبره ماته کړه او ننوتل. په دې سمڅې کې هم د نورو سمڅو په څېر نقاشي او انځورونه ول، خو دې سمڅې ځيني جلا ځانگړتياوې هم لرلې. د بيلگې په توگه: د خاورو جوړې دوه غواوې له ډبرې سره ولاړې وې. د وارو د سيمې يوه مرغۍ هم جوړه شوې وه، خو ترټولو مهم کشف د هغه جادوگر دی چې شاوخواته يې د بې شميرو حيواناتو ټولگه وه. د دغه جادوگر غوږونه د هوسۍ له غوږونو سره ورته والی لرل او ولاړ دي. د ده ږېره ډېره اوږده ده. لاسونه يې له يو بل سره نږدې دي. گوتې يې وړې دي. تناسلي آله/ذکر يې مالومېده، خو مړ وو، بلکې په لکۍ کې پټ شوی. د بروېلي له نظره د دې سحر اړيکې د حيواناتو له ډېر والي سره دی.

د لاسيل د سمڅې ځانگړتياوې د ښځو مجسمې دي، چې په تېرو کېندل شوي دي. د لاسيل په سمڅې کې، چې د ښځو پنځه مجسمې دي، هغه د دغه هنر ترټولو پخوانی يادگار دی. په دغو مجسمو کې د هغه د يو نيم فوټ مجسمه ډېره مشهوره ده، چې اوس د موزيم ښکلا ده. د ښځې دغه مجسمه يې له څلورو خواوو په ډبرو پوښلې. دغه ښځه سر ترپايه بربنډه ده. ملا يې نرۍ ده او ښه ايسي، سينې يې هم ډېرې غټې او را ځوړندې دي. حتی فرض يې هم له ورايه مالوميږي. دې يو ښکر په لاس کې نيولی. په ښکر باندې ځينې کرښې کښل شوي دي. خيټه يې پړسېدلي ده، چې د حامله ښځې گومان پرې کېږي. څېره يې واضح نه ده، جوړه کړي. له دغه څخه داسې څرگنديږي، چې د انځورگر يواځينی موخه دا وه، چې د بدن دغه ياد غړي يې ترخلکو ورسوي، چې اړيکه يې د نسل

زیاتوالي سره ده. د ښځو څلور نورې مجسمې هم شته، چې دغه دول جوړې شوي. په دغو مجسو کې ځای ځای سور رنګ هم کښل شوی. له دې څخه داسې څرګندیږي، چې دوی دغسې سره ول. سور رنګ د دغه دورې د ژوند نښان وو.

د ګارګاس سمڅې له دې وجې مهمې دی، چې هلته د لاسونو خاپونه هم بې شمیره لېدل کېږي. دغه خاپونه ځانته ځانته دي او یوځایي هم. په یوه تېره خو یوځایي یونیم سل خاپونه دي. په دغو کې د یو ماشوم د لاس چاپ هم دی. دغه خاپونه هم په سره رنګ هم دي او هم په تور رنګ. تر ټولو د حیرانتیا خبره دا ده، چې په زیاتو چاپونو کې څلور ګوتې ترسترګو کېږي، خو غټه ګوته ورکه ده. په دغه چاپونو کې د کیڼ لاس خاپونه بې شمیره دي او دا یو طبیعي خبره ده، ځکه په ښیو لاسونو به یې رنګونو سره ګڼه ول. د پخوانی زمانې د لاس د خاپونو چې څومره اهمیت او ځانګړتیاوې دي، دا به راتلونکو درسونو کې واضح کړو. دلته به یواځې دومره ووایو، چې د پخوانې زمانی د تکامل لومړنی بڼه دا د لاس خاپونه دي.په دېسمڅې کې د ښځې جنسي اعضاء په یو بل ډول کښل شوي دي او یوه بته/مرغ آبي یې په اوبو کې د لامبو وهلو په وخت کې انځور کړې.

په لومړیو کې داسې فکر کېده، چې د پخوانیو زمانو هنرمندانو به انځورونه او مجسمې د سمڅې په ژور او پټ ځایونو کې جوړول او کښل. د التمیرا او له نورو سمڅو څخه داسې پایله څرګندیږي، خو په سهیلې او ختیځې هسپانیې کې چې څومره کشفیات شوي، له دغه څخه دا څرګندیږي، چې دلته یې شمیره انځورونه په تېږو کیندل شوي. کېدای شي د دغه دورې هنرمندانو زیاتره انځورونه د سمڅو دننه هم جوړ کړي وي او په تیږو هم. کوم انځورونه چې په هوارې ځمکې جوړ شوي ول؛ نو هغه د لمر، باد او باران سره سره له مینځه تللي دي او کوم چې د سمڅې دننه ول، نو هغه د دغه ډول آفتونو څخه ژغورل شوي. داسې هم انګېرل کیږي، کومې قبیلې چې د سمڅو دننه اوسېدلې، هغوی د سمڅو دننه انځورونه جوړ کړي. په سهیلي هسپانیې او افریقا کې چې د انسانانو نور نسلونه اوسېدل او غالباً په ګرم چاپیریال کې ول؛ نو هغو به هوارو ځمکو او تېږو باندې انځورونه کارل.

په دغو سیمو کې چې کومو هنرمندانو انځورونه جوړ کړي، نو دوی ته به د مصنوعي روښنایئ/بتی/څراغ اړتیا پېښه شوې نه وي؟ ځکه د سمڅو دننه خو تیاره زیاته وه، حتی د ورځې به هم یو بل نه پېژندل کېدل، نو اړ ول چې د مصنوعي رڼا سره انځورونه جوړ کړي. په دغه زمانه کې د

روښنايي اوزار ډيوې او شمعې وې. په سمڅو کې بې شميره داسې شيان موندل شوي چې د ډيوې او شمع کار ترې اخيستل شوی.

د پخوانی زمانې هنرمندانو درې ډوله بنسټيز رنګونه کارول. سور، ژېړ او تور... د شنه او خړ رنګ اثار هيڅ ځای هم موندل شوي ندي. کېداي شي دوی دغه ډول رنګونه نه شوجوړولی. ځکه دغه رنګونه ژر له منځه ځي، نو شونې ده، د زرګونه کلونو په ترڅ کې دغه رنګونه له منځه تللي وي. دغه رنګونه به يې د معدني عناصرو جوړول، نه له نباتاتو څخه. د تور رنګ لپاره خو د لرګي او زغال ايرې وې، خو سور او ژېړ رنګونه به يې له ميګنيز او د اوسپنې اکسايډ څخه جوړول. دغه معدني عنصرونه به پخپله سمڅو او نږدې سيمو کې ترلاسه کېدل. په لومړيو کې به د قلم پر ځای له ګوتو څخه کار اخېستل کېده، بيا د ونو له نري نري ښاخونو يا د الوتونکو له بڼکو څخه کار اخېستل کېده. دغه رنګونه به يې د ډبرو په سوريو کې کېښودل. نو په سمڅو کې د رنګونو کڅوړي او برسونه زيات لېدل شوي. د تېږو په تېزو څوکو به يې کيندل کول.

دغه انځورونه او نقاشيانې په يو کال يا يوې پيړۍ کې جوړې شوې ندي، بلکې د انسانانو د زرګونو کلونو ثمره ده، د ښکاريانو لښکرونه به راتلل، د څو مياشتو يا څو کلونو لپاره به په يوه ځای کې اوسېدل. د خپلو اړتياوو له مخې به يې په سمڅو کې انځورونه او نقاشيانې جوړولې او بيا به د ښکار لپاره نورو سيمو ته ولاړل. له وخته سره به هلته يوه بله قبيله راغله، نو دغه سمڅې به يې يو ځل بيا آبادې کړې او د خپل اړتياوو له مخې به يې انځورونه جوړول. نو په ځينو سمڅو کې د انځورونو رنګونه له يو بل سره داسې يو ځای شوي، چې جلا کول يې ډېر سخت کار دی. له دغې وجې ډېري انځورونه که څه هم زيانمن شوي، خو د اثارو پوهانو ته دا اوس ډېر اسانه شوي، چې د بيلابېلو وختونو د انځورونو دورې او وخت څرګندوي. د بيلګې په توګه: برويلي او اوپرميئر يواځې د ديګام فونت له سمڅې څخه د اوو بيلابېلو دورو څرک لګولی. په ځينو سمڅو کې خو د څوارلسو دورو اثار شتون لري، خو تر اوسه دا ثابت شوې نه ده، چې په دغو دورو کې د يوې پېړۍ يا زرو کلونو توپير دی.

ځيني وختونه داسې هم شوي، چې يوې قبيلې څه نا څه انځورونه جوړ کړي او بيا تللي دي او کله چې بله قبيله راغلي نو هغه انځورونه يې همغسي پرېښي، خو له وخت سره يې د خپلو اړتياوو له مخې پکښې انځورونه ورزيات کړي.

که څه هم د پخوانو زمانو دغه هنرونو د تکامل بې شمیره پړاوونه ترسره کړي، د وخت او قبیلې مېشته کېدو سره په دغو انځورونو او نقاشیانو کې ستر بدلونونه راغلي، خو د دوی په هنر کې هیڅ ډول بدلون ندی راغلی او نه یې هم بنسټیز کیفیت بدل شوی. په هره دوره کې، د دغه هنر تمرکز په ښکاري حیواناتو وو، هغه حیوانات چې انسانانو به د خپل ژوند دوام لپاره ترې کار اخیست.په دېټولې دورې کې، چې د حیواناتو کومې څېرې جوړې شوي دي، هغه په حقیقت کې هغه ډول ول. بلکل حقیقي او رېښتین انځورونه دي. دا نو یوه بله خبره ده، چې په لومړیو کې د تجربې د نه درلودلو له امله ځیني انځورونو کې ډیرې نیمگړتیاوي ترسترگو کیږي.

د دغو انځورونو د وخت مالومولو لپاره زیات گومانونه شوي، چې په دوی کې تر ټولو پخواني هغه دي، چې لږ تر لږه څلوېښت زره کاله پرې تېر شوي دي.

په پخوانیو زمانو کې د انځورگرۍ، نقاشي او مجسمې جوړونې پیل څنگه وشو؟ انسان تر ټولو لومړی ولې او د څه لپاره نقاشۍ ته مخه کړه؟ هغه کوم لاملونه ول، چې دوی یې دغه کار ته وهڅول.آیادوی له ازله هنرمندان ول، یا بهرنیو حالاتو پر دوی اغېز وکړ.آیاکومې بې ضمیرې او غیر شعوري جذبې دوی وپارول، چې انځورونه جوړ کړي یا د دغه هنر پنځونه مادي او تاریخي عاملونه دي؟ ولې باید د دغو پوښتنو ځوابونه له دغو هنرمندانو څخه ونه پوښتل شي؟

د سمڅو د نقاشۍ او انځورگرۍ په اړه د ژورې مطالعه کولو څخه له مخه موږ باید دې خبرې ته په خپلو ماغزو کې ځای ورکړو، چې  د انځورجوړونې د هنر مینځته راوړلو پر مهال انسان هېڅکله هم دغه فکر نه درلود، چې دوی یو نوی هنر مینځته راوړي. د کلتور په یو بحث کې ټي ـ ایس ـ ایلیټ لیکي چې کلتور ځیني وختونه هغه خلک مینځته راوړي، چې دوی هیڅ ډول فکر هم پرې نه کوي یعنې خبر هم نه وي چې دوی څه کوي او کلتور مینځته ته راوړي. د پخوانۍ زمانې د انسانانو هم همدغسي حالت وو. هغوي خو نه د هنر له اصطلاح سره آشنا ول او نه هم د هنر لپاره یې هنرونه مینځته راوړل. (د ساینسي کشفیاتو برخه کې هم دا خبره ریښتینې ده. ژباړن)

راځئ! اوس به د یوې سمڅې لیدنه وکړو. په دغه سمڅې کې به تاسو  په تېرو کښل شوې ځینې کرښې ووینئ. دغه کرښې انسانانو ندي کښلي، بلکې د پخوانیو دورو سترو یږو په خپلو نکانو کښلي دي. یږې د پخواني دورې د انسانانو هم دوره وې او د انسانانو په څېر سمڅو کې اوسېدلې. د یږې پنجې ډېرې ځواکمنې وې او غاښونه یې هم ډېر تېره ول، کله چې په یې نوکان په تېږو مخښل نو

کرښې به وویستل شول. اوس د دغو کرښو پرتله له هغو کرښو سره وکړئ، چې د التمیرا په سمڅې کې انسانانو په دیوالونو کې کښلي ول. نو تاسو به ووینئ، په دواړو کې ډېر ورته والي شتون لري. ځکه خو د پخوانیو اثارو د پوهانو له نظره؛ پخوانیو انسانانو چې کله د یږو دغه کرښې ولیدلې، نو دوی هم وکښلې.

خو انسان ولې له یږې څخه تقلید وکړ؟

ځکه د انسانانو او یږې ترمینځ ډېر(مشترکات) وموندل شول. یږې هم د انسانانو په څېر سمڅو کې اوسېدلې. د دوی په بدن وېښتان ول. لکه څنګه چې انسانان د خپلو مخکینې پښو څخه کار اخلي هغه ډول یږې هم دغه کار ترسره کاوه. یږې هم د انسانانو په څېر په خپلو پښو ولاړې وي. د انسانانو په څېر ونو ته جګېږي، میوې را شکوي او د حیواناتو ښکار کوي، خو په زیاتو کړنو کې له انسانانو څخه توپیر لري. د بیلګې په توګه: هغه له انسانانو څخه ډېر زیات ځواکمن دي. ویل کېږي چې د یږو شهوت ډېر زیات وي او جنسي قوت یې ډېر ځواکمن وي، کېدای شي پخوانیو انسانانو چې کله د یږو جسماني ځواک ولېدل چې د هغوي په لاسونو او نوکانو کې دي او داسې فکر یې وکړ، که چېرته موږ هم په خپلو نوکانو په تېږو کرښې وکښو نو زموږ په لاسونو کې به هم هغه ډول ځواک راشي، چې په یږو کې شته دي نو ځکه خو برومیئر او برمیسر وایي:

«دغه ډول نیمګړې کرښې کېدای شي د بهرنیو اغېزو په پایله کې ترسره شوي وي. د دغه لپاره موږ باید له یږو څخه مننې وکړو، چې د لویدیځې اروپا په سمڅو کې اوسېدل، خو له دې دا خبره ثابت کېږي چې په انسانانو کې د شعور سربیره، هنر هم شتون درلود. د یږو په وسیله کښل شویو کرښو څخه انسانانو زیاتې تجربې تر لاسه کړې، که دغه ته د هنر نوم ورکړو، که یې ورنه کړو نو دا خبره ثابته ده، چې که پخوانیو انسانانو دغه ډول هڅې ترسره کړې نه وې؛ نو نن به نه هنر وو او نه هم هنرمند».

د کیندلو په برخه کې، انسانانو هر څه له یږو څخه تقلید کړل، چې په سمڅو کې کیندل شوي وو. په دغو کرښو کې یو ډول زړه راښکوونکی حرکت شتون لري، خو انسان د یږو له دغه ډول تقلید څخه ډېر ژر آزاد شول. دوی کې شعور پیدا شو او له دې وروسته یې د حیواناتو او ښځو انځورونه جوړول. دوی د نوکانو استعمال پرېښود، بیا یې د ونو له ښاخونو او لرګیو څخه دغه ډول انځورونه جوړول.

د پروفیسور جوهانزمار نګر له نظره، د رنګارنګ انځورونو د پیل دوره هم همدغه وه، چې د انځورنو د رسامۍ دوره هم ده. د پروفیسور له نظره تر ټولو پخواني انځورونه هغه دي، چې د واورو په زمانه کې انسانانو د خپلو لاسونو خاپونه کښلي ول. د لاسونو دغه خاپونه د پیل له دورې سره اړیکې لري. انسان به خپل لوند لاس په یوه تېره کېښوده. ګوتي به یې خلاصي کړي او بیا به یې رنګونه په اوبو کې ګډ کړل او خپل لاس به یې پکښې وردننه کړو. بیا به یې لاس په دیوال کېښود او خاپ به یې جوړ شو. دغسې بادامي، ژېړ، تور، سره او سپین خاپونه په بیلابیلو سمځو کې ترلاسه شوي. ورو - ورو دغه لاسونه ورک شي او پر ځای یې رنګین موجونه جوړ شي. دغه موجونه به هله جوړ شول، کله چې به ګوتي په رنګونو کې وردننه کېدل. په لومړیو کې، چې به په خاورو کې بې رنګه کرښې کښل کېدل، د هغه په مقابل کې دغه رنګارنګ کرښو زړونه د ځان وخواته کشول او د سمځې په تیاره کې د سرو او ژېړو رنګونو روښانتیا د انسانانو په زړونو کې خوشحالۍ پیدا کولې. په دغه کرښو کې، د حیواناتو لومړۍ څېرې هم ولېدل شوې. په لومړیو کې خو د حیواناتو دغه انځورونه یواځې نقشې دي، چې له دوو یا دریو متوازي کرښو څخه پکښې کار اخیستل شوی. بیا د یوې کرښې وخت شو. په نقاشیانو کې، د رنګ ډکولو دوره ډېره وروسته راغله. په لومړیو کې د حیواناتو نقشې جوړې شوي وي. د دوی غړي ځانته ځانته او قوي به ول او د بدن هغه برخې جوړېدل، چې له مخه ښکاره کېږي، خو مودو وروسته په نقشو کې آساني راشي او داسې ښکاري، چې د حرکت په حال کې دي.

د پخوانۍ زمانې دغه هنر ولې د انسان د لاسونو خاپونو څخه پیل شو؛ د حیواناتو له انځورونو څخه ولې نه؟ د دغې خبرې تر ټولو ښه تشریح میک رفیل کوي، هغه وایی:

«په اصل کې چې کوم شی انسان له نورو حیواناتو څخه ستر جوړوي، هغه د ده لاسونه دي. دا نو داسې مانا نه ورکوي، چې د انسان په تکامل کې ماغزو او ژبې هیڅ ډول ونډه نه درلودل، خو د کوم غړي له مخې چې هغه د نورو حیواناتو څخه جلا دی، چې د انسان ترټولو ښه اوزار دی او د دې له مخې د طبیعت په قوانینو کې لاسوهنې وکړي؛ هغه د انسان لاس دی».

د پوهانو ترمینځ نن هم په دې خبرې ډېر زیات اختلافات شتون لري، چې فکر او ژبه یواځې د انسانانو ځانګړتیا ده، که نور حیوانات هم د خپل ژوند مطابق په خپلې طریقې فکر او غږېږي. ځیني پوهان وایي، چې ماغزه او ژبه یواځې د انسانانو اجاره ده. ځیني وایي نه، د نورو حیواناتو سره هم ژبه او ماغزه شته او د ثبوت لپاره دغه دلیلونه وړاندې کوي، چې کوم شي ته چې موږ ماغزه وایو هغه د

حيواناتو سره هم وي يعنې هغوی هم ترې برخمن دي. نو بيا څه وجه ده، چې موږ وايو دوی د فکر له ځواک څخه خالي دي. دغه ډول هغه اعضاوې چې هم د خبرو کولو لپاره کارول کېږي، يعني ژبه، غاښونه، مخ او سر، په زياترو حيواناتو کې شتون لري. نو ځکه خو ځيني حيوانات شته، چې له خولې څخه ډول - ډول چيغې باسي. نو يواځې د دې له مخې، چې موږ د دغو غږونو په ماناوو نه پوهېږو، دوی ته د بې ژبې کلمه ليکلی نه شواو دا حق هم نلرو، خو په دې خبرې ټول پوهان سره موافق دي چې د بدن کوم عضو ته چې موږ لاس وايو، هغه يواځې انسانانو ته په برخه شوی او د لاس څخه چې کوم کار انسانان تر سره کوي، حيوانات يې نه شي کولای.

په حقيقت کې دغه لاسونه دي، چې له انسان څخه يې په سيي مانا انسان جوړ کړئ. د لاسونو تر ټولو ستره ځانګړتيا دا ده، چې انسان پنځونه پيل کړل. دوی د لاسونو په مرستې نوي شيان جوړ کړل. د نړۍ هيڅ کوم بل حيوان د طبيعت په شيانو کې بدلونونه رانه وستل، بلکې اړ ول، چې د طبيعت اطاعت وکړي، ځکه دوی نه کوم شی جوړولی شو او نه دا ځواک دوی درلود. د دې برعکس انسان يو پنځونکی حيوان دی. انسان وتوانيد، د تېرو څنډې سره وجنګوي، رڼا او اور ترې پيدا کړي، توليدي ځواکونه/توليدي اوزار يې جوړ کړل، کالي يې جوړ کړل، ختين لوښي يې جوړ کړل، کرونډې يې جوړې کړې، لوړ لوړ اپارتمانونه يې جوړ کړل، د ليکلو هنر يې مينځته راوړ، کارخانې او فابريکې يې جوړې کړې. دغه ټول تخليقونه او پنځونې د لاسونو په مرستې ترسره شوي. زرګونه کلونه پخوا انسان د ماغزو په کارولو نه پوهېده، ځکه د زياتو شيانو په اړه نه پوهېدل، خو د لاسونو معجزې يې ليدلې او درک کولای يې شوې، د دوی د ژوند ټوله شتمني دغه لاسونه ول. (خپله لاسه، ګله لاسه! ژباړن.)

د دوی له نظره، لاس د جسماني ځواک نښان دی ځکه ورته خورا ارزښت قايل ول. تر ټولو ښه خبره خو دا ده، چې دوی به د لاسونو په مټ ښکار کاوه. نو به يې داسې ويل که د کوم ترکيب له مخې د لاسونو په شمير کې زياتوالي راشي، نو زيات ښکار به لاس راشي. دوی به د لاسونو خاپونه غيري ژوندي انځورونه نه ګڼل، ځکه دوی د ژوندي او غيري ژوندي موجوداتو په اړه خبر نه ول، يانې لا تر اوسه ورسره بلد شوي نه ول.

هيڅکله يو هنر په يوه ورځ مينځته نه راځي، بلکې د زده کولو لپاره زيات کار او زيار ته اړتيا وي. نن خو د هنر زده کولو لپاره د زده کړو مرکزونه جوړ شوي، چې پکښې استادان خپلو زدکونکو ته نوي هنرونه ور زده کوي، خوآياله نن څخه څلوېښت زره کاله مخکې هم د هنر ښودلو لپاره استادانو

شتون درلود، یا د زده کړو مرکزونه ول؟ ویل کېږي، چې د استاد او زده کونکي اړیکي هغه وخت هم شتون درلود او د قبیلې ځوانانو ته په منظمه توګه دغه هنرونه وربښودل کېدل. د بیلګې په توګه: د لیموییل په سمڅې کې په یوځای د تېرو ۱۳۷ وړوکې تختې لیدل شوي، چې پکښې د نقاشۍ تمرینونه شته. ځینې پکښې زیاتې زړه راښکونکي نقشې دي او ځینې بیا زیاتې نیمګړتیاوې لري. ځای پر ځای د استادانو د سمون کرښې هم لیدل کېږي. دغه ډول د پاریالو (هسپانیې) په سمڅې کې د ډېرو ۱۴۳۰ تختې لیدل شوي، چې انځورونه پرې کښل شوي دي. د ډېرې داسې یوه ټوټه هم لاس ته راغلې ده، چې له انځورونه څخه ډکه ده. کله چې دغه زده کونکو هنر په سمه مانا زده کړ، نو پخپله به استادان شول. د سحر دود به دغو هنرمندانو ترسره کوې، په لومړیو کې د دغو ساحرانو او هنرمندانو د قبیلې له نورو وګړو سره هیڅ ډول توپیر نه کېده، خو کله چې د هنر غوښتنې زیاتې شوې، نو دغه ساحران له ښکار کولو څخه لیري کړل شول. دوی به د خپل سحر او ښکار له مخې د قبیلې له وګړو سره په ښکار کولو کې مرسته کول او په مقابل کې به قبیلې دوی ته خواړه ورکول.

د سمڅو نقاشیاني او انځورونه پخپله خبرې کوي، چې موږ د بې هنرو خلکو په لاسونو نه یو جوړ شوي، بلکې زیارکښه هنرمندانو جوړ کړي یو. دغه هنرمندان په هر څه پوهېدل چې د حملې کولو په وخت کې د حیواناتو داخلي او بهرني کیفیت څه ډول وي او کله چې حیوان په ځمکه ناست وي او آرام کوي، نو بیا یې کیفیت څنګه وي.

د سمڅې په انځورونو کې، چې د نیزو یا نورو اوزارونو کومې کرښې لېدل کېږي، کېدای شي له دې یې موخه دا وه، چې نویو ښکاریانو ته د ښکار کولو چارې وښیي. د پخواني زمانې انسانان اړ ول، چې یوازې د ژوند تېرولو لپاره ګوزاره وکړي. ځکه نه خو له دوی سره دومره اوزار ول او نه بې شمیره حیوانات. دوی نه شوکولای، چې هم اوزار ضایع کړي او نه هم ښکار... که وکتل شي، ځیني ځنګلي ځناور ډېر خطرناکه ول او ښکار باید له نږدې څخه شوی وو، ځکه دغه وېره به وه، چې د وار له خطا سره کوم ځناور پر دوی حمله ونه کړي. نو د پوهانو غوښتنې وې، چې د حیواناتو کټ مټ هغسې مجسمې او انځورونه جوړ کړل شي او نویو ښکاریانو ته به اجازه ورکول کېدل، تر څو د دوی نښان پوخ شي. کله چې به دوی نښان پوخ کړ، نو بیا به دوی ته اجازه ورکول کېدل، ترڅو ښکار کولو کې ګډون وکړي. نن چې څومره پوځي تمرینونه کېږي، موخې یې همدغه دي. په پخواني وختونو کې، د سترو حیواناتو ښکار د نن ورځې مخامخ جګړې په څېر ګواښوونکی وو.

د هرې دورې هنر د هغه دورې استازيتوب کوي او په مټ يې ټولنه څېړل کېږي. دا هنر دی، چې د  خلکو نظريات، غوښتنې، هيلې او همداسې نور تر خلکو رسوي. نو د پخوانۍ زمانې د هنر محور او موخه د مړو پالنه وه، څکه د مصر فرعونيانو په ډېرې ځيرکتيا، خلک د حيات بعد الموت/له مرگ وروسته ژوند په جال کې راگير کړي ول. دوی به پخپله خوشحاله او د عيش او معيشت ژوند تېراوه، خو عامو وگړو ته به يې د بلې دنيا کيسې په دې شرط کولې، چې عام وگړي دې د فرعون او د هغه د ملگرو په پټه خوله خدمتونه وکړي. دغه ډول د يونان او هندوستان د هنرونو بنسټيزه موخه عشق پالنه (صنم پرستي) ده او د منځنيو پېړيو د لويديځ هنرونو يواځينۍ موخه دا ده، چې د عيسويت دين تر خلکو ورسوي.

د هنر او ټولنې ترمينځ د اړيکو يواځينۍ موخه دا نه ده، بلکې د هنر له مخې د هغې ټولنې او هغه مهال هر څه څرگندوي. د بيلگې په توگه: د کرکيلې سره تر بلدتيا وروسته، د هر هيواد هنر، د هغه ځای د اقليديسي اصولو پابند شو، نو څکه د مصر او بابل ټولې مجسمې، انځورونه او کاڼي په مثلث بڼه جوړ شوي دي. د دې برعکس د هندوستانيانو او  يونانيانو چې انساني جسم خوښېده، نو د دوی ټول هنر په دغه برخه کې راڅرخېدل. يو مستقيم خط دی، چې د ملا د تير په څېر د انځور ټولې سختۍ په ځان تېروي او لکه څنگه چې په انساني بدن کې تناسب شتون لري، ياني د ملا د تير يو خواته يو لاس وي او بل خواته بل لاس وي يا دوه سترگې او دوه پښې. دغه ډول د دغو هيوادونو په انځورونو کې دا تناسب شتون لري.

خو د پخوانۍ زمانې د انسانانو په اړه زموږ مالومات ډېر نيمگړي او کم دي، نو څکه موږ د هغوی د هنرنو ريښې په آسانۍ موندلای نه شو. دغه وجه ده، چې د لرغونپوهانو ترمينځ په سمڅو کې د انځورونو، نقاشيانو او مجسمو په اړه ډيري اختلافات شتون لري.

د ځينو پوهانو له نظره دغه شيان يې يواځې د وخت تېرولو لپاره جوړول. په بارانونو، واورو او شديدو ساړو کې به خلک له سمڅو څخه نه وتل، نو د وخت تېرلو لپاره به يې دغه انځورونه کښل.

ځينو به ويل، چې دغه انځورونه يواځې د ذوق او جمال د تسکين لپاره جوړېدل. د دغو انځورونو يواځينې موخه دا وه، چې سمڅې پرې ښايسته ښکاره شي يا سمڅو ته ښکلا وروبښي، خو د دغو دليلونو په وړاندې، ځيني رېښتيني ثبوتونه هم ترلاسه شوي.

لومړی دا چې پخوانیو انسانانو دغه انځورونه د خپلو اوسیدو په سمڅو کې جوړ کړي ندي. د دې ثبوت دا دی، چې په سمڅو کې د انځور جوړولو په وخت کې هیڅ ډول کوم اثار ترلاسه شوي نه دي. هلته خو نه د حیواناتو هډوکي تر سترګو شوي او نه هم د سکرو او لرګیو ایرې. د دې برعکس هنرمندانو ځیني وختونه نوې رغول شوې سمڅې د خپل هنر لپاره ټاکلې. په دغو سمڅو کې به رڼا بېخي نه وه او تپه تیاره به وه. هلته د رسېدلو لپاره دوی خورا کړاوونه په ځان تېرول او د انځور جوړولو لپاره به په ځمکې وغځېدل او کار به یې پیل کړو. نو واضح خبره ده چې د ذوق او د زړه د تسکین لپاره څوک دومره ستونزې او کړاوونه په ځان نه تېروي.

بله دا چې بې شمیره انځورونه د سمڅو په یو ځانګړي ځای کې د یو بل له پاسه جوړېدل. که وکتل شي د څنګ ټولې ډبرې بېخي خالي پاتې دي. له دې څخه داسې پایله اخېستل کېږي، چې په سحر باندې عقیده لرونکو انسانانو ته دغه ځانګړیو ځایونو ډېر اهمیت درلود. دغه ډېر وېرونکي ځایونه ول. د یو له پاسه د بل انځور جوړولو روآیت کېدای شي، داسې مینځته راغلي وي، چې په لومړیو کې یوې قبیلې د خپل سحر لپاره د سمڅې یوه برخه ټاکلې وي او هلته یې د ښکاري حیواناتو انځورونه جوړ کړي وي او د نسل زیاتوالي له امله به د سحر له برکته بریالي شوي وي، یعني د حیواناتو نسلونه به زیات شوي ول او د ښکار لپاره به بې شمیره حیوانات ول. د دغې قبیلې له تلو وروسته بله قبیله به راغلې وي. نو کله چې دوی هلته ورسېدل، نو له دغه علم سره اشنا شول. که د ښکلا او سینګار خبره وي، نو دوی به د انځور له پاسه بل انځور نه جوړاوه، ځکه د لومړي انځور ښکلا به له مینځه تلل. د دغې یواځینې موخه دا وه، چې د سحر په برکت دوی د نسلونو په زیاتوالي یا هلاکت کې بریالي شول، لکه څنګه چې له دوی څخه له مخه د هغې بلې قبیلې موخه هم دغه وه.

دریم، دا چې په بې شمیره دیوالونو کې د انځورونو په سر بې شمیره اقلیدسي کرښې ایستل شوي دي. دغو کرښو د انځورونو ټولې ښکلاګاني له مینځه وړي دي. په اصل کې د سحر سربېره د دغو کرښو هیڅ کومه بله مانا نه وه. دغه ډول بې شمیره انځورونه دغه ډول دي، چې پکښې د تیرانو، نیزو او همداسې نورو کرښې کښل شوي دي، له مخه یې دا څرګندېږي، چې هنرمند د ښکار کولو کړنلارې پکښې کښلي دي. په بې شمیره ډبرو کې خو د نیزو او تیرانو کرښې شتون لري، نو له دې څخه داسې مالومېږي چې د انځورونو له بشپړېدو وروسته د کوم ځانګړي دود یانې سحر وروسته د ښکار د هنر زده کولو لپاره کرښې وویستل شول.

د ښکار په اوزارو هم د حيواناتو انځورونه ول، ځکه د هغې دورې د انسانانو عقيده وه چې په هډوکو، د فيل پر غاښونو او د تېږو پر اوزارو د ښکاري حيواناتو انځورونه جوړول؛ په حقيقت کې حيوان کابو کوي. په هړپا، موهن جدړو، مصر، عراق، ايران او همداسې نورو هيوادونو کې چې د پخوانۍ زمانې څومره لوښي ترلاسه شوي، د دغو نقاشيانو هم مستقيمې اړيکي له سحر سره دي. دغه لوښي يې د ښکلا يا سينګار لپاره نه ول جوړ کړي او نه هم د ورځې په کارونو کې يې کارول خو د دغې خبرې موخه دا نه ده، چې د واورې د دورې انسان له ذوق او جمال څخه خالي ول. د دوی د هنر تر ټولو ستره پانګه هغه انځورونه دي، چې دوی جوړ کړي ول. هغوی به دغه انځورونه په ډېره مينه او زيار اماده کول. نوي زده کونکو ته به په ځانګړي توګه درسونه ورکول کېدل. دوی به کلونه - کلونه زيار ايسته، نو به بيا دوی ته اجازه ورکول کېدل، چې په سترو ځايونه کې انځورونه جوړ کړي. کومو انځورونو چې به نيمګړتياوې درلودې، هغه به يې رد کړې.

ځيني انځورونه داسې شتون لري، چې حيثيت يې يا خو تاريخي دی يا يادګاري. کېدای شي، د دغو انځورونو اړيکې د قبيلې له يوې ځانګړې پيښې سره وي، يا کومه داسې پيښه راغلي وي، چې له مخې يې د قبيلې په ټولو وګړو اغېزې کړي وي. د بيلګې په توګه: د لاسکا په سمڅې کې د مرګ منظره يا د يرږې او انسان جګړه يا د التميرا انځورونه.

اوس داسې يوه پوښتنه رامينځته کېږي، چې د واوري د دورې انسانانو دغه انځورونه ولې جوړ کړل؟ هر ډول انځورونه يې ولي جوړول؟ د پروفيسور هينز له نظره، چې د پخوانۍ زمانې انسانانو يواځې د جامدو حقيقتونو په اړه فکر کولای شوای. دوی چې به څه ولېدل نو کټ مټ به يې هغه ډول انځور را نقل کړو، خو لا تر اوسه د دوی افکارو دومره پرمختګ نه وو کړی، چې دغه حقيقتونو وڅېړي. دوی به ونې لېدلی شول، خو د ځنګل په اړه يې هيڅ ډول فکر هم نه درلود؛ پروفيسور هيوګو، بروميئر او برويلي دغه نظريې ردوي. دوی د تائيد لپاره د اشخاصو هغه انځورونه وړاندي کوي، چې د حيواناتو استازيتوب کوي؛ کوم چې د دوی هممهاله دي او د ژوند يوه برخه يې وه. دوی وايي، چې د پخوانيو زمانو انسانانو کټ - مټ انځورونه هم جوړولای شول او کاپي انځورونه هم. دوی د حيواناتو کاپي انځورونه ځکه جوړ کړل، چې پر دوی د ښکار د اوزارو تمرين وکړي يا يې د دغه لپاره جوړول، چې يو نوي او حقيقي حيوان د خپل سحر په برکت له عدم څخه وجود کې راوړي، يا دوی غوښتل چې له مينځه يې يوسي. د پخواني زمانې د انسانانو مثال د نن ورځي هندوانو په څېر دی، کوم چې يوه

هنرمند یې د یو حیوان د انځور جوړولو په وخت کې ولیده او شکایت یې ترې وکړ، چې تا زموږ ډېري حیوانان پخپلو کتابونو کې تړلي.

د واورې د دورې انسان په دریو ډولو سحر باندي عقیده درلودل.

۱. د پنځوني سحر

۲. د ورانی سحر

۳. د رضایت سحر

په دوی کې تر ټولو پخوانی د پنځوني سحر دی. د دغې خبرې ثبوت دا دی، چې د واورې د دورې تر ټولو پخواني انځورونه هغه دي، چې د پنځوني له سحر سره یې اړیکې درلودې. دا د ښځو مجسمې دي، دغه مجسمې په ختیځ کې له بایکال جهیل څخه نیولې، تر شمالي هسپانیې پوري رسېږي. د دغو مجسمو چې شمیر یې له ۱۳۰ څخه لوړېږي، په هسپانیې، فرانسې، جرمني، ایټالیې، اسټریا، روسیې او چیکوسلواکیا کې ترلاسه شوي. د دې مجسمو جوړښت، د قبیلو د هنري روآیتو او جغرافیې حالاتو له نظر، څه نا څه توپیرونه شتون لري، خو د نوعیت او ماهیت له نظره یو ډول دي. د بیلګې په توګه: د تېرو دغه مجسمې ټولې د ښځو دي او د هنرمندانو یواځینی تمرکز د ښځو په جنسي اعضاوو دی. دغه اعضاوې یې په ډېرې مبالغې سره کښلي دي، خو نورې اعضاوې لکه سترګې، پوزه او خوله یې مازي رسم کړي دي. دغه مجسمې بلکل بربنډې دي، خو په ځینو مجسمو کې ښځو ګانې اچولي دي. دغه مجسمې بیا د «مور» دي، چې دپنځوني ریښه ده.

په دوی کې ترټولو مشهوره مجسمه هغه ده، چې په ۱۹۰۸ میلادي کې د اسټریا (دلن دراف) سیمه کې کشف شول. د ښځې دغه بت پنځه نیم انچه غټ دی. د دې د سر وېښتان د شاتو مچیو ګبین په څېر دی. سینې یې غټې او ځوړندې دي. خېټه یې غټه ده. نو واضح خبره ده چې دا دیوې ناواده پیغلې مجسمه نه ده، بلکې د یوې اومیندوارې مېرمني ده. د هنر له مخې د شپږو انچو هغه مجسمه هم ډېره ښکلي او بشپړه ده، چې په سهیلې فرانسې کې موندل شوې. دغه هم د ښځې مجسمه ده، چې جنسي اعضاء یې ورته په ډېر ځرګنده ډول ښودلي دي. د پخواني انسان لپاره د ښځو د جنسي اعضاوو جوړول یوه طبیعي خبره وه. دوی ځکه د ښځو مجسمې جوړولې، چې د دوی په ژوند کې ډېر بدلونونه راتلل او کله چې به سړي له ښکار څخه راتلل، نو په سمځو کې به د نوي زېږیدلو ماشومانو چیغي وې. د پنځوني دغه ډول مظاهر دوی په حیواناتو کې هم لیدلي ول. دغه وجه ده، چې د دوی په

عقيدې کې له سرې څخه د ښځې اهميت ډېر وو. نو د ښځې د جسم مجسمې جوړول دپنځوني نښان وګرځېده. د دغه وخت انسان اړ نه وو، چې د کوروالي لپاره پلانونه جوړ کړي، بلکې تر ټولو ستر مسئله د نسل د زياتوالي وه، ځکه نفوس ډېر کم او مړينه زياته وه/موسم ظالم وو.

واوروين طوفانونه او تيز بادونه به ول. ماشومانو به د دغه ډول ساړو تاب نلرو او له ناروغۍ وروسته به مړه شول. د درملو هم هيڅ څرک نه وو، د ماشومانو مړينه خورا زياته وه. د قبيلو لپاره د ژوند د پايښت سربيره د خپل نسل زياتوالى دومره مهم وو، لکه څنګه چې ښکار مهم وو. د نفوس د کموالي له وجې به د ځنګلي حيواناتو ښکار هم ډېر ستونزمن وو. که د قبيلې نفوس زيات وو، نو ښکار به زيات کېده. که نفوس کم وو، ښکار به هم کم کېده او کله چې به ښکار کم وو نو د قبيلې خلکو ته خواړه په مناسب ډول نه رسېدل او د قبيلې نفوس به نور هم کمېده. نو داسې ويلي شو، چې ټوله ټولنه له ستر ناورين سره مخ وه او له دغه ناورين څخه د وتلو يواځينې لاره دا وه، چې په نسل کې دې زياتوالي راشي. نو د نسل د زياتوالي لپاره د مورګانو مجسمې جوړې شوې، تر څو د سحر د پنځوني له مخې دغه کار ترې واخيستل شي. دا نو هيڅوک همنه شي ويلاى، چې دا سحر څه شى وو. کېداى شي ښځې او سړي د کوروالي کولو له مخې په دغو مجسمو خپلې جنسي اعضاوې سولولې او موښلې او کوم شى به يې ويل؛ له دې وروسته به يې د کوروالي چارې ترسره کولې. په ځينو پخوانيو قومونو کې دغه رواج اوس هم شتون لري؛ کله چې په لومړي ځل يوې پيغلې جلۍ ته حيض راځي، نو په ټول کلي کې خوشحالي وي. جلۍ ته د سور رنګ کالي ورپه غاړه کوي، چې سور رنګ له پخوانيو زمانو څخه د ژوند نښان دى او بيا ټول خلک دغې پيغلي ته مبارکيانې ورکوي. دغه دود د هغه زمانې يادګار پاتې دى، ځکه د نسل زياتوالى يو ډېر مهم ټولنيز عمل دى. نو د واوري دورې خلکو ته دغه مجسمې د پنځوني نښان ګرځېدلى وو، خو بايد ياد ولرو! چې هغو خلکو د دغو مجسمو عبادت نه کاوه، ځکه دوى تراوسه دغه شعور ته رسېدلي نه ول. په دغو سمځو کې، چې دغو مجسمې شتون درلود، نو د عبادت کولو کوم اثار نه دي ترې ترلاسه شوي، خو له زرګو کلونو وروسته کله چې نوي نسلونو ځانته خدايان جوړ کړل، نو له دې وروسته د عبادت چارې پيل شوې.

د مور دپنځوني دغه مجسمې له تاريخي اړخه ډېرې پخوانۍ دي او موخه يې يواځې د انساني نسل د زياتوالي جذبه ده، خو وروسته بيا نفوس زيات شو او د نفوس وروسته بيا دزياتو حيواناتو د

موندلو په فکر کې شول، نو د ښځو پر ځای له دې وروسته د بلاربو حیواناتو انځورونه جوړېدل، نو ځکه د فرانسې او هسپانیې په سمځو کې د بلاربو حیواناتو د انځورونو شمېر زیات دی.

د نسل انساني زیاتوالي او بقا برسېره د هغه زمانې د انسان یوه بله مسئله دا وه، چې د خپلې قبیلې لپاره خواړه او نورې اړتیاوې څه ډول پوره کړل شي. دغه اړتیاوې یواځې د حیواناتو له ښکار سره پوره کېدې. د هغه زمانې ښکار د نن ورځې په څېر اسانه نه وو، بلکې د هغه زمانې انسانانو د ډول - ډول ځنارو مقابله هم کول. په ځنګله کې پړانګ، زمری، ځنګلي غواوې، یږې او همداسې نور ځناور به هم ول. د هډوکي توره او د ډبرې نیزې به پر دوی کومه اغېزه نه کول. نور حیوانات به هم په ډېرې سختۍ د دوی لاسو ته ورغلل. ځکه له ښکار څخه مخکې د سحر/چل تخریبي اړتیا پیښېدله. ځینې وختونه به دوی په دیوالونو جوړ شویو انځورونو باندې د تیر یا نیزې په مرستې ګوزارونه کول ( د دغو ګوزارونو نښانې اوس هم په انځورونو کې لېدل کېږي)، نو دوی به باور درلود چې د دوی ښکار به له مینځه ځي. د دغو دودونو د اداینې وروسته ښکاریان به په ډاډه زړه د ښکار په لور روان شول. که چېرته به بریالي بېرته راغلل، نو په سحر به د دوی عقیده نوره زیاتېدل. کله چې به ناکام شول نو دغه به یې ویل چې کېدای شي، د دودونو په اداینې کې کومه تېروتنه شوې وي.

د زړه ساتلو سحر د ځناورو او نورو خطرناکو حیواناتو د زړه خوښولو لپاره ځانګړی وو. د هغه زمانې انسان چې به کوم ځناور له مینځه یوړو، نو وېره به یې درلودل چې راتلونکې کې به یې نسل له موږ څخه خفه وي او له موږ سره به ډېر بد وکړي، نو ځکه کله چې به دوی کوم ځناور له مینځه یووړ، نو بیا یې یو دود ترسره کړ، چې دوی خوشحاله کړي او خفګان یې لري شي. د فرانسې په یو سمڅې کې د یږې یوه مجسمه تر لاسه شوه، چې سر نلري، خو له غاړې سره یې د وینې نښانونه لېدل کېږي او څنګ ته یې د نورو یږو سرونه هم پراته دي. د پخواني اثارو پوهانو دا پایله ترې اخیستې ده، چې د هغه زمانې انسانانو چې کله د یږې ښکار کاوه، نو وروسته به یې سر ورته د ختو په وسیله بېرته جوړ کړ او داسې فکر به یې کول، چې زموږ په لاسونو یږې ته کوم زیان ندی رسېدلی، بلکې بېرته را ژوندی شو. نو بیا به یې یږ ټول وخوړ او له پوست څخه به یې ځانته کالي جوړ کړل. دغه سحر څومره ګټور وو. د چین او جاپان پخوانی دود دی، چې په پخلنځي کې به اشپزانو د سبزي جاتو له پخلو څخه مخکې په میز ښه جوړ کړل او د دوی مخې ته به په دوو پښو کېناستل او له دوی څخه به یې بخښنه غوښتل.

پر موږ د پخوانی زمانې ډېر زيات احسانونه دي. په هغه دوره کې له انساني حيوان څخه انسان جوړ شو. د تمدن پيل وشو، انسانانو د اور کارول زده کړل، آلات او اوزار يې جوړ کړل، د طبيعت په قوانينو کې يې لاسوهنې پيل کړې او د مادې بڼو ته يې بدلونونه ورکړل، د ساينس په لور يې لومړی گام کېښود. دوی د انځور جوړولو او مجسمې جوړولو دوه زړه راښکونکي هنرونه ايجاد کړل. د هغه زمانې د انسانانو له پنځونو سره موږ ته ډېر شيان په لاس راغلل او د نويو انسانانو ژوند ښکلی شو. له دغو کشفياتو څخه مخکې د اوسنی زمانې خلکو د پخواني زمانې انسانانو ته د ځنگلي او ځناورو حيواناتو خطاب کول. د سمڅو ښايسته نقاشيانو او انځورونه دا ثابت کړل، چې د پخواني انسان پنځونکی شعور بيداره شوی وو. دوی زړور ول او له حالاتو سره يې مبارزه وکړه، په پای کې بريالي شول او په خپلو حال کې يې ستر بدلونونه راوستل.

**د مضامينو تېروتنې**

زه له مولانا کوثر نيازي سره د کال ۱۹۵۳ ميلادي څخه پېژنم. د تحريک ختم نبوت په لړی کې نيول شوی وو او د لاهور مرکزي زندان ته راوړل شو. دغه وخت يې له جماعت اسلامي سره اړيکې درلودې. په سياست کې که څه هم زما او د ده تگلاره جلا وه، خو کله چې له زندان څخه آزاد شو، نو زياتره وخت به مو له يو بل سره د زړه خواله کول، کله په لاهور کې او کله په کراچي کې. بيا نو داسې يوه پېښه رامينځته شوه، چې مولانا په مرکزي حکومت کې وزير وټاکل شو. اوس نو کله زما او د ده سره کېدله، هغه د حکومت وزير او زه يو عام شخص، د لېدلو ټول امکانات ختم شول. (نه کيږي د خانانو او ملنگانو سره کلي - چيرته عزيز خان او چيرته ملنگ عبدالرحمن. رحمان بابا. ژباړن) مولانا په خپلو چارو کې دومره بوخت وو، چې هېڅ وخت يې ونهوموند له خپل زنداني ملگري سره ووينې يا اړيکه ورسره ټينگه کړي، او زه نو په کوم مناسبت ده ته يوه عريضه وليکم او څه پکښې وليکم، چې زه څوک يم. که څه هم کاغذنه زيات ول، خو په دې کاغذونو د ليکلو لپاره څه نه ول، نه خو مو بيا سره وليدل او نه هغه خپلې مانۍ ته ورو بللم.

اوس نو يوه ناڅاپي پېښه ورته ووايم که زما قسمت؛ په کومو ورځو کې چې ما د اروا پوهنې د داکترانو د کانفرانس په اړه مقاله ليکل (زموږ پر افکارو د تمدن اغيزې) نو د جنگ په ورځپاڼه کې مې د مولانا يوه مقاله تر سترگو شوه. په دغه مقاله کې مولانا ښه شعرونه هم ويلي دي؛ د مولانا مفتي

محمد شفیع په اړه مې چې څنګه یوه کیسه ولیکل، نو ډېره ښه یوه بهانه لاسته راغله. ما فکر کاوه لکه څنګه چې ماشومان د پیریانو کیسې په ډېر شوق سره لولي؛ کېدای شي مولانا هم د مفتي صاحب دغه کیسه د پیریانو داستان وبلي خو داسې څه نه ول، مولانا کوثر نیازي خو د قرآن، حدیث، د ختیځ او لویدیځ د علماوو له خبرو څخه د پیریانو د وجود ثابت کولو په پار راووته. دلته زه په خپلې کړنې پښیمان یم.

مولانا کوثر نیازي د مفتي محمد شفیع مرحوم په اړه، چې د پیریانو کوم داستان بیان کړی دی، تر داسې څرګندیږي چې دا پیریان خو د مافوق ځواکونو مالکان ول او سبحان الله مسلمان هم ول.

زما مقاله خو د ارواپوهنې د داکترانو په اړه وه، نو ما ځینې بیلګې ورکړې، چې زموږ په ټولنه کې د بیلابېلو وهمونو دود دی، چې له امله یې څومره عقیده لرونکو باندې بدي اغېزې پرېباسلي. د بیلګې په توګه: دغه کیسه چې یو شخص خوب ولېده او ده ته حکم شوی وو، چې خپل زوی قرباني کړه، نو ده د ابراهیمي سنت له مخې د خپل زوی قرباني ورکړه. دغه ډول یوې ښځې خوب لیدلي وو او د خپل ګاونډي زوی یې قتل کړ، تر څو یې له امله د یوه ماشوم مور شي او خدای ورته زوی ورکړي. ما لیکلي ول، که وکتل شي دا خو د لیونیانو کارونه دي، خو په حقیقت کې دا یوه ټولنیزه ناروغي ده او هغه د وهم پالني ناروغي ده، چې ورځ تر بلې زیاتیږي. کېدای شي مولانا کوثر نیازی خبر نه وي، چې یواځې په کراچۍ کې د ذهني ناروغانو شمیر ۵۰۰۰۰ ته رسیږي. زما یوه ملګري څه مودې مخکې په '' ځپل شویو'' باندې یو فلم جوړ کړی. په دغه فلم کې ښودل شوي، چې څه ډول د اروایي ناورینونو له وجې په ناروغۍ باندې ښکېل خلک؛ د دوی خپلوان له یو زیارت څخه بل زیارت ته وړي او د یو بزرګ په خبره یې بل بزرګ ته وړي، خو د دغو ټولو کارونو وروسته یې هغه وخت روغتون ته یوسي، چې د هغه ناروغۍ درملنه نوره شونې نه وي.آیاڅوک به په دغه خبرې باور وکړي، چې په دغه پرمختللي ښار کې د پیرانو داسې خونې هم شته، چې دغه ډول ناروغان پکښې زنداني کوي او بیا ډول - ډول ظلمونه پرې کوي. د دغه فلم هر یو انځور واقعیت لري او که چېرته مولانا دغه فلم وګوري، نو بیا به هېڅکله هم د پیریانو کیسې ونه کړي. (زموږ په هېواد افغانستان کې هم داسې زیات زیارتونه شته، چې پکښې رواني ناروغان د درملنې لپاره وروړل کیږي. میاعلي زیارت یې مشهوره بېلګه ده. ژباړن)،

که د اروپاپوهنې له ډاکترانو سره خبرې وکړئ، نو دوی به د خپلو ناروغانو داسې رېښتيني کيسې درته وکړي، چې هک پک به ورته پاتي شئ. خبره خو دلته ده، چې هر يو ناروغ به په ډېر خلاص زړه درته ووايي چې دغه پېښې ما په خپلو سترګو ليدلي د،ي يا دغه پر ما خپله تېر شوي دي. که چېرته تاسو يو روغ شخص په غرمه کې يوې صحرا ته يوسئ او هغه د سراب له حقيقت څخه خبر نه وي، نو هرې خواته به ورته د اوبو سيندونه ښکاره شي نو هغه به د خدای په نامه قسم هم واخلي ما په پلانکي صحرا کې سيندونه وليدل.

د طب له پخواني تاريخ څخه داسې څرګندېږي، چې په لومړيو وختونو کې خلک د ناروغۍ له عاملونو څخه خبر نه ول. د دوی پخه عقيده وه کله چې د انسان بدن ته يو پېری داخل شي، نو هغه ناروغ شي، دوی د هرې ناروغۍ درملنه د ډول ډول صورتونو يا منترونو په دم و چُف سره کوي، که څه هم هغه رېزش وي يا تبه او يا ميرګي. د درملنې دغه ساحران[طبيبان] د عبادت ځايونو ستر علماء يا پيران ول. نو د بابل اوسېدونکو په خپله ژبه کې طبيب، عالم او ساحر، دريو واړو ته د [آزو او ايازو] اصطلاح ګانې کارولې. په سحر او طب کې هيڅ ډول توپير هم نه وو. بيا ورو - ورو له سحر سره - سره ځيني درمل هم ورکول کېدل او د درملو پله ځواکمنه شول، خو د يوناني طب له پرمختګ څخه مخکې په پخواني مصر او بابل کې سحر د درملنې مهمه برخه ګڼل کېدل. د بيلګې په توګه، کله چې د مصر پخواني اثار وکيندل شول، نو بې شميره داسې نسخې ترلاسه شوې، چې د ناروغۍ او د هغه د درملنې په اړه هر څه ليکل شوي ول. له دغو څخه داسې څرګندېږي، چې پر ناروغ کومه بده اروا کښيني، نو د درملنې کولو والا ساحر طبيب داسې څه نه ليکي، چې [دغه نسخه/تعويز د پلانکۍ ناروغۍ ده]. بلکې داسې ليکي، چې دغه تعويز کولای شي بده اروا [وزغلوي يا يې ووېروي او يا يې هم له مينځه] يوسي.

خو ورو –ورو، چې څنګه طب پرمختګ وکړ، د ناروغيو اصلي لاملونه وموندل شول او د شفا ترلاسه کولو لپاره درمل کشف شول، نو خلکو له خپلو تجربو څخه وليدل، چې د ناروغانو درملنه په سحر او پيرانو نه کېږي، بلکې په درملو کېږي، نو د خلکو باور له وهمونو څخه پورته شو، خو اوس هم زرګونه خلک شته، چې د درملنې په پخوانيو طريقو باور لري او خپل ناروغان هغسي ځايونو ته وړي. نو پايله دا ده، چې تاسو ته به په هر کلي او ښار کې فقيران او بزرګان په سترګو شي، چې ځانونو ته يې دغه کاروبار خلاص کړی او پيسې پرې ګټي. ډېره د حيرانتيا خبره ده، چې پيريان او بدې ارواوې دوی

ته هیڅ ډول زیان هم نه رسوي؛ ځکه دوی د پیریانو او بدو ارواوو له وجود څخه منکر دي. (په دې وروستیو کې د کرونا وبا خپرېدو لپاره زموږ د هېواد افغانستان خلکو ته د قرآن کریم یو آیت شریف توصیه کېده، چې پر خپلو ځانونو یې چُف کړي، حتی ما خپله د کابل پوهنتون دروازو باندې لیدلی وو، چې یو شمېر وهم پالو زده کړیالانو به ټومبلی وو. ژباړن).

په پیریانو عقیده په اصل کې، د طبیعیت د نه ښکاره کېدونکو ځواکونو په اړه یواځې یو فکر دی. لومړیو انسانانو دغه ځواکونه... لمر، سپوږمی، باد، طوفان، وریځې، سیلاب، زلزله او همداسې نور... د ځانونو په څېر ژوندي موجودات ګڼل. کومو ځواکونو چې دوی ته ګټې رسولې، نو هغوي ته به یې د خیر نوم ورکوئ او له دوی سره به یې مینه کول. د دې برعکس کومو ځواکونو چې به دوی ته زیانونه رسول، نو هغوی ته به یې د شر نوم ورکول او له دوی څخه به یې وېره درلودل، نو ځکه خو په مصر، بابل، یونان، ایران، هندوستان او چین هر ځای کې دغو ځواکونو د خدایانو درجې خپلې کړي او د شر ځواکونه چېرته قیامت، چېرته مرګ او چېرته څه او څه ونومول شول. دغو خدایانو د انسانانو په څېر ژوند کوئ. د دوی عادتونه او کړنې هم د انسانانو په څېر وې. د دې سربېره هغوی د انسانانو په ټولنیزو چارو کې هم لاسوهنه کول، نو ځکه د ټرای په لس کلنې جګړه کې د اولمپس غره ځیني خدایان له یو پلاوي سره همغږي ول او ځیني له بل پلاوي سره. دغه ډول د ریګ ویدا له قوله، کله چې آریایي قومونو په سند یرغل وکړ، نو اندره خدای اشوریانو او پانتریانو ته د ماتې ورکولو لپاره د آریایانو د لښکر سپه سالاري کول. د افسوس خبره ده، کله چې عیسوي دین په اروپا کې رواج وموند، نو د اولمپس غره خدایان له یو بل وروسته ورک شول. که څه هم تر څلورمې (ق.م) پیړۍ پورې د دوی د وجود [حقایق ثابت] ول، حتی تر دغه ځایه کله چې سقراط د دې خدایانو له وجود څخه انکار وکړ، نو زهر یې په پیاله کې ورکړل او د هغه هم عصر فیلسوف انکساغورث او ډرامه لیکونکی یوري پډیتر له آتن څخه وشړل شول. په مصر، لبنان، فلسطین، عرب، ایران، هندوستان او چین سربېره په ټوله نړۍ کې چې د کومو خدایانو د وجود په اړه خلکو عقیدې درلودې، نن یواځې په دیومالائي داستانونو کې ژوندي دي.

مولانا کوثر نیازي د پیریانو په اړه داسې هم ویلي، چې پیریان د انساني ښځو سره نکاح هم کوي او طلاق هم ورکوي، خو دا تراوسه څرګند نشول چې له دوی څخه چې کوم ماشومان نړۍ ته راځي،آیاهغه به په انسانانو کې شمیرل کېږي یا پیریانو کې. نو که وکتل شي دغه ټولې کیسې هم د

پخوانیو زمانو میراث دی، چې په دیومالا کې اوس هم لا ژوندي دي. د اولمپس غره د خدایانو د عشق او عاشقۍ کیسې، خو ډېرې مشهوري دي. کومه مجرده او ښایسته پېغله به یې چې چېرته ولیده، نو په هغه وخت کې به یې له هغوی سره جنسي اړیکي ټینګول. نو د یونان ډېري وګړي د زیوس او اپالو زامن ګڼل کېږي. دغه ډول د مها بهارت راني کنتي لومړی زوی د کرن سورج له نطفې څخه دی، د راجپوتانو راجاګانو تر ننه پورې دغه دعوه کوي، چې موږ د سورج بنسي او چندر بنسي زامن یو.

د پخوانیو قومونو د عقیدو له یادونې څخه زموږ موخه دا وه، چې د پیریانو تاریخ واضح کړل شي. د پیریانو په وجود باور درلودل هم په اصل کې یو فکر دی، چې په پخوانیو وختونو کې ډېر په کش کې وو، خو له کومه چې انسانان د طبیعت له قوانینو او د طبیعت له ځواکونو سره اشنا شول، ورو - ورو چې ساینس پرمختګ وکړ او د تجربې او مشاهداتو کړۍ پراخه شوه د خدایانو، پیریانو او دغه ډول نورو ځواکونو کړۍ راتنګه شوه.

د مولانا کوثر نیازي دغه خبره سیي ده، چې « د نه ښکارکېدونکي نړۍ او بیګانه مخلوقاتو په اړه تحقیق کول خپله د وخت بې ګټې تېرول دي». نو دغه کړنې له کلونو - کلونو راهیسې د ساینس پوهانو تګلاري پاتې شوې. موږ به مولانا هم هسې د اوسنۍ زمانې ساینس پوه او څېړونکی وبولو، کله چې یې د منقولاتو پرځای ساینسي فکر او انداز خپل کړ او د عقلي دلایلو او له ساینسي تجربو څخه په ګټې، دی د پیریانو وجود ثابت کړي، ولي ده خو د توائماتو، علماوو، فقهاوو او صوفیانو برسېره د لویدیځ د لیکوالانو خبرې هم راخیستي دي او بیا به موږ د پیریانو په اړه لږ ډېر پوه شو. د بیلګې په توګه: پیریان لکه الوتونکي الوزي او میلونو واټن د سترګو په رپ کې پوره کوي، دوی له اور څخه جوړ دي. په دوی کې ځیني مسلمانان دي او ځیني کافران، دوی زموږ له ښځو سره کوروالي هم کولای شي او بیا طلاق هم ورکولای شي. دوی له موږ سره یوځای کیږي او ډول ډول وسوسې راپیدا کوي (خو د دوی د دغه کړنې موخه څه ده؟ دا تر اوسه څرګند شوې نه ده) خو د افسوس خبره ده، چې د دغو خبرو د ثبوت لپاره بې شمیره کتابونه لیکل شوي، خو تراوسه مولانا صاحب د پیریانو په اړه کوم عقلي او منطقي دلیل وړاندې نه کړ.

رښتیا خو دا ده، چې په پیریانو عقیده درلودل له عقایدو سره ده، نه له عقل سره. د برتانوي فیلسوف جان لاک له قوله عقیده داسې یو شی ده، چې له واقعیت څخه مخکې هغه شی مني او ورته ژمن شي. یو ماشوم له عقیدې سره هله اشنا شي، چې د مور په غېږ کې وي او کله چې خپلې ټولنې ته

وردننه شي نو ټول چاپېریال پرې اغېز کوي او عقیده یې نوره هم پخېږي. په اسلامي ټولني کې زېږیدلی ماشوم به په اسلامي عقایدو باور لري، په هندو ټولنه کې به په هندویزم او په یهودي ټولنه کې به په هندویزم. کله چې زده کړې ترلاسه کړو، بیا هم زموږ دغه هڅې وي چې د علم او عقیدې ترمینځ همغږي پیدا کړو. زموږ دغو عقیدو ته د منقولاتو په مرستې نوره هم وده ورکول کېږي. خو کله چې موږ د عقیدې له نړۍ څخه وځو او د عقل نړۍ ته وردننه کېږو نو بیا د [ایا، ولې او څنګه] په څېر له بې شمیره پوښتنو سره مخ کېږو، د غالب له قوله:

شکن زلف عنبریں کیو ہے
نگہ چشم سرمہ سا کیا ہے؟
سبزہ و گل کہاں سے آئے ہیں
ابر کیا چیز ہے، ہوا کیا ہے؟

عقیده د دغه ډول پوښتنو ځوابنه شي ورکولای او ځواب یې هم نه لري. ځکه عقیده د تسلیم او رضا نوم دی، د اقرار او تقلید، روایاتو ته د درناوي. په دې کې د [ولې، څنګه] په څېر پوښتنو ځای نه وي. عقیده موږ ته وایي، بس هر شی چې وایم تاسو یې تسلیم کړئ او له بحث کولو، شک کولو او انکار کولو څخه مو منع کوي. ځکه که بحث، شک او انکار مینځته راشي، نو دا د عقیدې لپاره ډېر زیانمن تمامېږي. د دې برعکس عقل پر شعور او پوهې راڅرخي. په دې برخه کې مشاهدات او تجربې وي. د دغو تجربو له مخې انساني عقل سترې - سترې کارنامې ترسره کړي. نوي - نوي کشفیات او پنځونې یې وکړې، هغه شیان یې جوړ کړل چې پخوا په نړۍ کې نه ول.

د مولانا کوثر نیازي استدلال په منقولاتو را څرخي. ساینسي یا عقلي نه دی، یانې د کوم شي د وجود د ثابتولو لپاره هغه د علماوو، فقهاؤ، صوفیانو شواهد راخلي او خلکو ته یې وړاندي کوي. هغه وایي:

«د پیریانو دغه کړنې، چې انسانان ځوروي او بیا د دین علماء له دغو پیریانو سره مبارزه کوي او له مینځه یې وړي؛ دا یواځې د علماوو خبرې نه دي، بلکې زموږ صوفیانو او بزرگانو کې داسې خلک ول، چې په صداقت او رېښتینولي یې نن خلک قسمونه اخلي».

آیا د کوم شي د وجود د ثابت کولو لپاره بس یواځې د علماوو، فقهاوو، صوفیانو او بزرگانو شواهد بسنه کوي؟ آیاموږ دا ومنو چې ځمکه د سکون په حالت کې ده؟ یانې حرکت نه کوي او ټولې

سیارې د ځمکي په مدار کې راڅرخي، څکه د کپلر او ګالیلو له کشفیاتو څخه مخکې مسلمان، هندو، عیسوي، یهودي، پارسي دا چې د ټولي نړۍ [بزرګانو، علماوو، فقهاوو، صوفیانو] حتی د قرآن کریم مفسرینو هم دغه عقیده درلودل چې سپوږمۍ، لمر، ستوري، ټول د ځمکې په مدار کې را څرخي او د هستۍ مرکز ځمکه ده.

دا نو یوه واضح خبره ده، چې مولانا کوثر نیازي به د ارسطو په څېر د شخص په اړه معلومات لري. هغه ارسطو چې اسلامي نړۍ ورته د [لومړي معلم] لقب ورکړ. دغه ستر فیلسوف او ساینس پوه پنځلس سوه کاله د لویدیځ پر افکارو حکمراني کول. خپله د روم کلیسا به هم د ارسطو نظریې ډېرې معتبرې ګڼلې او د انجیل رتبه به یې ورکول. هیچا هم دا جرأت نه درلود، چې د ارسطو په نظریاتو شک وکړي، نو څکه کپلر چې پخپله پادري وو، د ریاضي علم په مرستې او ګالیلو د خپل دوربین له مشاهداتو څخه دا ثابته کړل، چې د ارسطو او بطلیموس نظریې غلطې دي او د لمریز نظام مرکز لمر دی نه ځمکه، نو په کلیسا کې ناورین رامینځته شو. ګالیلو یې د روم دیني محکمې ته وروغوښت او حکم پرې صادر شو، چې له دغه کفر څخه توبه وباسه، کنې په اور کې د سوځېدلو لپاره تیار شه. ګالیلو د مرګ له وېرې توبه وویستل، خو په پټه یې وویل تاسو یې منئ که یه؛ ځمکه سل په سله څرخي.

ساینسي استدلال منقولاتي نه وي، بلکې د تجربو پر اساس وي. ساینس د کوم شي د وجود د ثبوت کولو لپاره د نیوټن، انشتین، ډاروین او همداسې نورو ساینس پوهانو له شواهد څخه کار نه اخلي، بلکې په تجربو یې ثابتوي او داسې تجربې چې ټولي نړۍ ته پکښې برخې ورکول کېږي او هر یو شخص دغه تجربې ویني. د بیلګې په توګه: دغه دعوه چې اوبه له دوو ګازونو (هیدروجن او اوکسیجن) څخه جوړېږي، دا یو داسې تجربه چې حتی د مکتب یو زده کوونکی یې هم ترسره کولای شي او که کوم شخص انکار وکړي، نو موږ هغه ته ویلي شو چې ښاغلیه ته په یو بوتل کې هیډروجن ګاز واخله او په بل کې اوکسیجن، بیا دواړه ګازونه سره ګډ کړه نو اوبه به ترې جوړ شي. دغه ډول که څوک له هوا څخه انکار کوي، نو د یوې معمولي تجربې له مخې یواځې د هوا وجود ثابت کېږي، بلکې دا به هم ووینې، چې هوا ځانته وزن لري او ځای هم نیسي. موږ څکه د موجوداتو دوه بیلګې وړاندې کړې؛ دوی نه ښکاري(د اوبو له ګازونو څخه مینځته راتلل، او په هوا کې د وزن شونتیا).

وجه دا ده، چې موږ د مولانا په دغه خبرې بحث کوو، چې د کوم شي نه ښکاره کېدل د هغه د عدم وجود مانا نه ورکوي. د مولانا په ټوله مقاله کې يواځې يو عقلي دليل شتون لري او زه ورسره سل په سله همغږی يم. د بيلگې په توگه: موږ د عطرو بوی نه وينو، د بريښنا ځواک نه په سترگو کېږي، د ځمکې ثقل نه شولېدلای، گرمي نه وينو، موږ دا نه شوليدلای، چې ځمکه حرکت کوي، بلکې لمر او سپوږمی وينو، چې حرکت کوي. بيا هم موږ د دغو حقيقتونو وجود منو. ولې؟ ځکه موږ په عملي تجربو کولای شو، د دوی وجود ثابت کړو. لکه څنگه چې موږ د اوبو او هوا په اړه وويل، خو د مولانا له نظره د کوم شی نه ښکاره کېدل، د هغه د نه شتون مانا نه ورکوي، خو د وجود دليل جوړېدلای شي. په دغه دليل کې چې يوه ډېره باريکه خبره ده، چې مولانا صاحب پرې ژور فکر نه دی کړی. لکه څنگه چې د کوم شي نه ښکاره کېدل، د هغه د عدم وجود دليل نه شي کېدلای دغه ډول د وجود دليل همنه شي کېدلای. وجود يواځې په وجود ثابت کېدلای شي، په عدم وجود هېڅکله هم نه. ځکه خو وايي: [آفتاب آمد، ليل آفتاب]. حقيقت داسې دی، چې د کوم شي انحصار د هغه شي په ښکاره کېدو يا نه ښکاره کېدو نه دی. ښکاره کېدل خو يې يوه خواته پرېږده، د طبيعي شيانو د انساني وجود سره هيڅ ډول کوم اړيکه نشته. هغه خو انسانانو څخه له مخه زرگونه کلونه مخکې شتون درلود.

خو مولانا يو بلې منطقي خبرې کې هم راگير شو. دی وايي، څومره حقيقتونه ول چې پخوانيو انسانانو لا نه ول کشف کړي، نن يې موږ په خپلو سترگو وينو. آياد پخوانيو انسان عقيده دا وه، کوم شی چې نه ښکاري نو ردول به يې او دغه به يې ستر دليل وو؟ د دغه دليل په اړه مولانا د شيانو د وجود په اړه د هغه کشف او ايجاد ته اشاره کوي. پوښتنه دا ده چې د نولسمې پيړۍ انسان وي، يا د شلمې پيړۍ انسان، هغه له کشف  څخه مخکې څنگه د يو شي په وجود ايمان راوړي، يا يې تسليم کړي. بې شميره داسې وايرسونه دي، چې موږ يې پخپلو سترگو ليدلای نه شو، خو هغوی شتون لري. کله چې ساينس پوهانو د مايکروسکوپ په وسيله د دغو وايرسونو د وجود په اړه هر څه څرگند کړل، نو هر يو شخص اړ شو، چې وجود يې ومني، خو له کشف څخه يې مخکې انسانانو هر ډول گومانونه کول. هغوی څنگه داسې دعوه کولای شوه، چې وايرس شتون لري او که دعوه يې کول، نو څنگه به يې ثابتول. د طبيعت په خزانې کې اوس هم بې شميره داسې شيان دي، چې موږ هيڅ ډول علم هم پرې نلرو، خو که کوم يو شخص دغه دعوه وکړي، چې د ځمکې دننه د فيل مرغ د هگيو په څېر ډول ډول گاڼې پټې دي، نو د دغو گاڼو ثبوت به دی څنگه ورکوي؛ واضح خبره ده چې په غاړه کې يې د

هر ډول غاړکيو ګاڼې وي. هغه خو داسېنه شي ويلای،آياته خبر نه يې د ځمکي دننه څومره بې شميره شيان پټ دي، چې تراوسه لا څرګند شوي ندي. زه يې په مقابل کې داسې پوښتنه هم کولای شم، چې زه خو رېښتيا هم نه يم خبر، چې د ځمکې دننه څه ډول شيان پټ دي، خو ته څنګه خبر يې. که د ده سربېره زه د ځمکو له ماهرينو څخه پوښتنه وکړم، چې ګاڼې له څه ډول مادي شيانو څخه جوړېږي، آيا د ځمکي دننه دغه مادي شيان شتون لري اوآياد ځمکي دننه په هغه ډول ګرمي کې د ګاڼو شونتيا شونې ده. که ځواب نه وي، نو زه له دغه هر څه څخه انکار کولای شم.

خو د پيريانو په اړه د وجود او عدم وجود بحث هسې بې ګټي دی، ځکه مولانا د پيريانو وجود له هر اړخه تسليم کوي. دی ونه توانېد، چې د پيريانو وجود ثابت کړي، خو ده د کتابونو له مخې د پيريانو ځينې ځانګړتياوي بيان کړي. څومره به ښه وو، که هغه د خپلې تجربې او مشاهدې په اساس يا د کتابونو له مخې موږ ته دا هم ويلي ول، چې د پيريانو خوراک او پوښاک څه ډول وي. دوی چېرته اوسېږي، ځمکه باندې، فضا کې يا آسمان کې. آيا د انسانانو په څېر دوی هم کورنۍ ژوند لري او يا د دوی يواځينې کار دغه دی، چې انسانانو ته تکليف او ډول - ډول وسوسې پيدا کړي. ما دغه ټولې پوښتني د ريشخند وهلو لپاره نه دي کړي، بلکې انسانان ژوندي او باشعوره دي. نو د دوی په اړه د دغه ډول پوښتنو راپورته کېدل يوه طبيعي خبره ده. حيرانوونکي خبره خو دا ده، که څه هم پيريان له اور څخه جوړ شوي بيا يې هم موږ نه شولېدلای؛ که وکتل شي اور په هره بڼه کې موږ ليدلي شو. دلته دا خبره کول به بې ګټي نه وي، چې اور پخپله کوم شی ندی، د اوبو، اوسپنو، سره او سپين زرو، لرګيو، ذغالو او تېږو په څېر کوم مادي شی نه دی، بلکې د مادي شيانو ترمينځ يو کيمياوي عمل دی. د دوی د حرارت درجه ده. اور د لرګي، ذغال، تيل، نفتو او همداسې نورو اور اخيستونکو مادي شيانو له کيمياوي عمل څخه مينځته راځي. هغه ځانته وجود نلري، بلکې د يو نه يو مادي شي وجود ته اړ وي. آيا پيريان هم د مادي شيانو د کيمياوي عمل پايله ده؟

مولانا ماته د لويديځ په افکارو پيغور راکړ او ډېري لويديځوال ليکوالان يې راسره وتړل، چې په هغه کې د اتحاد شوروي ځيني ليکوالان هم شته ول، استناد يې راباندي وکړ. بې شکه چې مولانا ډېره مطالعه لري او ډېري کتابونه يې هم ليکلي، خوآيادی اړ ده چې داسې ووايي، هر ځلېدونکی شی سپين زر نه وي. نه هم هر پټ شوی کتاب معتبر وي ، که څه هم هغه دلويديځ وي يا د ختيځ. موږ ته پکار ده، چې په هر وخت کې له خپل عقل څخه کار واخلو. له تېري نيمي پېړۍ څخه د امپرياليزم

نظام چې له کوم ډول اقتصادي، سیاسي، فکري او اخلاقي ناورین سره مخ دی؛ دا هم کومه پټه خبره نه ده. عام خلک گمراه کول، د دوی پام له ورځني ژوند څخه بلې خواته اړول، د دوی له افکارو سره د لوبي کولو په ترڅ کې هغه کومې حربې پاتي دي، چې تراوسه لویدیځوالو نه وي کارولي. کله د '' یوې نړۍ'' او '' یو نړیوال حکومت'' شعار پرېږدي، هغه هم په داسې وخت کې کله چې اسیا او افریقا د آزادۍ ترلاسه کولو په هڅو کې بوخت ول. دلیل به یې دا ورکوو، چې نړۍ اوس ډېره سره نږدې شوې ده، د حکومت پخوانۍ نظریې اوس بې گټې شوي دي او د نړۍ مسئلې اوس دومره سره زیات شوي دي، چې د حل لپاره یې باید یو [نړیوال حکومت] جوړ کړای شي. واضح خبره ده، چې د دغه نړیوال حکومت په راس کې به له امریکا پرته بل کوم هیواد وي. بیا د پروفیسور ټواین بي د فلسفې خبره راپورته شي، د ښاغلي سارتر صاحب فلسفه وجودیت، چې له وجودیت څخه انکار کوي دغه ټولې فلسفې یو ځل بیا راپورته شي چې په پای کې بیا دوی وایي: د مارکسیسټي فلسفې ماتې اوس حتمي شوه. [دبې گټې] ادب بازار گرم شي. سر الیورلاج او سر آرتهر کونن ډایل روحاني کلبونه جوړ شي، چېرته چې له پیریانو سره خبرې کېږي. د ساینسي کشفیاتو له مخې په ډول - ډول ارواوو فلمونه جوړ شي. [د مړ شوي انسان بیرته را ژوندي کېدلو] په اړه کتابونه چاپ کېږي، د پیریانو داستانونه خپرېږي، د هیپي ایزم نوی مسلک رواج شي، د چرسو کاروبار زیات شي او داسې فلمونه پرې جوړوي که ''ساحرالموط'' شتون درلود نو هغه به هم شرم محسوس کړی وو. د لندن، پاریس او نیویارک په سړکونو کې د [هری اوم، هری اوم] ترانې ولگول شي او موږ داسې فکر کوو چې گورئ! ماده پرست فرنگیان په روحانیاتو باور لري. موږ څومره بې عقله خلک یو! زه له مولانا څخه پوښتنه کوم، چې د ده له نظره د لویدیځ دغه ډول کړنې څه مانا ورکوي،آیاد وخت پېښې دي که یې شاته کوم سیاسي کړنلاري؟

په پای کې زه له مولانا څخه دغه غوښتنه کوم، چې د حیات بعد الموت او د پیریانو داستانونه پر خپل ځای؛ خوآیادا به ښه نه وي چې راپورته شي د دغه ژوندي پاکستانیانو ورځینۍ مسئلې دې حل کړل شي. د دوی افکار را ژوندي کړل شي، د دوی په علم او پوهې کې زیاتوالی راشي او د دغو وهمونو اساس مات کړل شي، چې له پیړیو - پیړیو پکښې را گیر یو.



**د کتاب له متن څخه:**

موږ لا تراوسه هم د تاریخ په کړکېچنو او دردناکو پړاوونو کې یو. جګړې، استثمار، بې عدالتی، زورواکی، ناروغی، لږ مهارېدونکي طبیعي پېښې او لسګونه نور هغه معضلات، چې د بدویت د زمانې بشر ـ ورسره لاس او ګرېوان وو؛ موږ ته تراوسه را پاته دي او ورځ تربلې نوي اړخونه او ابعاد هم خپلوي، په دې توپیر، چې د نړۍ د نامتوازني پانګوالي ودې له کبله، دا معضلات په ځینو ځایونو کې په ډېر شدت او په ځینو برخو کې په لږ شدت او بیلابېلو بڼو سره پاته دي.